



ننګرهار اقتصاد پوهنځی

# د اقتصادي پرمختیا تیوري







پوهاند محمد بشیر دودیال


پلورل منع دی

۱۴۰۰

Economics Development Theory

د اقتصادي پرمختیا تیوري

پوهاند محمد بشیر دودیال



Nangarhar Economics Faculty

Afghanic


Prof M Bashir Doudiyal


# Economics Development Theory




Funded by
**Kinderhilfe-Afghanistan**








Not for Sale

2021

اقرأ باسم ربك الذي خلق

# د اقتصادي پرمختیا تیوري

## پوهاند محمد بشیر دودیال

لومړی چاپ

دغه کتاب په پي ډي ایف فارمټ کې په مله سي ډي کې هم لوستلی شئ:



| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | د اقتصادي پرمختیا تیوري |
| لیکوال | پوهاند محمد بشیر دودیال |
| خپرندوی | ننگرهار پوهنتون، اقتصاد پوهنځی |
| وېب پاڼه | www.nu.edu.af |
| د چاپ کال | ۱۴۰۰، لومړی چاپ |
| چاپ شمېر | ۱۰۰۰ |
| مسلسل نمبر | ۳۲۵ |
| ډاونلوډ | www.ecampus-afghanistan.org |
| | www.kitabona.org |



دا کتاب د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې، په جرمني کې د Eroes کورنۍ یوې خیریه ټولنې لخوا تمویل شوی دی.
اداري او تخنیکي چارې یې په آلمان کې د افغانیک لخوا ترسره شوي دي.
د کتاب د محتوا او لیکنې مسئولیت د کتاب په لیکوال او اړونده پوهنځي پورې اړه لري. مرسته کوونکي او تطبیق کوونکي ټولنې په دې اړه مسؤلیت نه لري.

د تدریسي کتابونو د چاپولو لپاره له موږ سره اړیکه ونیسئ:
ډاکتر یحیی وردک، د لوړو زده کړو وزارت، کارته ۴، کابل
موبایل ۰۷۸۰۲۳۲۳۱۰، ۰۷۰۶۳۲۰۸۴۴
ایمېل textbooks@afghanic.org



ای اس بي ان ۹۷۸-۹۹۳۶-۶۳۳-۵۸-۲

# د لوړو زده کړو وزارت پیغام




د بشر د تاریخ په مختلفو دورو کې کتاب د علم او پوهې په لاسته راوړلو، ساتلو او خپرولو کې ډېر مهم رول لوبولی دی. درسي کتاب د نصاب اساسي برخه جوړوي چې د زده کړې د کیفیت په لوړولو کې مهم ارزښت لري. له همدې امله د نړیوالو پېژندل شویو معیارونو، د وخت د غوښتنو او د ټولنې د اړتیاوو په پام کې نیولو سره باید نوي درسي مواد او کتابونه د محصلینو لپاره برابر او چاپ شي.

له ښاغلو استادانو او لیکوالانو څخه د زړه له کومې مننه کوم چې دوامداره زیار یې ایستلی او د کلونو په اوږدو کې یې په خپلو اړوندو څانگو کې درسي کتابونه لیکلي او ژباړلي دي، خپل ملي پور یې ادا کړی او د پوهې موتور یې په حرکت راوستی دی. له نورو ښاغلو استادانو او پوهانو څخه هم په درنښت غوښتنه کوم چې په خپلو اړوندو برخو کې نوي درسي کتابونه او درسي مواد برابر او چاپ کړي، چې له چاپ وروسته گرانو محصلینو ته په واک کې ورکړل شي او د زده کړو د کیفیت په لوړولو او د پوهې د انتقال پروسې په پرمختگ کې یې نېک گام اخیستی وي.

د لوړو زده کړو وزارت خپله دنده بولي چې د گرانو محصلینو د علمي کچې د لوړولو لپاره د علومو په مختلفو څانگو کې معیاري او نوي درسي مواد برابر او چاپ کړي.

په پای کې د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمیټې او زموږ همکار ډاکتر یحیی وردگ څخه مننه کوم چې د دې کتاب د خپرولو لپاره یې زمینه برابره کړې ده.

هیله‌من یم چې نوموړې گټوره پروسه دوام وکړي او پراختیا ومومي چې په نږدې راتلونکي کې د هر درسي مضمون لپاره لږ تر لږه یو معیاري درسي کتاب ولرو.

په درنښت

پوهنمل دیپلوم انجنیر عبدالتواب بالاکرزي

د لوړو زده کړو وزارت علمي معین

کابل، ۱۴۰۰ ل

# د درسي کتابونو چاپول

قدرمنو استادانو او ګرانو محصلينو!

د افغانستان په پوهنتونونو کې د درسي کتابونو کموالی او نشتوالی له لويو ستونزو څخه ګڼل کېږي. يو زيات شمېر استادان او محصلين نويو معلوماتو ته لاسرسی نه لري، په زاړه ميتود تدريس کوي او له هغو کتابونو او چپترونو څخه ګټه اخلي چې زاړه دي او په بازار کې په ټيټ کيفيت فوتوکاپي کېږي.

موږ تر اوسه پورې د ننګرهار، خوست، کندهار، هرات، بلخ، البيروني، کابل پوهنتون، د کابل طبي پوهنتون او د کابل پولي تخنيک پوهنتون لپاره ۳۴۲ عنوانه مختلف درسي کتابونه د طب، ساينس، انجنيري، اقتصاد، ژورنالېزم او کرهنې پوهنځيو لپاره چاپ کړي دي. ۹٦ طبي کتابونه د آلمان د علمي همکاريو ټولنې DAAD، ۲۱۰ طبي او غير طبي کتابونه د افغان ماشومانو لپاره د جرمنی کمېټې (Kinderhilfe-Afghanistan)، ۷ کتابونه د آلماني او افغاني پوهنتونونو ټولنې DAUG، ۲ کتابونه په مزار شريف کې د آلمان فدرال جمهوري جنرال کنسولګرۍ، ۴ کتابونه د Afghanistan-Schulen، ۲ کتابونه د سلواک ايډ، ۸ کتابونه د کنراد ادناور شټيفټونګ بنسټ (KAS) په مالي مرسته چاپ کړي دي.

د يادونې وړ ده، چې نومړي چاپ شوي کتابونه د هېواد ټولو اړوندو پوهنتونونو او يو زيات شمېر ادارو او موسساتو ته په وړيا توګه وېشل شوي دي. ټول چاپ شوي کتابونه له www.afghanistan-ecampus.org او www.kitabona.com ويب پاڼې څخه ډانلوډولی شئ.

دا کړنې په داسې حال کې تر سره کېږي چې د افغانستان د لوړو زده کړو وزارت د (۲۰۱۰-۲۰۱۴) کلونو په ملي ستراتيژيک پلان کې راغلي دي چې: دا کړنې په داسې حال کې ترسره کېږي چې د افغانستان د لوړو زده کړو وزارت د (۲۰۱۰-۲۰۱۴) کلونو په ملي ستراتيژيک پلان کې راغلي دي چې:

*"د لوړو زده‌کړو او د ښوونې د ښه کيفيت او زده‌کوونکو ته د نويو، کره او علمي معلوماتو د برابرولو لپاره اړينه ده، چې په دري او پښتو ژبو د درسي کتابونو د ليکلو فرصت برابر شي، د تعليمي نصاب د ريفورم لپاره له انګريزي ژبې څخه دري او پښتو ژبو ته د کتابونو او درسي موادو ژباړل اړين دي، له دغو امکاناتو پرته د پوهنتونونو محصلين او استادان عصري، نويو، تازه او کره معلوماتو ته لاسرسی نه شي پيدا کولای."*

موږ غواړو چې د درسي کتابونو په برابرولو سره د هېواد له پوهنتونونو سره مرسته وکړو او د چپټر او لکچرنوټ دوران ته د پای ټکی کېږدو. د دې لپاره اړينه ده چې د افغانستان پوهنتونونو لپاره هر کال لږ تر لږه ۱۰۰ عنوانه درسي کتابونه چاپ شي.

**له ټولو درنو استادانو څخه هیله کوو، چې په خپلو مسلکي برخو کې نوي کتابونه ولیکي، ویې ژباړي او یا هم خپل پخواني لیکل شوي کتابونه، لکچرنوټونه او چپټرونه ایډېټ او د چاپ لپاره تیار کړي، زموږ په واک کې یې راکړي چې په ښه کیفیت چاپ او وروسته یې د اړوند پوهنځیو، استادانو او محصلینو ته په واک کې ورکړو. همدارنګه د یادو ټکو په اړه خپل وړاندیزونه او نظریات له موږ سره شریک کړي، چې په ګډه په دې برخه کې اغېزمن ګامونه پورته کړو.**

د لیکوالانو او خپروونکو له خوا پوره زیار ایستل شوی دی، چې د کتابونو محتویات د نړیوالو علمي معیارونو پر اساس برابر شي، خو بیا هم کېدای شي د کتاب په محتوا کې ځینې تېروتنې او ستونزې ولیدل شي، نو له درنو لوستونکو څخه هیله لرو چې خپل نظریات او نیوکې لیکوال او یا موږ ته په لیکلې بڼه راولېږي، چې په راتلونکي چاپ کې اصلاح شي.

د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې او د هغې له مشر ډاکتر ایروس څخه ډېره منّنه کوو چې د دغه کتاب د چاپ لګښت یې ورکړی دی، دوی تر دې مهاله د ننګرهار پوهنتون د ۲۱۰ عنوانه طبي او غیر طبي کتابونو د چاپ لګښت پر غاړه اخیستی دی.

د جي آی زیټ (GIZ) له دفتر او CIM (Center for International Migration & Development) څخه، چې زما لپاره یې له ۲۰۱۰ نه تر ۲۰۱٦ زیږدیز کاله پورې په افغانستان کې د کار امکانات برابر کړي وو، هم د زړه له کومې منّنه کوم.

د لوړو زده کړو له علمي معین پوهنمل دیپلوم انجنیر عبدالتواب بالاکرزي، د مالي او اداري معین ښاغلي نور احمد درویش، د لوړو زده کړو وزارت سلاکار ډاکتر ګل رحیم صافي، د پوهنتونونو رییسانو، د پوهنځیو رییسانو او استادانو څخه منّنه کوم چې د کتابونو د چاپ لړۍ یې هڅولې او مرسته یې ورسره کړې ده. د دغه کتاب له لیکوال څخه ډېر منندوی یم او ستاینه یې کوم، چې خپل د کلونو - کلونو زیار یې په وړیا توګه ګرانو محصلینو ته وړاندې کړ.

همدارنګه د دفتر له همکارانو هر یو؛ ښاغلي حکمت الله عزیز او ښاغلي فهیم حبیبي څخه هم منّنه کوم چې د کتابونو د چاپ په برخه کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي.

ډاکتر یحیی وردک، د لوړو زده کړو وزارت سلاکار

کابل، مې، ۲۰۲۱

د دفتر ټیلیفون: ۰۷۸۰۲۳۲۳۱۰، ۰۷۰٦۳۲۰۸۴۴

ایمیل: textbooks@afghanic.org

# د دې کتاب مهم موضوعات:

- د اقتصادی پرمختیا ځانګړنې
- د اقتصادی پرمختیامفهوم اوتعریف
- د اقتصادی پرمختیاابعاد
- د پرمختیایی هیوادو عمومی ځانګړتیاوې
- داقتصادی پرمختیا نظریات(تیوریګانی)
- دفقردایره
- دوروسته پاتیوالی عوامل
- بهرنۍ مرستې او پورونه
- علمی پلان جوړونه
- او نور.

# فهرست

سریزه

پرمختیایي اقتصاد او وروسته پاتې اقتصاد؛ هغه دوه مفاهیم دي، چې د وروسته پاتې ټولنو او د ودې په حال کې ټولنو تر منځ توپیر بایدپرې وشي، دلته موږ Advanced Economy او Back Down Economy نومونه هم اخیستلای شو، دلته مهمه خبره دا ده، چې د وروسته پاتې اقتصاد لرونکي هېوادونه څنګه پرمختللي اقتصاد ته ورسوي، یاني خپل هېواد کې مثبت کیفي او کمي بدلونونه راولي. اقتصاد پوهانو د پرمختللو هېوادو د تجربې له مخې د پرمختیا عوامل دوه ډوله ښودلي دي:

1. اقتصادي عوامل Economic Factors،
2. غیر اقتصادي عوامل Non-Economic Factors.

هغه تیوری او پوهه چې د پرمختیا لارې-چارې ښیي او په پورتنیو دوو عواملو(اقتصادی او غیراقتصادی )باندې خبرې کوي، داقتصادی پرمختیا دتیوري په نوم یادیږی. د اقتصادی پرمختیا مضمون زموږ مخی ته هغه مهم مسایل ږدي او په هغو لارو-چارو خبرې کوي، چې د یوه اقصاد دپرمختګ کونجي او کلی بلل کیږي. هره ټولنه او هر هیواد هڅه کوي چې ځان په نسبي توګه د رفاه لوړ حد ته ورسوی او څه ناڅه د رفاه معیارونه ترلاسه کړی. سره له دې چې رفاه نسبی مفهوم دی، خو بیا هم ځینو هیوادو ځان له وروسته پاتې حالت څخه ایستلی او د رفاه دلوړ معیار لرونکی شوی دی. د یوې ټولنې د رفاه معیار د لومړنیو اړتیاوو پوره کېدل او د یو شمېر ټولنیزو خدمتونو د چمتو والي له مخې ارزیابي کېږي. د اقتصاد علم چې د یوې ټولنې په بدلون موندونکو شرایطو کې د ټولنې د وګړو د ضروریاتو د حل او محدودو منابعو څخه د پراخو او زیاتو احتیاجاتو پوره کول او د منابعو ښه تخصیص کول او په ښه کول دي، دغه منابع که نه وي، یا هم که په لازمه توګه په ښه نه شي، نو ټولنه یو شمېر ستونزو سره مخامخ کېږي. ځینې وخت دغه ستونزې دومره زیاتې شي، چې د وګړو د ژوند لپاره اړین لومړني توکي نه پوره کېږي، همداسې یو حالت چې په هغه کې د ټولنې د وګړو حد اقل ضروریات پوره نه شي، دېته وروسته پاتیوالی او بیوزلي وايي.

د فقر ه کرښې څخه ټیټ حال کې په ټولنه کې راز راز اجتماعي، سیاسي، امنیتي، حقوقي او کولتوري ستونزې پیدا کېږي، بالاخره خلک له خپلو حکومتونو ناراضه کېږي، اعتصابات او پاڅونونه او جګړې پیل کېږي.

د وروسته پاتیوالي په حالت کې ټولنیزې ناخوالې؛ لکه ناروغي، ناامني، د سواد ټیټه کچه او نور مسایل لیدل کېږي او ناوړه فعالیتونه لکه غلا، قاچاق او غیر قانوني حرکات او فساد رامینځته کېږي، نو په دې توګه دوروسته پاتیوالي ستونزه یوه مهمه موضوع ده، چې د پرمختیایي تیوري په رڼا کې ورته د حل لارې موندل کیږي. له وروسته پاتیوالي څخه دپرمختیا خواته تلل، ژورې پوهې او پاخه تدابیر غواړي. له نېکه مرغه د اقتصاد د علم یو شمېر تیوریکاني موږ سره د دغې ستونزې په حل کې غوره مرسته کوي.

د اقتصـاد علـم لکـه د نـورو عصـري علومـو پـه څېـر د ټـولنیزو سـتونزو پـه حـل کـې غـوره خدمتونـه کـړي دي. پـه اوسـنیو شـرایطو کـې دپرمختیـایي تیـوري څخـه د اقتصـادي او ټـولنیزو سیاسـتونو د تنظـیم لپـاره اسـتفاده کېـږي او دغـه اصـل د ټـولني لـه ودې او انکشـاف سـره پـه تـدریج پراختیـا مـومي. نـن ورځ لـه دغـې تیـوري څخـه د تولیـد پـه لوړولـو، دمـادي نعمـاتو د عادلانـه وېش ، د کـورنۍ او بهرنـۍ سـوداګرۍ پـه ښـه کولـو، دمبـادلې اود قیمتونـو د کنتـرول، د اقتصـادي بحرانـاتو او نوسـاناتو او مـالي او پـولي مسـئلو پـه تنظـیم او انسـجام، د اقتصـادي او اجتمـاعي پرمختیـا د پلانونـو پـه طـرح او د رفـاه سـطحې تـه د رسـېدلو پـه موخـه کـار اخیسـتل کیـږي. اوس د اقتصـادی پرمختیـا لـه تیـوري څخـه د اقتصـادي پرمختـګ لپـاره پـه منطقـي او معقولـه توګه استفاده کول په یوه دوامداره او کلي قاعده بدله شوې ده.

د اقتصـادی پرمختیـا تیوری(تیـوری انکشـاف) مضـمون د افغانسـتان د اقتصـاد د پوهنځیـو د۱۳۹۱ل. کـال پـه نصـاب کـې د(EC 513 ) کـود پـه لرلـو سـره د دریېـم ټـولګی دلومړي سمسـتر لپـاره پـه پـام کـې نیـول شـوی دی. د ۱۳۶۲-۶۳ کلونـو پـه تـرڅ کـې مـې لـه درانـه اسـتاد پوهنـدوی محمـدطاهر څرک(داقتصـاددپوهنځي پخـواني رئـیس) سـره داسیسـتانت پـه توګـه د دغـه مضـمون تـدریس کـې مرسـته کولـه، کلـه چـې ننګرهـار پوهنتـون کـې داقتصـاد پـوهنځی پـه ۱۳۶۳ل. کـال کـې تاسـیس شـو،ماته د دغـه مضـمون تـدریس لـه ۱۳۶۴ل. کـال څخـه وروسـته وسـپارل شـو. هغـه وخـت تـدریس د دیکتـی او نـوټ شـکل درلـود، دا وخـت ماتـه د تـدریس ترڅنـګ د ننګرهـارپوهنتون د نشـراتو مـدیریت هـم راترغـاړی و. لـه دغـو امکانـاتو پـه اسـتفادی مـې د دغـه مضـمون لکچرنـوټ پښـتو تـه واړاو او پـه ګسـتدنر بڼـه مـې تکثیـر کـړ، همـدا وخـت پـه کابـل پوهنتـون کـې د درانـه اسـتاد عبـدالرووف خپلـواک (پرمختیـایی هیواودنـه او سوسـیولوژیکی تحلیـل) کتـاب هـم چـاپ شـو. پـه ۱۳۸۸ل. کـال کـې داقتصـاد دپـوهنځی پیـاوړی اسـتاد او د وخـت د اقتصـاد دوزارت مسـلکی معـین اروابښـاد پوهانددوکتورنذیراحمدشـهیدی چـې زمـا ډیـر نـږدې دوسـت اوماسـره دعلوموکـاډمی کـې د آریانـا دایـره المعـارف ددوهـم دور داقتصـاد د ارتیکلونـو دادیـت دډلـې غـړی و، خپـل نـوی چـاپ شـوی کتاب(پرمختیـایی هیوادونـه) راکـړ. دغـه کتـاب پـه دې برخـه کـی یـوه نـوی لاسـته راوړنـه وه. پـه دې توګـه پرمختیـایی هیوادونـه، پرمختیـایی تیـوری او پرمختیـایی سیاسـتونه یـو دسـپلین و. زمـا ترتیـب شـوي لـومړنی ګسـتدنری مـواد د حجـم لـه پلـوه کـم و، دا وخـت مـې د هندوسـتان د نـامتو مولـف پروفیسـور جهنګـان ( The Economic Development and Planning) کتـاب ترلاسـه کـړ چـې ډیـر ګټـور معلومـات یـې لـرل. د درسـی مـوادو د بـداییني لپـاره مـې دنومـوړی کتـاب یـو څېرکـی وژبـاړه او د ټـاییي اثـر بڼـه مـې ورکـړه. پـه ۱۳۷۶ل.کـال کـې دغـه کتـاب پـه پېښـور کـې ډاکتـر صـیب بزګـر د(KOR ) د دفتـر پـه امکانـاتو خپـور کـړ. دا دی اوس یـو ځـل بیـا د دې فرصـت برابـر شـو چـې د نـوی شـوی نصـاب سـره سـم یـو ځـل بیـا پـر دغـه کتـاب کتنـه وکـړم او دوهـم ځـل چـاپ تـه یـې سپارم، دا پـه داسـې حـال کـې چـې اوس پریمانـه نـوې منـابع او اخـځ ، د کمپـوز اولیکنـې پـوره آسـانتیاوی او د هیـواد دننـه د چاپ امکانات پـه واک کې شته.

دکتــاب بیــاځلی چــاپ او د بیــاکتنې تصــمیم مــې هغــه وخــت قطعــی کــړ چــې ماتــه پــه۲۰۱۷م.کــال(د۱۳۹۶م.کــال د ثورمیاشــت) کــی د افغانســتان ددانشــمنداو او متخصصــانو دمجمــع دعلمــی کمیســیون لــه خــوا، دکلیــو دپرمختیــا د انســتیتوت مســلکی کــادرونو تــه دیــوه پرزنتشــن دوړانــدې کولــو دنــده وسپارل شــوه، مــا دغــه پرزنتشــن دمجمــع دنــورو اعضــاووپه ګډون چی له اروپاڅخه راغلی وو، دیوه علمی کنفرانس په لړ کې ارائه کړ.

د دغــه انســتیتیوت دکتــابتون دکتنــې پرمهــال دمجمــع داروپــایی برخــی مشــراوپه اسپانیا کې د مادرید دپوهنتـون استاد، پروفیسـور حکمـی صـیب زمـا یـو کتـاب (دطبیعـی منابعواقتصــاد- دلــوړو زده کــړودوزارت چــاپ) د دغــه انســتیتیوت کتــابتون تــه ډالــې کــړ او دکلیودپرمختیــا رهبــری هیــات زمــوږ لــه کنفــرانس څخــه خوښــي څرګنــده کــړه. دمجمــع درهبــری هیــات پریکــړه وکــړه چــی دعلمــی کنفرانســونو لــړۍ بــه دبیلابیلــو اداراتــو، مسـلکی کـادرونو تــه دوام ومـومی. دنـورو کنفرانسـونو دچمتـووالی پــه خـاطر مــی دنویـو ماخــذونو پلټنــه پیــل کړه،چــې پــه دې تــرڅ کــی د امریکــی د متحــده ایــالاتو د واشــنګټن دپوهنتـــون د دووتنواســـتادانو: P.Todaro Michael او C.Smith Stephen وروســـتی دپرنامتوکتـــاب ( Economic Development) او د Debraj Ray دېرنوی اوعلمي کتاب ( Development Economics) په لاس راغلل.

دا کتابونــه، یــویې دمتحــده ایــالاتو PEARSON چــاپخې او دوهــم یــې د PRESS PRINCETON UNIVERSITYد لــه خــوا چــاپ شــوی دي. البتــه پخــوانی چــاپ کــی د لــوی هندوســتان د نــامتو عــالم Prof.Dr.M.L.Jhinganدکتــاب ډیــر علمــی محتویــات ټــول خپــل علمــی اعتبــار لــری او هغــه پــه خپــل ځــای دی. د دغــو نویــو کتــابونونوی مسـایل مـی هـم پخـوانی چـاپ سـره یـو ځـای کـړل او دا دی یـو ځـل بیـا یـې پــه دواړو لاســو د ګــران هیــواد د اقتصــاد دمســلکی مــاهرینو او ګرانــو محصــلانو د استفادی لپـاره تقـدیم کـوم. زه هیلـه لـرم چـې ډیرګـران ځـوان کادرونـه اومحصـلان پـه زړه سـوی سـره خپـل پـتمن ولـس تـه دخـدمت پـه خـاطر ددغـه کتـاب لارښوونی پـه عمـل کــی پلــی کــړي. دلیکنــې بیخــوبی او ســتومانی او د کتــاب د کمپــوز او تــالیف زیــارمو وګالـه، خـو پـه عمـل کـې داقتصـادي پرمختیـا او دهیـواد ترقـی تـه کـار کـول ځوانـانو تـه پریــږدم. د افغانســتان پــه شــان یــوه پرمختیــایی هیــواد تــه دغــه کتــاب او پــه هغــه کــې راغلــی نظریــات ډیــر ضــرور بــولم. اوس ډیــرو نــورو هیــوادو هــم همدغــه نظریــات مخې ته ایښي او د خپلې پرمختیا لاری وربانـدی پیدا اوسموي.

غــواړم لــه فرصــت څخــه پــه استفادی دکتــاب د چــاپ لــه املــه، درانــه ورور او دافغــان ولـس پــه درد، دردمنـد ښـاغلی ډاکترصـیب یحیـی وردګ څخـه مننـه وکـړم ، همـدار نګـه لــه ښـاغلی حکمـت عزیـز څخـه مننـه کـوم چـی د کتـاب د ایـدیت بـار یـې پـه اوږه واخیسـت، الله(ج) دی دوی ته دغه مخلصانه زیار په جاریه صدقه کې حساب کړی. (امین).

پوهاند محمد بشیر دودیال

۴/۱/۱۳۹۹

# لومړی څپرکی
# داقتصادی پرمختیا ځانګړنې

## د اقتصادي پرمختیا مفهوم او تعریف

له هر څه مخکې اړ یو د پرمختیا، اقتصادي پرمختیا او پرمختیایي هېوادو یا پرمختیایي اقتصاد په هکله خبرې وکړو. د اقتصادي پرمختیا په هکله بیلابیل تعریفونه شته چې له هغو څخه یو یې هم په یواځیتوب قناعت بښونکی نه دی. په اقتصادي- علمي اثارو او بحثونو کې بېلابیل اصطلاحات لکه ترقي،وده، اقتصادي رفاه او داسې نور شته. ان دا چې زیاتره وخت دا ټول په مترادفه توګه یو د بل پر ځای راوړل کېږي! خو ګڼ شمېر اقتصاد پوهان وایي چې د پورته اصطلاحاتو ترمنځ د معنا له پلوه توپیر شته. د بېلګې په توګه شومپټر وایي چې اقتصادي پرمختیا د پرمختللو اقتصادي مسایلو سره اړیکې لري؛ یعنې پانګوال اقتصاد.
پروفیسر شومپټر وایي چې اقتصادي پرمختیا په ساکن حالت کې د لنډې مودې بدلون دی چې هغه پخواني تعادلي حالت له منځه وړي، حال دا چې اقتصادي وده د اوږدې مودې دوامداره او تدریجي بدلون دی چې د وګړو په پس اندازونو کې د یوه عمومي زیاتوالي څخه رامنځته کېږي. هره اقتصادي پرمختیا د اقتصادي ودې لرونکې وي، خو هره اقتصادي وده حتماً د اقتصادي پرمختیا محتوی نه وي. دا ځکه چې اقتصادي وده یو اړخ لري؛ هغه د ټولو ملي تولیداتو (General National Production (GNP ملي مجموعي تولید یا د هېواد په سطح ټول محصول) د کلني زیاتوالي سلنه ده، حال دا چې اقتصادي پرمختیا، په اقتصادي جوړښت کې د بدلون سربیره هرډول سیاسي، اجتماعي، کلتوري او نور بدلونونه هم را اخلي، نو ځکه ویل کېدای شي چې اقتصادي وده پرته له اقتصادي پرمختیا ممکنه ده، مګر اقتصادي پرمختیا پرته له اقتصادي ودې ناممکنه ده.
اقتصادي پرمختیا یوه پراخه نومونه ده او د اقتصادي ودې د نومونې په پرتله پراخه معنا لري. د اقتصادي ودې اصطلاح یوازې د کمې شاخصونو ښودونکې ده؛ لکه د ملي عاید حجم، سړي سر کالنۍ ګټه، زېرمې او نور، خو اقتصادي پرمختیا د کمې شاخصونو سربېرره، کیفي شاخصونه او د وګړو د ژوند نور بېلابیل اړخونه هم را اخلي لکه د ژوند د وسایلو او اسبابونو چمتوالی، په کورونو کې د یخچال، تلویزون،دورځپانو لوستل او نورو شته والی، د بریښنا، روغتیایي اوبو، ټلیفون او نورو چمتوالی، د کورونو د کوټو شمېر او داسې نور.
کوزنتز( S. Kuznets)وایي: اقتصادي پرمختیا په اوږده موده کې د یوه هیواد او ټولنې دبیلابیلو تولیداتو دظرفیت اوچتیدل دي. کوزنتز دتولید په تنوع او ظرفیت تاکید کوي.
ځینې نور اقتصادپوهان وایي: اقتصادي پرمختیا د یوې ټولنې دوګړود رفاهي وضعیت او اقتصادی دوام لرونکې ودې ښه کیدل دی، چې ددغې ټولنې داقتصادی، ټولنیزو، سیاسی،علمی او فرهنګی بنسټونو دمثبت بدلون له امله پیښیږي.
د دغو نظرونو لنډیز داسې دی: په یوه ټولنه کې ټول کمی او کیفی بدلونونه پرمختیا بلل کیدای شي.

ځینې پوهان وایي چې د ژوند د سطح د معلوملو او د پرمختیا له پاره د یو معیار په توګه یوازې د سړي سر کالنی ګټه کافي نه ده، بلکې بایدد وګړو د ژوند نور ټول اړخونه هم پکې وشمېرل شي، لکه د ښووني او روزنې شرایط، روغتیایي اسانتیاوې، ښه ترانسپورت، کلتوري او فرهنګي آسانتیاوې او داسې نور. همدارنګه اقتصادي وده د اقتصادي ترقی سره توپیر لري؛ په دې معنا چې اقتصادي وده (Economic Growth) د ملي عاید د زیاتوالي او اقتصادي ترقی (Progress) د سړي سر ګټې سره سروکار لري. کله چې موږ د اقتصادي ترقی څخه خبرې کوو؛ نو د خلکو د ژوند د ښه والي په معنا ده چې یو منځوي برید ورته ټاکل کېدای شي. د دغو دوو توپیر یوه اړتیا ده. د بیلګې په توګه کله چې د وګړو زیاتوالی او وده د محصولاتو له ودې څخه زیاته وي، نو ښکاره خبره ده چې د وګړو د ژوند کچه به ټیټه وي. دا هم باید په یاد وساتو چې ممکن ځینې وخت په یوه ټولنه کې د وګړو د ژوند کچه ټېټه وي، خو د ژوند نورو ډګرونو کې به ژوره پرمختیا شوي وي، داسې وخت کې باید داسې پرمختګونه د سړي سرګټې څخه ځار (قرباني) نه شي.
له همدې امله موږ کولای شو د مادي کلتور او معنوي کلتور نومونې هم وکاروو! هغه شمېر لیکوالان او مولفین چې پرمختیا تخنیکي او اقتصادي عواملو پورې تړي د مادي کلتور پلویان او هغوی چې فرهنګي، ټولنیز، سیاسي او نور پرمختګونه ضرور بولي؛ د معنوي کلتور پلویان نومول شوي دي.  ښه به دا وي چې ووایو: د ټولنې د پرمختګ لپاره دواړه عوامل ضرور دي. د کلتوري عواملو ښه ګټل د مادي عواملو په پرتله یا دمادي عواملو غوره ګټل د کلتوري عواملو په پرتله بېلابېلو وختو کې، بېلابیلو ټولنو کې د هغوی په ځانګړو شرایطو پورې اړه لري. که چېرې د ژوند یو اړخ غوره وګڼل شي او بل هېر شي دا به یوه لویه تېروتنه وي.
پروفیسر براون او لویس (W.A.Lewis) د پورته نومَونو توپیر ته ارزښت نه ورکوي. براون وایي اقتصادي وده (Economic Growth) او اقتصادي- پرمختیایي بدلونونه باید تر پخوا غوره او نوي وي. لیویس دا هم وایي چې موږ به زیاتره اقتصادي وده لیکو، ان دا چې یوازې د تنوع لپاره جایزه بولو چې د اقتصادي ودې پر ځای اقتصادي پرمختیا یا اقتصادي ترقي ولیکو او ویې وایو. د دې معنا دا ده چې نوموړی په دغو دواړو نومونو کې د ډېر توپیر پلوي نه دی.
په هر حال اقتصادي پرمختیا څه معنا؟ د اقتصادي پرمختیا اصطلاح په بېلابیلو بڼو ښودل شوې:
پروفیسر مایر او پروفیسر بالدوین (Baldwin) وایي: اقتصادي پرمختیا یوه پروسه یا پړاو دی چې د هغې په ترڅ کې د ټولنې حقیقي عاید په یوه اوږده موده کې زیاتوالی مومي.
په پورته تعریف کې باید دریو ټکیو ته ځیر شو: پروسه، حقیقي عاید او اوږده موده.
پروسه یا پړاو ځینې ټاکلي ځواکونه  او قدمونه راښیي چې په اوږده موده کې اغیزه ښندي او بدلون یو شمېر متحولین لري. پړاو باید د پېژندو وړ وي، د پړاو په ترڅ کې باید په مهارت، سرچینو، عرضه، پانګه، مدیریت او کارځواک، تکنالوژۍ، اداره او نورو کې بدلونونه راشي. د دې په انډول د عواملو د عرضې په وړاندې باید محصولاتو ته په تقاضا

کې هم بدلون راشي. پرته له هغه د کوم بدلون خبره نشو کولای. له دې سره یو ځای باید د خلکو کلتور، د ژوند کچه، ټولنیزو اړیکو، د عاید ویش ځرنګوالی، د نفوس اندازه او جوړښت او نورو ټولو اړخونو کې بدلون راشي، خو دا تعریف بشپړ ځکه نه دی چې سړي سر ګټه پکې هېره شوې ده. که چېرې د وګړو زیاتوالی د حقیقي عاید د زیاتوالي څخه لوړ وي، نو سړي سرګټه وروسته پاتې کېږي یا به په ټیټه کچه کې وي. په پورته تعریف کې د ټولنیز ژوند یو شمېر نور اړخونه هم په نظر کې نه دي نیول شوي.

اقتصاد پوه براون، په یوه اوږده موده کې د سړي سرمادي محصول زیاتوالی اقتصادي پرمختیا بولي. پروفیسر بوچانان (Buchanan) او Ellis وایي: اقتصادي پرمختیا، په پرمختیایي ټولنو کې د حقیقي عاید د زیاتوالي لپاره د امکاناتو پراختیا ده چې د پانګې اچونې له لارې د سړي سر د حقیقي عاید پر بنسټ ولاړه ده.

خو داتعریف هم نیمګړی بریښي، ځکه ممکن د عاید ویش د طبقاتي توپیرونو د ژورتیا سبب شي. زېرمې او پس انداز هم لازم معیار نشي ګڼل کېدای، ځکه که د ژوند د لګښت په کمولو سره زېرمه رامنځته شي، نو د ژوند سطحه هېڅکله نه ده لوړه شوې او همداسې د ژوند نور ډګرونه درواخله.

اقتصادي پرمختیا ته (Claim Clark) یو بل تعریف لري: د اقتصادي رفاه ښه والی اقتصادي پرمختیا ده(۳:۷۶).

Pigou ټول هغه اجناس او خدمات رفاه بولي چې په پیسو سره پلورل – پیرودل کېږي. نو پورته تعریف کې د پانګیزو اجناسو، مجموعي محصول او د نورو خبره هېره شوې. معنا دا چې ټولنیزه سوکالي د ښوونځیو په ودانولو، روغتونو، سړکونو، ټولنیزو، آسانتیاوو او نورو سره د بدلون وړ ده چې دا یو هم په پیسو پلورل – پیرودل کېږي نه. سربېره پردې اقتصادي رفاه کې ټولنیز عدالت هم هېر شوی دی، یعنې اقتصادي رفاه له ټولنیزې رفاه بیله ګڼل شوې، حال دا چې باید د ټولنې هر اړخ په پرمختیا کې وشمېرل شي.

په اقتصادکې دنوبل د جایزې وړونکی( Amartya Sen)اقتصادی پرمختیا په واقعی توګه خپلواکی بولی، نوموړی وایي:

Development can be seen ...as a process of expanding the real freedoms that people enjoy.

(7:2).

د امارتین سین موخه ډیره عالی او انسانی ده، نوموړی وایی چی پرمختیا ازادی ته وسعت ورکول دی چی ټول خلک ورڅخه ګټه واخلی.

ځینې پوهان په ډېره اوږده موده کې دلازم بدلون راتګ ته پرمختیا وایي، ځینې نور بیا په ټاکلي وخت کې د ژوند په ټولو اړخونو کې د "پرمختیا" نومَونه کاروي. مثلاً یوه ټاکلي وخت کې د تخنیک پرمختیا، د ټولنیز محصول د لوړتیا، په پنځیزو(طبیعی) سرچینو لاسبری او داسې نور، خو دوی وروسته راتلونکي بدلونونه په نظر کې نه نیسي، یعنې د دوی د تعریف او قضاوت Static اړخ لري او بس. بویه چې په ډینامیکه توګه راتلونکي بدلونونه هم پرمختیا کې ګډ وشمېرل شي، یعنې علمي خبره دا ده چې جاري وضعیت له تېرې او راتلونکې وضع

سره وتړل شي او پرتله ييز جاج يې واخيستل شي.دخپلو ټولو خبرو نچوړ او لنډيز به دلته رالنډ کړو:

## . اقتصادي وده ( Economic growth)

په يو هيواد کې په ټول ملی اقتصاد کې، يا د لوی اقتصاد په کچه په يو ټاکلي کال کې د تېر کال د مقدار په پرتله د توليد زياتوالي اقتصادی وده ده(وګورئ چې کمی اړخ ته اشاره ده).
په بله وينا: په مطلوب (دېام وړ) کال کې د تېر يو کال په پرتله د ناخالص ملي توليد (GNP) يا د کورني ناخالص توليد (GDP) زياتوالی اقتصادي وده بلل کيږي.
په بل عبارت: د يوې ځانګړې دورې په لړ کې د هر متغير کمي بدلون ته وده وايي. دا د ټولنې د اړتياوو د پوره کولو لپاره د ټوليزې عرضې د زياتوالي په موخه د توليد د ظرفيت اوږدمهاله زياتوالی دی. که له اقتصادی ادبياتو پرته دعوامو خبرو ته ځير شو، هغوی هم زياتره وخت د متغير کمی بدول ته وده وايی لکه : په پسرلي کې بوټي وده کوي، ماشوم وده کړې ده، نيالګی ښه وده کړې او داسې نور، خو په اقتصادی ادبياتو کې بيا اقتصادي وده د توليد يا سړي سر ملي عايد په زياتوالي دلالت کوي،که په يو هېواد کې د توکو او چوپړتياوو توليد هر ډول زياتوالی موندلی وي، نو ويلای شو چې اقتصادي وده رامنځته شوې ده.

## اقتصادي پرمختيا( Economic Development )

د فزيکي،بشري او ټولنيزو ظرفيتونو په پام کې ساتلو سره يوځای د توليدي ظرفيتونو له زياتوالي سره تړلې وده پرمختيا بلل کيږي. او يا هم اقتصادي پرمختيا په اقتصاد کې له بنسټيزو بدلونونو سره مل اقتصادي وده ده او د فزيکي،بشري او ټولنيزو ظرفيتونو سره يو ځای د توليدي ظرفيتونو لوړوالی دی.(وګورئ، دلته دکميت تر څنګ کميت ته هم اشاره شوی ده). پرمختيا د ټولنې ټول اړخونه پوښي او نشو کولای يواځې په يوه ځانګړې برخه کې ترې يادونه وکړو. پرمختيا ځانګړې پوله،حد او چت نه لري؛دا چې له ټولنې اودانسان اقتصادی ژوند سره تړلې پديده ده، نو ځکه خو ټول اړخونه په بر کې نيسي.
اقتصادي پرمختيا لاندې موخې لري:

- په ناخالص ملي توليد کې د صنعت د سهم زياتوالی او د کرنې د سهم کموالی.(دکرنې دسهم کمښت دا معنا نه لري، چې ددې سکتور توليدات دی کم شي، بلکې د دغه سکتور د ډير ښه پرمختګ او کمی او کيفی بدلون ترڅنګ بايد پخوانۍ عنعونی مسلط حالت داسې بدل شی، چې د کرنی توليد شوی خام توکی په صنعت کی پروسس او صنعت ښه پوره پرمختګ وکړی، او د معادنو او ترانسپورت سره يوځای يې پرمختګ دکرنی په پرتله ډير ګړندۍ شي، همدې ته د صنعت د سهم زياتوالی وايی)،
- د ښاريانو د شمېر زياتوالی او د کليوالو د شمېر کموالی(يعنی دښارونو پراختيا)،

- د ټولنې د رفاه او شتمنۍ په کچه کې زیاتوالی (رفاه یو کیفی او نسبي مفهوم دی، شتمنی مطلق او کمی)،
- د کار او روزګار رامنځته کول.

اقتصادي پرمختیا په پرمختللو او وروسته پاتې هیوادونو کې یو له بل سره توپیر لري،په اوسنیو صنعتي - پرمختللو هېوادونو کې د هغه اصلي موخه وګړو ته د امکاناتو او رفاه رامنځته کول وي،په داسې حال کې چې په وروسته پاتې هېوادونو کې د غربت له منځه وړل او د ټولنیز عدالت پلي کیدل د پرمختیا اصلي موخه ده. د اقتصادي پرمختیا له شاخصونو څخه په لاندې ډول یادونه کولای شو:

**الف) د سړي سر عاید شاخص:**

د یو هېواد ملي عاید، پر نفوس ویشو؛ سړي سر عاید لاسته راځي. دا ساده او د ارزونې وړ شاخص په بېلابېلو هېوادونو کې معمولاً د پرمختللو هېوادونو د سړي سر عاید له کچې سره پرتله کیږي. د دې ترڅنګ د خرید دقوی یا د پیرودنې د ځواک د برابرۍ شاخص (PPP) هم یو معیار دی، دا چې د سړي سر عاید شاخص د هېوادونو له محلي قیمتونو څخه محاسبه کیږي او په معمولي ډول په هېوادونو کې د محصولاتو او خدماتو(چوپړونو) بیې یو شان نه دي، نو د پیرودنې د ځواک د برابرۍ له شاخص څخه ګټه اخیستل کیږي. په دې ډول په هر هېواد کې د بېلابېلو توکو د تولید مقدار د یادو توکو په نړیوالو قېمتونو کې ضربیږي او له لازمو اصلاحاتو وروسته د هغې ناخالص ملي تولید او سړي سر عاید محاسبه کیږی.

**ب) د پایښت لرونکي عاید شاخص (GNP,SSI)**

د سړي سر عاید د نیمګړتیاوو د پوره کولو او د پایښت لرونکې پرمختیا په پام کې ساتلو سره د پایښت لرونکو عوایدو په شاخص باندې اکتفا کیږي چې په دې طریقه کې د ژوند د چاپیریال هغه لګښتونه چې د تولید او اقتصادي ودې په لړ کې رامنځته کیږي هم په ملي حسابونو کې منل کیږي چې په پای کې د ودې او پراختیا کچه لاسته راځي.

**ج) د انساني پرمختیا شاخص (HDI)**

دا شاخص په ۱۹۹۱ م. کال کې د ملګرو ملتونو سازمان له لوري وړاندې شوچې د دې پر بنسټ د سړي سر حقیقي عوایدو شاخصونه،اړتیاوې او زده کړې ته لاسرسی هم محاسبه کیږي. مفهوم یې دبشری سرچینو یا انسانی پانګې ښه کیدل دي.

ویلای شو چې د پرمختیا د پېژندنې لپاره د مهمو نظریاتو له ډلې یوه نظریه دا ده چې پرمختیا له اقتصادي ودې سره او اقتصادی وده له ترقی سره یو شان نه ده،ښایي په یو هېواد کې سړي سر ملي ناخالص تولید زیاتوالی موندلی وي چې له دې کبله د عایداتو نابرابري ډېره محسوسه وي، بیوزلی (غربت) ته لږه پاملرنه شوي وي او د پرمختیا معیارونه (نورې موخې) بدتره شوي وي؛دې حالت ته له منفي پرمختیا سره اقتصادي وده ! ویلای شو چې په هغه کې د دې سره سره چې سړي سر عوایدو زیاتوالی کړی، خو د وګړو د ژوند په کچه کې ټیټوالی راغلی.

دتیرې پیړۍ تر شپیتمو کلونو پورې اقتصاد پوهانو داسې فکر کاوه چې وده او اقتصادي پرمختیا په یوه مانا او د دې دوو اصطلاحاتو تر منځ اختلاف د هغې په استعمال پورې تړلی ده،خو وده د پرمختللو هېوادونو او پرمختیاد مخ پر ودې یا پرمختیایی هېوادونو لپاره کاریږي.

پخوا یو منل شوی نظر دا و چې اقتصادي وده به له اقتصادي پرمختیا سره ملګرې وي.که چیرې یو هېواد وکولای شي اقتصادي وده ولري ، نو پرمختیابه هم ورسره وی؛د بېلګې په ډول یوې ټولنې په یو محصول کې او په اوږدمهال کې په سلو کې اووه وده کړي، نو پرمختیا ته رسیږي؛مګر له دې وروسته چې زیاتو هېوادونو د ودې دا کچه په اوږد مهال کې تجربه کړه،په پای کې پرمختیا ته ونه رسېدل،د عواید وېش یې بې انډوله شو،مطلق فقر،نابرابري او وزګارتیا زیاته شوه،په دې نظریه بیا غور وشو او پرمختیا د ټولنې د هر اړخیزې ودې او د ټولنیز ژوند په کچه کې د غوره والي په مانا وپېژندل شوه.
د نوبل جایزې ګټونکی آمارتیاسن،د پرمختیا اساسي موخه وده نه،بلکې د با ارزښته او خپلواک ژوند لپاره د انسان د وړتیاوو او ظرفیتونو د زیاتوالي په پار له دې ودې څخه کار اخیستل ګڼي او پرمختیا هغه مهال پر ځای بولي چې د خپلواکی ضد عوامل له منځه لاړ شي.
د ملګرو ملتونو سازمان هم له ۱۹۹۰ م. کال راهیسې د انساني پرمختیا په شاخصونو،چې ټولنیزو معیارونو لکه: دژوند هیله (دعمر منځنی کلونه)، د زده کړې کچه، د ماشومانو مړینې، ټولنیزو او سیاسي خپلواکیو او نورو برخو ته شاملیږی،له دې سربېره په سړي سر عوایدو او د پېرودنې په ځواک باندې ټینګار کوي.
باید وویل شي چې د څېړنو لپاره لګښتونه،پرمختیا او د تکنالوژۍ پرمختګ د لګښتونو د کمښت،د ګټې او صادراتو د زیاتوالي سبب ګرځي.نوې تکنالوژي د تولید د عواملو د پیاوړتیا او په تولیداتو کې د زیاتې تنوع سبب ګرځي،د دې سربېره د تولید د نسبي لګښتونو او همدارنګه د شرکتونو او په پای کې د هېوادونو د نسبي مزیت د زیاتوالي سبب ګرځي.
د علمی څېړنو، پرمختیا،نوښت او نوې تکنالوژۍ لګښتونه اقتصادي بنسټونو ته دا اجازه ورکوي،چې خپلې تولیدي وړتیا ته وده ورکړي چې دا کار هم د ظرفیت د ودې،د لګښتونو د کمښت،د کیفیت د زیاتوالي او د توکو د تحویل د چټکوالي سبب کیږي.

## پرمختیایي تیوري او پرمختیایي سیاست (Development Policy[1])

باید د پرمختیایي تیورۍ او پرمختیایي سیاست ترمنځ توپیر وشي. د پرمختیا په تیورۍ کې د پرمختیا په هکله بېلابېل نظریات پام کې نیول شوي، چې هره تیوري د پخوانیو تیوریو محصول او د هماغه وخت او عیني اقتصادي شرایطو زیږنده وي. هرومرو ضرور نه ده چې د پرمختیا تیورۍ کې د بېلابېلو پخوانیو تیوریو توضیح راواخلو، بلکې مهمه دا ده چې په بېلابیلو اقتصادي شرایطو کې ځانګړي وړاندېزونه طرح او پیش بیني ترسره شي، خو د پرمختیا سیاست، تطبیقي لارې چارې ښیي او د پرمختیا د تیورۍ ځانګړي وړاندیزونه بیانوي، یا په بله وینا په تیوریکی استدلال د هغو پلې کول، پرمختیایی سیاست (پالیسی) ده.
په دې ډول ویلای شو چې د اقتصادي عقایدو تاریخ په حقیقت کې د پرمختیا د تیورۍ تاریخ دی انسان تل اقتصادي عقایدو سره تړلی ژوند لرلای، نو ځکه د پرمختیا تیوري د بشریت د

---

[1] د پرمختیا سیاست (سیاست انکشاف) د اقتصاد پوهنځي یو بیل کورس (مضمون) دی.

عمر په اندازه عمر لري او په بېلابيلو وختونو کې يې د ټولنو او د وګړو په فرهنګ اغېزه کړې او ښه پراختيا يې موندلې، په بله وينا: لکه هماغسې چې د بشريت د تمدن، کلتور او اقتصادي عقايدو ترمنځ ډياليکتيکي اړيکې شته، هماغسې هم د پرمختيا د سياست او تيورۍ ترمنځ هم اړيکې شته. د پرمختيا تيوري د تېرو تجربو او زده کړو پر بنسټ او د ځينو پيش بيني ګانو له مخې د پرمختيا په تيورۍ اغيزه ښندي او د وخت په تېرېدو هغه ښه بډايه کوي، خو بايد ووايو چې د پرمختيا د تيوريګانو دوه لانديني پوښتنې په ۱۷ مه پېړۍ کې تر بحث لاندې ونيول شوې:

۱ – د پرمختيا مهم پړاوونه کوم دي؟

۲ – اقتصادي پرمختيا او لوړتيا څرنګه د اقتصادي سياست له لارې تر لاسه کېږي؟

په همدې پېړۍ کې د پرمختيا د تيورۍ علمي بڼه څرګنده شوې او موږ يې همدا تاريخي شاليد ګڼو. مخکې تردې د پرمختيا په هکله ډېر ګډوډ نظريات ورکړل شوي وو، خو ورو ورو د مرکانتليزم او فزيوکراټانو نظريات رامنځ ته شول او په اوږده موده کې بډاي شول. هوښيارو ملتونو له همدې نظرياتو په استفاده پرمختيا وموندله.

## پرمختيا او پلان جوړونه (Development and Planning)

د دې کتاب دويمه برخه د اقتصادي پلان جوړونې په هکله ده دا ځکه چې پلان جوړونه د اقتصادي سياستونو د پلي کولو بنسټيزه وسيله ده. پلان د انسانانو هغه آګاهانه فعاليت دی چې د اقتصادي قوانينو په کار اچولو سره د توليد لارې چارې، اداره، د محصولاتو لوړول اودخدمتونو څرنګوالی ټاکي او هغو ته د رسيدو لارې –چارې راښيي. د لګښتونو کمول او په مجموع کې د يو هېواد ترقی او اقتصادي ښه رغول ممکن کېږي، نو ځکه وايو چې د پرمختيا سياست د پرمختيا د تيورۍ پيشنهادي اړخ دی چې هغه څرنګه تطبيق شي، حال دا چې پلان جوړونه د هغو دعملي کولو وسيله ده.

## د اقتصادي پرمختيا درې ميکانيزمونه

دا چې څرنګه اقتصادي پرمختيا پيښېږي، بايد د ملي عايد، د پانګې د راټولېدو او نفوسو ترمنځ په اړيکو پوه شو:

۱ – د ملي عايد او نفوسو ترمنځ اړيکه، سړي سرګټه ښکاره کوي:

$$y=Y/p$$

دلته:

y -سړي سر عايد،

Y -ملي عايد، او

p -نفوس دی

په سړي سرګڼه کې هر زیاتوالی او بدلون په ملي عاید او نفوس کې د بدلون له امله لېدل کېږي یعنې:

$$\Delta y = \frac{\Delta Y}{\Delta P}$$

په سړي سرګڼه کې هر زیاتوالی له ملي عاید سره سیده اړیکې لري، خو له نفوسو سره سرچپه اړیکه لري.
په یوه پرمختیایي هېواد کې به ښه وي چې $\Delta Y > \Delta P$ څخه وي. که چېرې $\Delta P = \Delta Y$ وي د دغه هېواد اقتصادي پرمختیا ثابته، نه بدلېدونکی یا ولاړ (ستاتیک) حالت کې بلل کېږي، خو د ډب کېدو (رکود) په حالت کې د $\Delta Y < \Delta P$ په معنا افاده کېږي.
۲ – د پرمختیا لپاره دویم میکانیزم د ملي عاید او د پانګې د راټولېدو یا زېرمه کېدو ترمنځ اړیکه ده. د پانګې راټولېدل (Capital Accumulation) په سلنه یا فیصد (%) ښودل کېږي.
که چېرې په یو هېواد کې په یو کال کې ملي عاید ۱۰۰۰ میلیارده پولي واحده (افغانی، ډالر، یورو یا کوم بل پولي واحد) وي. او له هغې جملې ۱۰۰ ملیارده یې پانګې اچونې ته بېلې کړو، نو دلته د پانګې د ټولېدو یا زېرمه کېدو بنسټ او سلنه داسې سنجوو:

$$\frac{100}{1000} \times 100 = 10\%$$

۳ – کله چې غواړو په مجموعي محصولاتو کې بدلون یا زیاتوالی وسنجوو، باید پانګه د هغې پر حاصل وویشو:

$$\frac{K}{O}$$

دلته K کپیتال یا پانګه اوO محصول یا(outcome)دی.

پورتنی فرمول کې، د پانګې هر هغه بېلابیل واحد په نظر کې دی چې هر یو یې د حاصل یو واحد تولید او رامنځته کوي.
پورته نسبت د پانګې مؤلدیت پورې اړه لري، نو ځکه هغه د یو هېواد په ملي اقتصاد کې په لنډه توګه د پانګې مؤلدیت بولي. فرض کوو؛ که چېرې ۳۰۰۰ پولي واحده پانګه اچونه ۱۰۰۰ واحده محصولات لوړ بوځي، نو پر حاصل باندې د پانګې نسبت او انډول داسې سنجش کېږي:

$$1:3 = \frac{3}{1}$$

اوس دوه پورتنی پایلې سره یو ځای کوو، د هغو مجموعي اغېزې مومو: کله چې پر حاصل باندې د پانګې د نسبت په ۱:۳ شرایطو کې، د ملي عاید د یو فیصد زیاتوالي لپاره باید پانګې اچونې انډول په سلو کې درې وي او د ملي عاید د زیاتوالي اندازه وغواړو د یو پر ځای په سلو کې دوو ته اوچته کړو نو باید پانګه اچونه شپږ فیصدو ته لوړه کړو. اوس کولای شو

د پانګې د زېرمه کېدو یا راټولېدو (K) او ملي عاید او د نفوسو ترمنځ خپل منځي اړېکې ومومو او د پانګې اچونې فیصدي وټاکو:
فرض کوو چې پر حاصل باندې د پانګې انډول یا= $\frac{K}{O}\frac{4}{1}$
دی، دلته هدف دا دی چې کلنی ملي عاید 3% لوړ شي، نو دلته پانګه اچونه داسې ښیو:

$$\frac{4}{1}(A+3)\%$$

**د پرمختللو او پرمختیایي هېوادو ترمنځ د اقتصادي پرمختیا واټن**

تر ټولو دمخه باید ووایو چې د شلمې پېړۍ په ۴۰-۵۰ لسیزو کې د اقتصادي پرمختیا او وروسته پاتې والي له مخې دوه ډوله اصطلاحات رواج شول: پرمختللی اقتصاد (Developed Economy) او نه پرمخ تللی اقتصاد (Undeveloped Economy).
دا د کوم نړېوال ټاکل شوي او سل په سلو کې منل شوي معیار له مخې نه و، بلکې د دوو اقتصادونو یا د دوه ډوله هېوادو د توپیر په خاطر دود شوی و. دا دوه اصطلاحات د دې مقصد لپاره کارول کېدل چې په ښېړنی توګه د پرمختللو او وروسته پاتې هېوادو توپیر وشي، دې ته پرمخ وړاندې تللی اقتصاد (Advanced Economy) او شاته پاتې اقتصاد (Backward Economy) نومَونې هم کارول کېدې، ځینو ورته عصري اقتصاد (Modern Economy) او دودیز اقتصاد (Traditional Economy) هم وایه. دا ټول مترادف اصطلاحات وو. لومړی ډله هېوادو کې ګڼ شمېر اروپایي هېوادونه، امریکا متحده ایالات، استرالیا او جاپان راتلل، خو دویمه ډله کې یو شمېر اسیایي او افریقایي هېوادونه شمېرل کېدل. دویمې ډلې هېوادو دغه نومَونه ځان ته له سپکاوي ډکه بلله، نو سره له دې چې حقیقت ته نږدې نومونه وه، خو د دویمې ډلې هېوادو پر سیاستمدارانو ښه نه لګېدله، نو ځکه د ۱۹۵۰ م.کال څخه وروسته د ملګرو ملتونو په لیکنو کې پرمختیا او وده ځینې نسبي مفهومونه وګڼل شول او لږ څه معتدل اصطلاحات لکه پرمختللي هېوادونه (Developed Countries) او لږ پرمختللي (Less Developed Countries) هېوادونه رواج شول، خو بیا هم فقیرو هېوادو ته دا نومَونې د منلو نه وې. وروسته بیا د صنعتي او غیر صنعتي هېوادو اصطلاحات دود شول.
په هر ترتیب، د دې ټولو څخه موخه دا ده چې د لومړی ډلې هېوادو او دویمې ډلې هېوادو د اقتصادي ودې او پرمختیا ترمنځ توپیر او واټن شته. د دې معناداده چې پرمختللو هېوادو لا له مخکې د پرمختیایي اقتصاد ځینې ټاکلي پړاوونه تېر کړي، نو ځکه دوی کولای شي اقتصادي وده لنډه موده کې ترسره کړي. په بله وینا؛ هغو ته مهمه خبره دا ده چې د خپلې اقتصادي ودې بهیر همداسې وساتلای شي، حال دا چې د اقتصادي ودې او پرمختیا ښه پوره چټک کول د اوسنیوپرمختیایي هېوادو لپاره ډېره مهمه خبره ده چې دوی باید د فقر دایره یا دغربت کړۍ (Circle of Poverty) ډېر ژر له منځه یوسي او په خپل ځان ویسا پړاو ته ورسېږي، نو ځکه د اقتصادي ودې او پرمختیا اړخونه په پرمختیایي هېوادو کې څو اړخیز او ژور دي. څو اړخیز په دې معنا چې دوی د خپلو پنځیزو (طبیعي) زېرمو څخه ګټه اخیستنه

او پر هغو لاسبرى، پانګه اچونه، ټولنيزو چوپړونو، پوهې او مهارت، د ملي عايد ښه ويش، د اقتصادي جوړښت مثبت بدلون، د ټول نفوس څخه اقتصاداً فعال نفوس او نورو برخو او اړخونو کې ښه والى راولي چې دا ټول د دوى په اقتصادي بُعد کې راځي.
بايد په ياد وساتو چې له اقتصادي نابرابرۍ سره د مبارزې او اقتصادي ودې او پرمختيا ته د رسېدلو په خاطر نه يوازې د عايد او توليد لوړوالى، بلکې ژورو سياسي – ټولنيزو بدلونو ته هم اړتيا ده. يوازې د پانګې اچولو لوړول نه، بلکې بايد ټولنيز، فرهنګي، سياسي او نور ټول مؤسسات بشپړتيا ومومي، له دې سره يو ځاى ځينې کوچني مسايل چې ظاهراً دومره مهم نه ښکاري، هم زښت ډير اهميت لري لکه بيمې، کوپراتيفونه، د ښوونې او روزنې حق، د کارګرانو د حقوقو غوښتنه، ښه اداره(غوره حکومتولى) او باکفايته سازماندهي او داسې نور چې د پرمختيايي هېوادو لپاره ضرور دي، حال دا چې پرمختللو هېوادو کې دا ډول خبرې لا پخوا حل شوې دي. اقتصادي وده او پرمختيا په UDCs(نه پرمختللو هيوادو)او LDCs (لږ پرمختللو هېوادو) کې يوه چټکه دوامداره پروسه ده، ترڅو د هغوى کورنۍ ستونزې لکه بيوزلي(غربت)، بيسوادي، ناوړه صحت، بيکاري، بې اتفاقي، خرافات،مالى،اداري اوټولنيزفساد،چاپيريالى ستونزې، د عايد ناانډوله ويش او داسې نور حل شي. حال دا چې پرمختللو هېوادو کې دا چټکه پروسه نه شو بللاى، ان دا چې کله کله پکې ځنډ او خنډ (د بحران له کبله) پيښېداى شي. هلته دا پروسه نه يوازې د هغوى کورنۍ ستونزې حل کوي، بلکې بهرنيو ستونزو ته هم اړم دي.

## د اقتصادي پرمختيا ابعاد

د دې پوهې ارزښت د اقتصاد د پرمختګ په هکله پروفيسر ماير او بالدوين بيان کړى دى، هغوى وايي: د ملتونو د شتمنيو (ثروت) د مطالعې پر ځاى د ملتونو د غربت مطالعه ډېره ضرور ده! پرمختيايي هېوادونو کې نفوس ورځ په ورځ زياتېږي، پانګه يې لږه، سرې سرګټه يې لږه او د تکنالوژۍ له پلوه وروسته پاتې دي. له بلې خوا د پرمختللو او پرمختيايي هېوادو ترمنځ توپير ورځ په ورځ زياتېږي، د دوى وروسته پاتيوالى يوې لويې سياسي ستونزې باندې اوښتى چې ان د دوى خپلواکي يې له ګواښ سره مخامخ کړې ده، نو دوى ته ډېره ضروري او مهمه خبره ده چې ژر خپلو ستونزو باندې برى ومومي او خپلې زېرمې او شتمنۍ، خپلواکې، ملي هويت او پرتم وساتلاى شي. سربېره پردې چې خلک د ژوند د لوړې سطح او رفاه غوښتونکي دي، دمعنوى ارزښتونو دپالنې هيله هم لري. د دغو هېوادو حکومتونه په دې ګروهه(عقيده) دي چې د دوى سياستونه د همدې معيار يعنې اقتصادي ودې او پرمختيا له مخې ځېړل کېږي، د دوى سياسي برى د دوى د اقتصادي ودې له مخې ارزول کېږي ان دا چې د پرمختيايي هېوادو اقتصادي وده او پرمختيا د پرمختللو هېوادو لپاره هم په زړه پورې ده، دا ځکه دوى ته د پيرودلو مارکېټ او د دوى د محصولاتو د خرڅلاو بازار پراخېږي، د پرمختيايي هېوادو اقتصادي وده او پرمختيا د نړېوالو کړکيچونو او اقتصادي پرمختيا د ثبات لامل هم ګرځي، پرته له هغه ممکن په نړېواله کچه ګڼ شمېر اقتصادي

بحرانونه، اضافه تولید او نورې ستونزې پېښې شي. د اقتصادي ودې او پرمختیا مطالعه د پراخه اقتصادي ډګرونو سره سیده اړېکې لري.

## د پرمختیایي هېوادو او پرمختیایي اقتصاد معنا، کچه او ځانګړنې

۱ . **معنا**: کوم اقتصاد ته پرمختیایي اقتصاد ویل کېږي؟ په اقتصادي ادبیاتو کې لکه چې پخوا چې وویل شول؛ هېوادونه په پرمختللو او پرمختیایي هېوادو وویشل شول. د (پرمختیایي هېوادونه) اصطلاح د پخوانیو وروسته پاتې او بېوزلو هېوادو پر ځای کارول کېږي. وروسته پاتې اصطلاح ممکن دا معنا ولري چې ګواکې د پرمختیا امکانات ډېر لږ دي او بیوزلي یا فقیر به دا معنا ولري چې ګواکې نوموړی هېواد هېڅ هم نه لري. په داسې حال کې چې زیات شمېر پرمختیایي هېوادونه پوره زېرمې او طبیعي شتمنۍ لري، خو د پانګې، مهارت او د تخنیک د ټیټې سطح له امله تر کار لاندې نه دي نیول شوي. د پرمختیایي هېوادو اصطلاح په ۱۹٦٤ م. کال کې کینډې وکاروله. بله خبره دا ده چې هېڅ داسې هېواد نه لېدل کېږي چې د خپلې ودې او پرمختیا لپاره یې هڅې نه وي کړې، نو ځکه نظر نورو پخوانیو اصطلاحاتو ته "پرمختیایي" اصطلاح غوره برېښي، نو له ناوړه نومَونو(اصطلاحاتو) لکه وروسته پاتې، فقیر، نادار او نورو څخه ډډه په کار ده. له بلې خوا وروسته پاتېوالې او فقر هم نسبي اړخ لري، کېدای شي د ډېرو پرمختللو هېوادو په کتار کې هم داسې هېواد وموندل شي چې نظر نورو ته وروسته پاتې وي! باید ووایو چې د پرمختیایي اقتصاد لپاره غوره منل شوی تعریف په مشکل سره ترسترګو کېږي، مګر ګڼ شمېر نظریات شته چې د پرمختیایي اقتصاد پېژندنه کوي.

## د وروسته پاتیوالی پیژندنه

Bauer Fyamey هغو هېوادو ته پرمختیایي هېواد وایي چې ګڼ شمېر پرمختللو هېوادو لکه شمالي امریکا، غربي اروپا او استرلیا څخه یې حقیقي سرانه عاید او پانګه کمه وي، د ملګرو ملتونو متخصصینو هم سرانه عاید غوره معیار ګڼلی او هغه یې د متحده ایالاتو، کاناډا او استرلیا سره پرتله کاو، خو دا کافي ونه ګڼل شوه.نباید چې یوازې سرانه عاید معیار وګرځوو، ځکه سړي سرګټه یا سرانه عاید یوازې د مسئلې یوه کوچنۍ برخه ده، ممکنه ده یو پرمختیایي هېواد خپلې طبیعي زېرمې پوره کارولې وي، خو د ټیټ سرانه عاید له مخې پرمختیایي هېوادو کې وشمېرل شي، ممکن یو بل هېواد کې سړي سرګټه ټیټه وي، خو هلته به د ژوند نورې آسانتیاوې چمتو وي، په دې توګه د انسان رفاه ښو اړخیزه ښکارنده ده.
ملګرو ملتونو په یوه رپوټ کې دا هم ویلي چې: هغه هېواد یا اقتصاد پرمختیایي بلل کېږي چې په ټولیز ډول د تولید پروسه کې له عادي تخنیک او ناچیزه حقیقي پانګې څخه پکې کار اخیستل کېږي.

Berenstein وايي چې هغه هېواد پرمختيايي بلل کېږي چې په هغه کې توليدي اغيزمنتوب ډېر ورو پرمخ روان وي او سړي سر توليد شوي محصول يې ټيټ وي. هندي پوهان دا خبره ضروري بولي چې سړي سر توليد شوی محصول، د تخنيک د سطح او حقيقي پانګې ترڅنګ بايد د کلتور او فرهنګ سطح هم په نظر کې ونيول شي.
پروفيسر نرکسي (Nurkse) هغه هېواد پرمختيايي بولي چې د طبيعي زېرمو او نفوس په انډول لږ اندازه پانګيز (سرمايوي) اجناس اوابزار ولري، خو بايد ووايو چې (Nurkse) په خپل همدې اثر کې ويلي چې پانګه يو ضروري شرط دی، خو کافي نه ده، بلکې د ټولنيزو کړو، وړو، سياسي شرايطو او تاريخي پېښو سره تړاو لري.
پروفيسر کالين کليرک (Colin Clark) اقتصادي پرمختيا د Tertiary Occupation (T.O) سره انډول بولي، البته د ژوند د سطح په لوړېدو سره بېلابيلې بوختياوې او شخصي خدمات (T.O) زياتېږي، خو د کلرک دا نظر ډېر تاييد نه شو.
په هند کې د علمي نظرياتو د ارائه کولو په وخت کې د هغه هېواد د پلان جوړونې کميسيون هغه هېوادونه پرمختيايي وبلل چې له يوې خوا پکې د بشري کار ځواک په کار نه وي لوېدلی او بشپړه استفاده ورڅخه نه وي شوي او له بلې خوا طبيعي سرچينې ګټې اخيستو لاندې نه وي راغلي چې د دې لامل د تخنيک ټيټه سطح او يو شمېر ټولنيز عوامل ګڼل کېږي. د طبيعي سرچينو د لازياتې کارونې په هکله هم زيات شمېر اقتصاد پوهان د نظر يووالی نه لري. ځکه يو شمېر ډېرو پرمختللو او صنعتي هېوادو کې طبيعي زېرمې اوشتمني ډب دي يعنې راکد حالت کې دي او پانګوالي اقتصاد کې هم له ټولنيزه پلوه ځينې بحرانونه لېدل کېږي، نو آيا دا هم پرمختيايي وبولو؟
د دې مثال په خپله متحده ايالات، انګلستان او المان دی. سره له دې چې د کار د بشري ځواک پوره په کار نه لوېدل او په طبيعي سرچينو نه لاسبری د پرمختيايي اقتصاد مهمه نښه ده. په دې لړ کې Eugere staley ټولنيز فکتورونه د معيار په توګه مني. دی وايي:
هغه هېواد پرمختيايي ګڼل کېږي چې:
١ . په هغه کې فقر او غربت د کومې ناڅاپي پېښې يا د لنډې مودې لپاره نه وي.
٢ . په هغه کې غربت د طبيعي سرچينو د کمښت له کبله نه، بلکې د توليدي پروسې د نيمګړتياوو له امله وي. خو په پورته معيارونو کې د نفوسو اهميت او ګڼ شمېر نور اړخونه او اقتصادي نور مسايل نه دي شمېرل شوي.
د Jacob Viner په نظر پرمختيايي هېواد هغه دی چې د هغه په مخکې لا د اقتصادي ودې، ترقۍ او پرمختګ ډېر زيات پراخ ډګر وي، يعنې د پانګې، د بشري کار ځواک او طبيعي سرچينو د کارولو ښه پرېمانه امکانات ولري او خپلو موجوده نفوسو ته د ژوند ښه امکانات برابر کړای شي او د عايد لوړه اندازه ورته چمتو کړي. د ده معيار د سړي سرګټې لوړه اندازه ده. د ده په تعريف کې نفوس په نظر کې نيول شوی، خو د نفوسو وده (زياتوالی)، د نفوسو کثافت (ګڼوالی)، د وګړو بوختيا په کرنه کې، د هغوی تخنيکي مهارت، ښوونه روزنه،غوره حکومتولي او نور له پامه لوېدلي، خو بياهم له پخوانيو تعريفونو غوره بلل کېږي. سره له دې هم د پرمختيايي (روبه انکشاف- دپرمختيا په حال کې يا Developing)

لپاره يو جامع تعريف چې د ټولو لپاره منل شوی وي ستونزمن دی، نو ځکه بايد دغه ټول تعريفونه يو ځای په نظر کې ونيسو. له دغو ټولو څخه دا پايله ترلاسه کېږي چې پرمختيايي هېوادونه يا پرمختيايي اقتصاد هغه ته ويل کېدای شي چې د بدايني ښه امکانات، خوځښت، له پانګې څخه د لازياتې ګټې اخيستنې لپاره د خلکو هيلې، د کار د ځواک لازيات په کار لوېدل، د موجوده طبيعي سرچينو ډېره ښه، علمي او اعظمي په کار اچونه پکې ولېدل شي، ترڅو خپلو وګړو ته د ژوندنسبتاً ښه کچه مهيااو منطقي مثبت بدلونونه راولي او داسې آسانتياوې برابرې کړي چې د دوی د ژوند اړتياوې ډېرې ښې پوره شي.
اوس چې د پرمختيايي هېوادو او پرمختيايي اقتصاد ځينې کچې او ځانګړنې جوتې شوې دا به ووايو چې پرمختيايي هېوادونه بيا په بېلابېلو فرعي ګروپو ويشل شوي چې ډېر لږ پرمختللي Least Developed، لږ پرمختللي Less Developed او پرمختيايي Developing Countries دي. د دوی لپاره زموږ په هېواد کې مخ پر ودې، روبه انکشاف او پرمخ تلونکی هېوادونه اصطلاحات هم مروج دي چې مراد يې همدا دی.
د نړۍ هېوادونه چې شمېر يې اوس وخت کې د ۲۰۰ شاوخواته رسېږي، په همدغو ډلو ويشل شوي؛ يعنې يوه ډله يې پرمختللي صنعتي هېوادونه او بله يې پرمختيايي.
پرمختيايي هېوادونه په خپل وار د ودې د درجې له مخې، د صنعتي والي، د سواد د سطح، سړي سرګټې، ټولنيزو آسانتياوو او نورو له مخې د ملګرو ملتونو له خوا په ډېر لږ پرمختللو او پرمختيايي ويشل شوي. ډېر لږ پرمخ تللي هېوادونه هغه دي چې ډېر وروسته پاتې دي دغه اصطلاح د ملګرو ملتونو په خپرونو کې له ۱۹۷۱م. څخه وروسته دود شوه. په ۱۹۹۵م. کال د ډسمبر مياشت کې ملګرو ملتونو د دغو هېوادو شمېر ۴۲ وښود چې هغو کې افغانستان، بنګله ديش، بنين، تايوان، بوتسوانا، بوتان، بورندي، چاد، يمن، ګنيا، ايتوپيا، ګامبيا، ګني بيساو، مالي، موريتانيا، موزمبيق، روندا، سودان، سوماليا، يوګندا، نيپال او يو شمېر نور وشمېرل شول. دويمه ډله يعنې لږ پرمختللي هغه هېوادونه دي چې صنعت يې نسبتاً پرمختللی دی. دوی د پرمختيا په درشل کې وګڼل شول ځکه GNP کې يې د صنعت ونډه تر ۲۰% رسېدله لکه ارجنتاين، برازيل، چيلي، هانکانګ، اسرائيل، مکسيکو، سنګاپور، تايوان، جنوبي کوريا او داسې نور. خو درېيمه ډله يعنې پرمختيايي (Developing) هېوادونه هغه دي چې د نفتو زياتې زېرمې لري او د نفتو صادرات يې په لوړه کچه دي لکه سعودي عربستان، بحرين، قطر او کويټ او داسې نور.دا ويشنه هم ثابته نده، دا ځکه عراق، ليبيا او سوريه اوس(۲۰۱۹م.کې) له اقتصادی پلوه او د اتباعو د هوساينی ددرجی له مخې هغه حالت کې ندی، کوم چې په ۲۰۰۰م کال څخه مخکی وو. هغه وخت هرليبيايی ته ګاز او برېښنا وړيا او دليبيايی ځوان د واده لګښت ددولت پرغاړه وو، ميندو ته د ولادت څخه وروسته ۴۰۰۰ډالره مرسته کيده، ښاری عامه تراسپورت او تحصيل وړيا او صحی خدمات فوق العاده ښه او ارزانه وو اوداسې نور سهولتونه، خو اوس وضع ترټولو بدتره ده. اوس ګڼ شمير پرمختيايی هيوادو کې لبرال نظرياتو ته دشک په سترګه ګوری، دوی د دې پلويان دي چې خصوصی کول بايد په سنجيده ډول وشي، د دولت ارشادی نقش بايد همداسې مسلط او پياوړی وساتل شي، ټولنيز نظم او دسپلين ته لومړيتوب ورکړل شي او عامه- ملي شتمنی،

موسسات او بنسټونه لا هم  د خصوصی کولو پر ځای، پاملرنې ته اړتیا لري. د ۲۰۱۹م. کال د کرونا(COVID-19) ویروس ډېر چټک خپریدو، یو شمیر هیوادو کې یې بنه کنټرول او یو شمیر نورو کی د دغی ناروغۍ نه مهار کول یا کنترول کولو کې  یې ضعف، ټول بشریت ته یوه نوې تجربه مخې ته کیښوده.  ممکن وروسته تر دې بشریت د فردی اصالت پرځای یو ځل بیا ټولنیز اصالت ته رجحان ورکړي، دغې پېښې یو ځل بیا د عواطفو او خواخوږي احساس بشر کې راویښ کړ.
هغه څه چې ثاتب شوی دی ،  دا دي چې پیاوړی اقتصادی زیربنا لرل، د بحرانونو، کړکیچونو او وباوو د خپریدو پر مهال ډیر اوچت ارزښت پیدا کوی، چی د ټولې ټولنې په چوپړ کې وي.  پیاوړی اقتصادی زیربنا اقتصادی پرمختیا پورې تړلې ده. کله چې خلک له اقتصادی پلوه څه ناڅه پرځان ویسا وي، له روحي پلوه ناخوالو سره ښه مبارزه کولای شی، خو د بیووزلۍ په صورت کې دوی روحی ناارامی ، ژور خپګان، ویرې او جسمی  کسالت سره مخامخ کیږی، چې دا حالات نور هم  وضعیت بحرانی کوي. ښه اقتصاد لرل روحی او جسمی ناروغیو ته یو ډول وقایه ده.
د نیویارک دپوهنتون نامتوپروفیسور( Michael P.Todaro)او دجورج واشنګټن دپوهنتون استاد( Stephen C.Smith)په خپل درسی کتاب کې چې د( Economic Development-Twelfth Edition) په نوم یې په۲۰۱۵م. کال کې لیکلی دی، هیوادونه یې په آسانه توګه،دنړیوال بانک داطلس د۲۰۱۱م.کال داراقامو له مخی، له ټیټ عاید لرونکوڅخه تر لوړ عاید لورنکو پورې په پینځوګروپونو ویشلی دی:

- ✓ ډیرلږعاید لرونکی( Lower-income-countries) له۱۰۲۵ډالرو څخه ټیټ کلنی سړی سرعایدلرونکی،
- ✓ منځنی لږعاید لرونکی(Lower-midle-income countries)له۴۰۳۵-۱۰۲۵ډالروپوری عاید لرونکي،
- ✓ له منځنی حدعایدلرونکو څخه پورته عایدلرونکی( Uper-midle-income countries)له۱۲۴۷۵-۴۰۳۶پورې،
- ✓ لوړعاید لرونکی(High-income countries)له۱۲۴۷۶امریکایی ډالرو څخه پورته GNI per capita لرونکی،
- ✓ اوهغه هیوادونه چې ارقام یی ندی موجود.

په عمومی توګه ارقام تل په تغییر کې وي، مثلاً دهندوستان او د چین دهیوادونو سړی سر کلنۍ ګټه وروسته تر ۲۰۰۸م. کال څخه ډیرزیاتوالی موندلی دی. افغانستان هم وروسته تر۲۰۰۱م. څخه دبهرنیو مرستو په زور د ارقامو له مخی ښه و، خو وروسته تر ۲۰۱۰م. نور پرمختګ ونشو.حال دا چې دسینګاپورپرمختیا نده ټکنۍ شوې، بلکې ګړندۍ روانه ده او صنعت ته یې پاملرنه زیاته ده. جنوبي کوریا له کلیوالی او کرنیز پرمختګ پیل وکړ. یومثال: کوریا له ۱۹۵۰ څخه تر ۱۹۵۳ م. کلونو پوری په کورنی جنګ کی وه. ټول هیواد د غربت ، فقر او د ژوندانه ډیرو مشکلاتو سره مخامخ و. دکوریا ددغو کلونو وضعیت دافغانستان

د۱۳۸۱-۱۳۷۱لمریزو کلونوپه شان و. حتی په دغه وختونو کی د کوریا خلکو د دری وخته خوراک دپاره هم څه نه درلودل. په ۱۹۵۳م. کال کی د جنګ په پای ته رسیدوسره له بده مرغه واحده کوریا په دوه برخو جنوبی کوریا او شمالی کوریا وویشل شوه.
جنوبی کوریا دخپل اقتصاد دپرمختګ په خاطر پنځه کلن پلانونه جوړ او په او اویایمه لسیزه کی یی د نوی کلی حرکت یا ( New village moment) په نوم د خپلو کلیوالی سیمودپرمختګ او دژوند دښه والی په خاطر نوی حرکت پیل کړ. د دغه حرکت عمده هدف دا و چې د کلیوالی سیمو او ښاری سیمو ترمنځ واټن راکم کړی او په کلیوالی سیمو کی د شته فرصتونو څخه سمه او اقتصادي استفاده وکړی .ددغه حرکت په پیل کی د حکومت مالی حالت هم کمزوری و، خو حکومت دپیسو پرځای هرکلی ته صرف ۳۳۵ بوجی سیمنټ ورکړل ترڅو د سړکونو جوړول، د کورونو دچتونو رغول ، د عامه ځاګانو جوړول، د اوبو د کوچنیو زېرمو او واړه پلونه او داسې نورو ولسی کارونو په خاطر ورڅخه استفاده وکړی او کلیوال خلک به سیمه ییز مواد لکه شګه او تیږې خپله چمتواو انتظام به یې کوی، او د پروژې د پلي کولو لپاره به په ګډه کار کوی.
د کرنیز سکتور دپرمختګ په خاطر یی تراکتور څخه استفاده ، د اوبو رسولو منظم کول، د اصلاح شوی تخم او همدارنګه د شنو فارمونو په جوړولو اقدام وکړ .کلیوالی سیمو دغه پروګرام په بریالی او رضاکارانه ډول تطبیق کړ .
دحرکت د شروع نه تقریبا څلور کاله ورسته د کلیوالی سیمو د فی نفر عاید تر ۶۷۴ ډالرو پوری ورسید چې دغه اندازه په ښار ی سیمو کی صرف ۶۴۴ ډالره وه. یعنې (د کلی نوی حرکت) برنامې کلیوالی او زراعتی اقتصاد په پښو ودراو، وروسته بیا همدې زراعتی او کلیکوالی اقتصاد ښاری اقتصاد هم پیاوړی کړ.جنوبی کوریا نن په بیساری ډول پرمختګ کړی اوعلت یی دهمدغه حرکت رامنځ ته کول و. په ۲۰۱۶ م. کی سرانه عاید (۲۵۰۲۲،۸) ډالره شو . حال دا چې یووخت (په ۱۹۶۰م. کال کی) د، کوریا او افغانستان سرانه عایدتقریبا یوشان یعنې ۷۹ ډالره وو. دلته موږ افغانستان له جنوبی کوریا سره مقایسه کړ چې دجنوبی کوریا سړی سر عاید په ۱۹۶۰م. کې له ۷۹امریکای ډالروڅخه په ۲۰۱۶م.کې تر ۲۵۰۲۲ امریکایی ډالرو پورې ورسید،خو دافغانستان سړی سره عاید همدغه موده کې د بهرنیو مرستو سره سره صرف تر -۶۷۰یا۶۷۹(ددولت د راپور له مخې، نه دکره څیړنی له مخې)ته رسیدلی دی، یعنی موږ اوس هم د ډیر ټیټ سړی سرکالنی عاید لرونکی یاستو. سره له دې چې کوریا دافغانستان په نیمایی طبیعي سرچینې نه لري ، او یوازې په خپلو بشري منابعو باندې یې تکیه وکړه . خواوس دانټرنټ د کارولو، بانکي سیستم او د صنعتي ملت په توګه د یوه پرمختلونکي هیواد په توګه ګڼدی پرمختګ کوی، خو افغانستان د کافي طبیعی سرچینو،کافی بشری نیرو، غوره اقلیم او بهرنیو مرستو په لرلو ونشو کولای لازم پرمختګ وکړی. د دې معنا داده چې په پرمختیایی هیوادو کی د پرمختګ حالت او دژوند معیارونه د بدلون په حال کې دی او ټول پرمختیایي هیوادونه په برابره اندازه د پرمختګ استعداد او وړتیا نلری.
د آسیا جنوب کې سینګاپور یو کوچنی هیواد دی، خو دغوره حکومتولی او عالی پلان جوړونی په برکت یی تر کوریا هم ښه پرمختګ وکړ، دغه هیواد د( Knowledge

(economy دشعارپه غوره کولو سره، دپرمختیا علمی لارې-چارې په کار واچولی. دلیبیا، افغانستان، عراق او سوريې په شان هیوادونه جګړی دومره وځپل چې اوس یې دخلکو روحی او اجتماعی وضعیت پرمختک سره څه چې ژوند کولو سره هم بیعلاقی شوی دی. دغو هیوادو ته اوس نه یواځې اقتصادی پلانونه ضرور دی، بلکی ژور ټولنیز اصلاحات او د جګړی د ګرومونو هوارول هم پکار دی. دغو هیوادو کې باید لومړی سیاسی او ټولنیزه سوله، ورپسې ثبات او بیا ورپسې باید د پرمختیا په لوري ګړندي ګامونه اوچت شي. د پورته ذکر شویو هیوادونو له ډلی ممکن یو شمیر یې لږ وخت کې د اقتصادی پرمختګ لوړو پوړیو ته ورسیږی، خو یوشمیر نور ممکن ژر ونه توانیږی. همدا اوس د چین، هند، تایوان، هانکانګ، اسرائیلو او سینګاپور اقتصاد د ګړندی پرمختګ په حال کی دی ، د دوی د ودې او ترقی ارقام او د ژوند د ستندردونو حالت مخ په ښه کیدودی.
کله چې د هېوادونو د ویشنې، توپیرونو او نوم ایښودو خبره کوو لازمه ده یوه بله نوم ایښودنه هم ذکر کړو:
د شلمې پېړۍ له نیمایي بیا د هغې تر پای پورې په اکثرو سیاسي – اقتصادي بحثونو کې هېوادونه په لاندې درې برخو هم ویشل شوي وو:
صنعتي پرمختللي هېوادونه، چې اقتصاد یې دآزاد مارکېټ په بنسټ و، سوسیالیستي هېوادونه چې مرکزي پلان جوړونه پکې معموله وه او درېیمه نړۍ. چې په درېیمې نړۍ کې همدا وروسته پاتې هېوادونه راتلل. دغو وروستیو نومونو اکثراً سیاسي اړخ درلود. "د درېیمې نړۍ" اصطلاح په هکله د چین هېواد ډېره علاقه درلوده ځکه غوښتل یې د ناتو او وارسا د کمپ په وړاندې دغه "درېیمه نړۍ" ښه برجسته او ورڅخه جلا شي. دا هم مطلقاً سیاسي مفکوره وه. د سړې جګړې پر مهال چین د خپل هژمونیستی سیاست له مخې غوښتل پرمختیایی هیوادونه دځان په لوری لیوال کړي، نو ځکه یې دوی ته د(درېمې نړۍ) خطاب کاو. د دې سربېره یوه بله ډلبندي او نومونه هم وه چې هغې کې نړۍ هېوادونه په شمال او جنوب ویشل شوي وو: د شمال څخه منظور پرمختللي صنعتي هېوادونه وو او له جنوب څخه منظور اکثراً همدا وروسته پاتې هېوادونه وو، خو هغه اصطلاحات چې د پرمختیایي (درېیمې نړۍ) هېوادو د سیاست مدارانو لپاره لږ څه مناسبه برېښېده او هم یې د ودې دینامیکه پروسه تائیدوله او د نسبیت یوه افاده هم پکې نغښتې وه او اقتصادي لیکنو کې ډېره دود شوه هغه همدا پرمختیایي هېوادونه (Developing Countries) او پرمختللی (Developed Countries) هېوادونه وو. ډېرو خلکو همدغه دوه وروستۍ نومَونې ومنلی، له نورو یې مخ واړاو.موږ هم دلته د افغانستان په شان هیوادو ته د (پرمختیایی) اصطلاح غوره بولو او همدا کاروو.
د پرمختیایي هېوادو لپاره د دوی د ودې سکالو ډېره د پاملرنې وړ ده، خو د اقتصاد د علم په علمي آثارو، جهاني پالیسو او علمي څېړنو کې په دې اړه لږ مطالب لېدل کېږي. معمولاً په دې برخه کې د پرمختللو صنعتي هېوادو پوهانو لیکنې او څېړنې کړي چې یو شمېر نظریې نهیلوونکی دي، آن دا چې دوی په دې هکله د تېر ایستنې چلند غوره کړي او په آثارو کې یې د استعمار د دورې تفوق طلبي لېدل کېږي. دوی د وروسته پاتیوالي علتونه پوره نه ښکاره کوي، خو معلول ته یې اشاره کوي. لکه چې پورته وشمېرل شول، ټول یې د پرمختیایي

اقتصاد معلولونه وو. بیا هم په لنډ ډول وایو چې د پرمختیایي هېوادو د پوره اقتصادي ودې نه کولو او وروسته پاتې والي درې عمده علتونه بیانېدلای شي: یو یې په تېرو وختو کې د استعمار تسلط، د موجوده نړېوال اقتصادي نظم فعلي چلند او تسلط او درېیم یې د دوی داخلي فکتورونه لکه: ناوړه اداره، استبداد، بې کفایته سیاست، عدم تحرک،خرافات، بی اتفاقي، ټولنیزې ستونزې او یو شمېر نور دي. دغه مسایل به راتلونکو څپرکیو کې وڅېړل شي خو لومړی باید د پرمختیایي هېوادو ګډې نښې په ګوته شي.

## لنډیز

ډېره ضروري ده، چې موږ د اقتصادي پرمختیا، د ودې او ترقۍ توپیرونه وپېژنو او هر یو په خپل ځای استعمال کړو، لکه چې ویل شوي، پرمختیا په اقتصادي جوړښت کې د بدلون سربېره هر ډول سیاسي، اجتماعي کولتوري او نور بدلونونه را اخلي، یعنې په ټولنه کې د خلکو په ژوند کې هر ډول کیفي او کمي مثبت تغیر د دوامدارې پروسې په توګه پرمختیا ده، خو اقتصادي وده پرته له اقتصادي پرمختیا ممکنه ده، مګر اقتصادي پرمختیا پرته له اقتصادي ودې ناممکنه ده، اقتصادي پرمختیا په یوه پراخې معنا د ډېرو اړخونو لرونکې اصطلاح ده او د اقتصادي ودې د اصطلاح په پرتله پراخه مانا لري. د اقتصادي ودې اصطلاح یوازې د مادي مسایلو په برخه کې مثبت تغیر دي، خو کله چې موږ اقتصادي ترقي (Economic Progress) وایو، نو د خلکو د ژوند د ښه والي په مانا ده، چې یو اوسط حد ورته ټاکل کېدای شي، نو د ترقۍ او ودې د رابطې، نژدېوالي، فرق او یو پر بل یې د اغېزې په هکله باید ووایو، چې ددې دواړو توپیر یوه اړتیا ده، د بېلګې په توګه، کله چې د وګړو زیاتوالی او وده د محصولاتو له ودې څخه زیاته وي، نو ښکاره خبره ده، چې د وګړو د ژوند کچه به ټیټه وي، دا هم باید په یاد وساتو، چې ممکن ځینې وخت په یوه ټولنه کې د وګړو د ژوند کچه ټیټه وي، خو صرف د عاید رقم او عدد لوړ تللی وي، نو باید اجتماعي عامه رفاه له دغه رقم څخه ځار نه شي. په دې توګه ښکاره شوه، چې د فقر د ښه پېژندلو په خاط باید موږ په دغو درېیو مفاهیمو پوه شو او د فقر یا بېوزلۍ له حالت څخه د وتلو لپاره د پرمختیا میکانېزم ته ځان ورسوو او اقتصادي ثبات تر لاسه کړو، د فقر په ضد مستقیمه مبارزه داده، چې د بېوزلۍ عوامل رفع او د پرمختیا میکانېزمونه ترلاسه کړو، د بېوزلۍ عوامل هم اقتصادي دي، هم غیر اقتصادي او د پرمختیا میکانېزمونه دا دي، چې (PCI) لوړه کړو، د پانګې د ټولېدو مرحلې (Capital Accumulation) ته ورسېږو او درېیم میکانېزم دا دی، چې پانګه باید په مولده یا تولیدوونکي سرمایه بدله شي او په تولیدي برخو کې په کار ولوېږي. په اکثرو هغو انکشافي تیوري ګانو کې چې پخوا توضېح شوي، اقتصادي رشد یا اقتصادي وده (Economic Growth) د انکشافي اقتصاد له

مهمـو اهـدامو څخــه شــمېرل کېــږي. دا هــدف انکشــافي سياســت ټــاکي، پرمختيــايي هېوادونــه پــه مجمـوع کــې پــه تېـرو وختونـو کــې پــه نسـبي توګــه د چټکــې ودې مراحـل تېـر کـړي دي، پـه هغـو پرمختيـايي هېـوادو کـې چـې هلتـه فقـر يـا بېـوزلي ليـدل کېـږي، د انکشـافي سياسـت د اهـدافو پــه چوکـاټ کـې پـه عمـومي توګـه پــه اقتصــادي تـولنيزو او سياســي برخـو کــې د پرمختيـا يـا انکشـاف د کچـې لـوړوالی ددې هـدف لپـاره دی، چـې له فقر څخه خلاص شي او له پرمختللو صنعتي هېوادو سره يې فاصله کمه شي.

تمرينات

۱.پروفيسور ماير او پروفيسور بالدوين اقتصادی پرمختيا په څه ډول تعريف کړی وه ؟

۲.دملی عايد او نفوسوترمنځ اړيکه يعنی څه؟ په فرمول کی يی هم وښاياست.

۳.داقتصادی پرمختيا دمطالعې ارزښت تشريح کړئ.

۴.نرکسی کوم هيوادونه پرمختيايی بولی؟

۵.دشلمې پيړی له نيمايی بيادهغی ترپای پورې دنړۍ هيوادونه په کومو برخو ويشل شوی وو؟

۶.کوزنتز د پرمختيا په هکله څه ويلی و؟

۷.پرمختيا او ترقی يوبل سره څه توپير لری؟

۸.ځيني خلک د وروسته پاتی اصطلاح ولی نه خوښوی؟

۹.وده، ترقی او برمختيا دريواړه جلا جلا تعريف کړئ؟

۱۰.افغانستان د نړۍ په کومو هيوادوکې شميرل کيږی او ولی؟

# دویم څپرکی
# د پرمختیایي هېوادو عمومی ځانګړتیاوې

د اقتصاد د علم له نظره داسې نښې او معیارونه شته چې د هغو له مخې یو هېواد ته پرمختیایي هېواد ووایو:

## ۱ . د هېواد د ټولې پراختیا په اندول د نفوسو لږوالی

دې معیار کې پراخې ساحې ته ډېر ارزښت ورکړل شوی دی، حال دا چې په پرمختللو صنعتي هېوادو کې هم ممکن پراخه ډاګونه، وچې دښتې یا سړې پراخه سیمې موجودې وې چې وګړي پکې ژوند نه خوښوي. له بلې خوا داسې هېوادونه هم شته چې د ساحې له مخې یې نفوس زښت ډېر دی لکه چین او هند، خو بیا هم پرمختیایي بلل کېږي. سره له دې چې دا معیار یوه موده منل شوی وو خو ډېر ژر ورته د علماوو پام شو، نو ځکه یې ځینې نور معیارونه غوره او کره وبلل.

## ۲ . د پانګې کمښت

سرمایه او پانګه معمولاً هغو نغدو پیسو ته وایو چې په تولیدي پروسه کې یې په کار اچوو، د زېرمه کېدو وړ وي، د عامل په کارولو سره د محصول د ارزش اطلاق ورته کېږي، په بیا تولید کې ورڅخه استفاده کېږي او دغې عملیې ته سرمایه ګزاري Investment وایو.
په بله وینا: پانګه هغه نغدی یادجنس په توګه شتمني ده چې دنورې اضافی ګټې په موخه په کاراچول کیږي.
په تېره بیا پرمختیایي هېوادو کې په دغه مفهوم سره پانګه لږ ده چې د ګټې کولوښه امکان او لوړه ربح ولري. دا مشخصه دومره عامه ده چې پرمختیایي هېوادو ته د پانګې نه لرونکي اقتصادونه ویل شوي. د پانګې جوړېدنه(۲) زیاترو پرمختیایي هېوادو کې د دوی د ملي عاید په سلو کې ۵-۸ برخه جوړوي، خو په صنعتي پرمختللو هېوادو کې دغه سلنه ۱۵-۱۸ ښودل شوې ده. دا ددی لامل ده چې له یوې خوا پس انداز او له بلې خوا پانګې اچونې (په تېره مؤلدي او شاغلې "بوختوونکی" پانګې اچونې) ته د دغه هېواد خلک زړه نا زړه وي یا په

[2] پانګونه Capital Investment دا ښیي چې په یو هېواد یا یوه ملي اقتصاد کې د یو کال په موده کې په پانګه کې څومره زیاتوالی راغلی، دا مشخصه د نفوسو د ښه عاید او د هغه له امله د ښې زېرمې ښکارندویي کوي.

بله وینا وس یې نشي موندلای. د سړي سرګټې د زیاتوالي له لارې هم د پس انداز (پاسره،سپما او بچت کولو) لپاره هڅې هاند او تشویقي یا تحریکوونکې اغیزې (Demonstration) لرې دي. د دغو هېوادو خلک که لږ سپما او بچت هم ولري، هغه خپلو کورنیو ته په ګاڼو ورکوي او سره زر پرې اخلي یعنې خپله پاسره او پس انداز په نویو اقتصادي تشبثونو کې په کار نه اچوي. په دې ډول د عاید نامساواتي، د سروززرو ساتنه، بانکي سیستم ته بې پامي، عنعنوي ډېر لوړ لګښتونه او نور هغه لاملونه دي چې پس اندازونه کموي. په دې ډول د پانګې کمښت له یوې خوا علت او له بلې خوا په خپله یو معلول دی چې مؤلدیت په ټیټه سطحه کې پاتې شوی. که دوی بهر څخه پانګه اخلي د هغې ربح ډېره لوړه ده او له بلې خوا دوی د Risk له وېرې لوړې پانګې اچونې ته زړه نه ښه کوي.

## ۳ . د نورو تولیدي عواملو په پرتله د پانګې کموالی

دلته یو شمېر غیر اقتصادي عوامل لکه عدم مصئونیت، نامناسب حکومتونه، د وضعیت ژر ژر بدلېدل، د قانوني حمایو نشتوالی او داسې نور لاملونه شته چې په پرمختیایي هېوادو کې د کار د بشري ځواک، طبیعي شتمنیو او منابعو، ښه اقلیم او نورو سره سره د نورو تولیدي فکتورونو په پرتله پانګه لږه میسره او ولګول شي چې دا د ټیټ مؤلدیت سبب کېږي. په دې ډول د پانګې کمښت یوازینی مشخصه نه ده، بلکې دې سره نور لاملونه هم شته.

## ٤ . د ټولو مجموعي ملي محصولاتو په پرتله د صنعتي محصولاتو ټیټ اندول

اکثره پرمختیایي هېوادونه صنعتي سکتور کې وروسته پاتې دي. د نه صنعتي کېدو مشخصه، په خپله عامل نه، بلکې یو معلول دی. هغه اضافي عاید او ګټه چې د کرنې له سکتور څخه ترلاسه کېږي باید صنعت ته انتقال شي. په دې برخه کې د جاپان تجربه ډېره بریالۍ وه، نو ویلای شو چې د کرنې پراختیا او وده د صنعت د پراختیا او ودې لپاره ضرور ده، خو د کرنې په سکتور کې د ګڼ نفوس بوختیا چې کرنیز محصولات چندان نه زیاتوي د دې سبب کېږي چې صنعت وده ونه کړي.

## ٥ . د پرمختیایي هېواد عمر

په زړه پورې ده! یو شمېر څېړونکي دا دلیل وړاندې کوي او وایي چې هر څومره چې د هېواد درامنځته کېدو عمر کم وي هومره پرمختیایي دی! په داسې حال کې چې چین او هندوستان ډېر لرغوني هېوادونه دي، خو کاناډا او متحده ایالات ځوان هېوادونه دي، مګر د پرمختګ او ودې د درجې توپیر یې سرچپه دی، دا معیار د یو شمېر هېوادو لکه د پاکستان په شان هېواد ته صدق کوي، ځکه دغه هېواد یوازې ۶۰ کاله مخکې د هندوستان له نیمې وچې زیږېدلی اودانګلیسی استعمارپه لاس په یوې مصنوعی جغرافیا سره جوړ شو. ګڼ شمېر

افریقایي هېوادونه هم لرغوني هېوادونه دي، خو بیا هم د پرمختیایي هېوادو په ډله کې راځي، نو ځکه دا مشخصه هم چندان د منلو نه ده (وخت ځینو ته آبادي او ځینو ته ورانی راولي).

## ٦ . د سړي سرګټې د زیاتولو امکانات

دغه معیار د Riner له خوا په ګوته شوی. دی وایي که چېرې یو هېواد خپلو وګړو ته د ژوند د لوړې سطحې د چمتو کولو وس ولري او د نفوسو ورځ په ورځ زیاتېدو سره دوی همدا اوچته سطحه لا اوچتوي نو پرمختیایي هېواد دی.
په دې ډول لېدل کېږي چې د ژوند ټیټه سطح، د پانګې اچونې ټیټه سطح، د عواملو غیر مطمئینه عرضه چې اقتصادي وده نه چټکوي، نه کارول شوي طبیعي منابع، ودې او پرمختیا او په مجموع کې ژورو ټولنیزو بدلونو سره مینه نه ښودل او داسې نور د پرمختیایي هېوادو مشخص، معیارونه او ځانګړتیاوې دي، خو له دې پلوه په پرمختیایي هېوادو کې یو تر بله ډېر توپیرونه لېدل کېږي. د بیلګې په توګه د دوی د طبیعي منابعو ترمنځ توپیر، سړي سر حقیقی ګټې، GNP([٣])، د ودې درجه او د پرمختیا چټکوالی، د نفوسو د زیاتوالي په سلنه، د نفوسو تکاثف (ګڼوالی)، د بهرنۍ پانګې منلو ته شرایط، د کرنې څرنګوالی، فرهنګ، عقایدو او رواجونو، پاسره (انباشت یا پس انداز) د تکنالوژۍ په کار اچولو او یو شمېر نورو برخو کې توپیرونه لېدل کېږي، نو ځکه مو د دوی عمومي معیارونه په شپږو برخو کې په پورته توګه ذکر کړل چې په دې کې ځینې اقتصادي، ځینې سیاسي، ځینې تخنیکي او ځینې ټولنیز وو. خو ضرور ده یو ځل یوازې اقتصادي معیارونه له نظره تېر کړو، یعنې هغه معیارونه چې اکثراً اقتصادي اړخ لري (سره له دې چې ځینې اقتصادي عوامل سیاسي او اجتماعي مشخصاتو سره ګډېږي).

## د پرمختیایي هېوادو اقتصادي اساسي مشخصات

د مشخصاتو له مخې داسې کوم ټاکلی اقتصاد نشته چې د پرمختیایي اقتصاد د بیلګې په توګه یې شرح کړو او د نمونې په توګه یې وړاندې کړو، نو ځکه دلته د ټولو پرمختیایي هېوادو ګډ اقتصادي مشخصات په ډېر لنډ ډول راوړو کوم چې تر ډېره حده اقتصادي اړخ لري:

### ١ . ډېره ټیټه سړي سرګټه

د څېړنو له مخې په اتیایمه لېږدیزه لسیزه کې دغو هېوادو کې سړي سرکالنۍ ګټه تر ۲۰۰ ډالرو رسېدله په داسې حال کې چې دغه شمېره په متحده ایالاتو کې ۲۵۰۰ کاناډا ۱۷۰۰

---

[٣] GNP ملي مجموعي تولید یا د هېواد په سطحه ټول محصول .(General National Production)

سوېدن کې تر ۳۰۰۰ رسېدله،په ۲۰۱۶م. کال کې دیو شمیر هیوادونو د( PPPیا (purchasing power parity مقایسه بنیي:

افغانستان۶۴۴

اتریش۵۱۱۸۱

استرلیا۶۱۱۶۶

سومالیا۴۰۰

بروندی۷۰۰

په ۲۰۱۵م. کال کې د نړۍ پرمخ د بډایو او بیوزلو هیوادو او سیمو یوه نسبی مقایسه په دې ډول ده:




*څومره چې رنګ تورشوی دی، هومره د ښه اقتصاد معنا لری*

نو د پورته علتونو له مخې یې د ژوند سطحه ټیټه د مصرفي اجناسو ډول یې ډېر وروسته پاتې، خواړه یې غیر مکفي،دښووني اوروزني کچه یې ټیټه،وزګارتیا، د کور ډول او اسباب یې لومړني او غیر صحي دي، دوی په کورونو کې د څښلو له صحي اوبو، ګاز، برېښنا، عصري تشناب،ورځپاڼو اوکلتوری خدماتو او داسې نورو څخه بې برخې دي. د بېلګې په توګه په هندوستان کې د شلمې پېړۍ پنځوسو کلونو کې په ۷۰ میلیونو کورونو کې ٤٤٠ میلیونو وګړو ژوند کاوه د دوی لوازمو د پخلي وسایلو،تشنابونو او نورو د پرمختللو هېوادو سره ډېر توپیر درلود په همدې کال کې د انګلستان سړي سرګټه د هندوستان ١٤ برابره زیاته او د متحده ایالاتو ۳۱ ځله ورڅخه زیاته وه، نو ځکه په داسې هېوادو کې صحي خدمات چمتو نه وي، بې سوادي پکې زیاته او ګڼ شمېر ناروغۍ پکې موجودې وي. د سیاسی شنونکو په وینا:افغانستان څلوېښت کاله د افراطیونو له خوا یوې نیابتی او استخباراتی جګړی سره مخامخ دی چې ددغې جګړې دمعنوی نه اټکل کیدونکی زیان ترڅنګ دهیواد اقتصادی زیربنا ته ډېر لوی زیان رسیدلی دی.

پرمختیایی هیوادونه په مجموع کی د خپلو تولیداتو او مولدیت د کچې له پلوه په ډیره ټیټه کچه کې دي، لاندی جدول د دوی دریځ د نولی نړی په پرتله په مقایسوی توګه ښکاره کوی.

Fig.1 : Share of Global Income




Source: *Micael P.Todaro(2015), Economic Development(12th edition),PEARSON published. P.58 .*

پورته شکل په ترتیب سره:
٪۵۵لوړعاید لرونکی هیوادونه
٪۱۸ختیزه آسیا او پسفیک حوزه
٪۸لاتینه امریکه او کارابین
٪۷اروپا او مرکزی آسیا
٪۷جنوبی آسیا
٪۳شمالی افریقا او منځنی ختیځ
٪۲جنوبی افریقا.

## ۲ . په لومړنیو مصرفي توکیو د GNP زیات لګښت

د پرمختیایي هېوادو یوه بله ګډه مشخصه دا ده چې د دوی د GNP زیاته برخه یوازې په لومړنیو مصرفي توکیو، خامو موادو، خوراکي توکیو او نورو لګېږي. ګڼ شمېر وګړي په کرنه بوخت دي خو بیا یې هم مولدیت ډېر ټیټ وي د بېلګې په توګه په یو شمېر آسیایي او

افریقایي هېوادو کې د ټولو وګړو دوه پر درېيمه برخه وګړي کرنه کې بوخت دي. لاتينه امريکا کې درې پر څلورمه برخه وګړي کرنه کې بوخت دي. يو شمېر دغه هېوادونه منرالونه استخراجوي، خو د خپلو ملي صنايعو د نشتوالي له کبله يې بهر ته صادروي يعنې د دوی خام مواد اکثراً بهر ته ځي.

## ۳ . دوه ګونې اقتصاد (Dualistic Economy)

تقریباً اکثرو پرمختيايی هيوادوکې دوه ګونې اقتصاد يعنې يو يې بالکل د طبيعي اقتصاد سره مشابه(عنعنوی) اوبل يې دبازار اقتصاد دی. د دوی عنعنوي اقتصاد ډېر مړ ژواندې بڼه لري. دې ته Subsistence Economy هم وايي او بل يې لږ څه پرمختللی اقتصاد دی چې د بازار اقتصاد Market Economy يې بولي. په دې معنا چې لومړی ډول اقتصاد په کرنه متکي دی ځينې حرفې لکه کلالي، پېنګري، ترکاڼي او نور. توليدد جنس (غلې- دانې) په مقابل ترسره کېږي، بازار سره يې اړيکې ډېرې ضعيفې دي د بيوميکانيزم ډېر ابتدايي دی، خو دويم ډول اقتصاد چې ښارونو کې رواج شوی لږ څه ښه دی ان دا چې بانکي سيستم، کريدت، بيمې، ترانسپورت، سينما، تيلفون، پارکونه، عصري ودانی، ښوونځي او پوهنتونونه، د سوداګرۍ مرکزونه، فابرېکې، دولتي دفترونه او نور لري او دبيوميکانيزم يې هم منظم وي. په دې ډول د لومړي ډول او دويم ډول يعنې ښارونو او کليو ترمنځ زښت زيات واټن لېدل کېږي. له نېکه مرغه په دې وروستيو ديرشو کالو کې دافغانستان د کليو او ښارونو ترمنځ دغه ډول واټن کم شوی دی، خو په مجموع کې په دواړو کې بيوزلی شته. داقتصادی مطالعاتوپه پرمختګ سره اوس ځينو پرمختيايي هېوادو کې د کانونو ايستلو، نفتو، ګازو او نورو پروژې پيل شوې چې د کورنيو او بهرنيو پانګو په واسطه پرمخ ځي په دې ډول د دوی اقتصاد درې ګونې بڼه نيولې. د بېلګې په توګه په مرکزي آسيا کې د نفتو صنايع، ماليزيا کې د ربړ کرنه او توليد، سيليون کې د چای بېلګې راوړلای شو. د هند او چين د صنعتي کېدو په پيل کې يوازې ۳ فيصده پانګه د دوی کورنۍ پانګه وه نوره يې بهرنۍ وه. په سيليون کې د کورنۍ پانګې د کمښت له امله ۸۵ فيصده پانګه بهرنۍ وه او په ملايا کې په سلو کې ۷۰ بهرنۍ پانګې عمل کاوه. په تېره دانګلستان پانګه پکې ډېره وه. دغه لامل تر ډېره وخته دوی بهر پورې تړلي ساتلي وو او د دوی اقتصادي خپلواکۍ ته يې زيان اړولی وو او د دوی ملي منابع او ملي پانګې د استثمار او ګټې اخيستنې لاندې وې چې د دوی وروسته پاتيوالي يې نور هم اوږد کړ، خو يو شمېر نورو بيا د سرې سرګټې په زياتېدو ورو ورو بهرنۍ سرمايوي سهم راکم کړ او اقتصادي خپلواکي يې ټينګه کړه او خپل طبيعي منابع يې خپله وکارول، خپل خام مواد يې د بهرنيو صنعتي اقلامو مقابل کې په ښه بيه بهر ته صادر کړل.
ارقام

| The urban population in developed countries and developing regions. | | |
|---|---|---|
| Regions | Populations (millions, 2009) | Urban shares (%) |
| World | 6810 | 50 |
| More developed countries | 1232 | 75 |
| Less developed countries | 5578 | 44 |
| Sub Saharan Africa | 836 | 35 |
| Northern Africa | 205 | 50 |
| Latin America and the | 580 | 77 |
| Caribbean | 231 | 64 |
| Western asia | 1726 | 31 |
| South central asia | 597 | 43 |
| Southeast asia | 1564 | 51 |
| East asia | 295 | 69 |
| Eastern Europe | | |
| Source: population reference bureau, 2009 world data sheet. | | |

## ٤ . په ګنو طبيعي سرچينو او پنځيزو شتمنيو نه لاسبرى

د دوی يوه بله اقتصادي مشخصه دا ده چې ګڼ شمېر طبيعي سرچينې او پنځيزې شتمنۍ يې لاسبري لاندې نه دي راغلي. کوم شمېر منابع چې کارول کېږي هغه په غير علمي لارو چارو، ناوړه او د دوی د اقتصاد په زيان کارول کېږي، خو دغو هېوادو کې يو شمېر يې د نويو علمي اختراعاتو او وسايلو په مرسته خپل منابع وپېژندل او له هغو څخه کاراخيستل يې پيل کړي دي. دوی يو شمېر لګيا دي په علمي ميتود پر خپلو طبيعي شتمنيو څېړنه کوي او هغه بهره برداري لاندې راولي. د بېلګې په توګه دوی پوره پراخې د کرنې وړ ځمکې لري چې د اوبو رسولو د مجهز سيستم په واسطه يې ورځ په ورځ کار لاندې راولي، يو شمېر يې ښه منرالونه، ځنګلونه، څړ ځايونه او د انرژۍ پوره امکانات لري. د بېلګې په توګه هندوستان همدا اوس ۹۰ ميليونه ايکړه د کرنې وړ لامزروع ځمکه لري! په برما کې ۱۹ ميليونه ايکړه ځمکه په ډېره آسانۍ کرنې لاندې راتلای شي په عراق کې يوازې ٦ ميليونه ايکړه ځمکه کرل کېږي حال دا چې ۲۰ ميليونه ايکړه نوره هم د کرنې وړ ده. ترکيه چې تقريباً اقتصاد يې ډېر ښه شوی کرنيزې ځمکې يې ۲٥-٤٠ ميليون ايکړو نورې هم پراخېدای شي او افغانستان هم په جنوب او جنوب لويديزو ولايتونو کې دکرولو لپاره پراخه ځمکې لرى، چې داوبخور سيستم په جوړولو سره ۹۰ ميليونو تنو ته غنم توليدولای شي. په افريقا کې پوره د

میسو او سرو زرو زېرمې شته په آسیایي پرمختیایي هېوادو کې کافي د اوسپنې او نفتو کانونه او په لاتینه امریکا کې د ځنګلي ونو د محصولاتو، وسپنې او پټرولو زېرمې او امکانات شته، په دې وروستیو کې دغه ګڼ شمېر زېرمې ترکار لاندې نیول شوي دي. په دغو هېوادو کې د انرژۍ په سلو کې ۹۰ امکانات کار لاندې نه دي راغلي، د دوی ګڼ شمېر سیندونه د برېښنا د تولید امکانات لري د دوی ګڼ شمېر ځنګلونه د بهرنی پانګې په واسطه د نورو هېوادو په ګټه کارول کېږي او د څړځایونو څخه یې هم کافي او علمي استفاده نه ده مروج شوې.

## ۵ . د خوځنده او داینامیکو تشبثونو او ګټورو اقتصادي بوختیاوو نشتوالی (Lack of Enterprise and Initiative)

په اقتصادي وده کې دینامیک تشبث ډېر ارزښت لري. دا له کلي پیل کېږي بیا لږ څه خوځند تشبثونو پورې رسېږي. د بېلګې په توګه په اطرافونو کې ټولې کرنیزې ځمکې خپلې تشدیدي او لوړ استعمال ته نږدې کېږي ورسره کب روزنه، مچۍ روزنه، چرګانو روزنه،لاسی کلیوالی صنایع او دتوریزم صنعت پیاوړی کیږی ، د صعنتي اوطبی بوټو کرنه پراخېږي. دا په ښارونو کې صنعت ته خام مواد چمتو کوي له بلې خوا د لومړنیو صنایعو پاخه محصولات همدې برخو کې پیرودل کېږي. ورو ورو سوداګري پیاوړی کېږي د مارکېټ نظم برقراره کېږي، کریدیټ بنه نیسي په ښاري مارکېټ کې محتکر او دلال هم پیاوړی کېږي، د کورنۍ سوداګرۍ وده بهرنۍ سوداګرۍ کې وده راولي او دا د وارداتو په پرتله صادراتو کې ښه بدلون راولي یعنې د وارداتو تعویض امکان مومي، خو لکه چې لېدل کېږي تراوسه لاهم یو شمېر پرمختیایي هېوادونه د اقتصادي، اجتماعي او کلتوري مناسبې او مساعدې فضا د نشتوالي له کبله تشبثاتي او تخنیکي فعالیتونو کې وروسته پاتې دي او دې برخه کې هڅه، تشویق او تحرک نه لېدل کېږي، یوازې یوه کوچنۍ طبقه متشبثین هغه هم پور ورکوونکي سوداګر او محتکرین پکې لېدل کېږي چې د مارکېټ ځینې برخې یې نیولي، یو شمېر غولوونکي غیر مؤلد تشبثونه شته چې په ملي مجموعي تولیداتو کې ونډه نشي لرلای.

## ٦ . د تکنالوژۍ ټیټه سطحه (یا تکنالوژیکي وروسته پاتی والی (Technological Backwardness

سره له دې چې پرمختیایي هېوادو کې یو شمېر ټولنیزو ډګرونو کې د پرمختللي ټکنالوژۍ ځینې بېلګې شته، خو د اقتصاد ټول ډګر یې نه دی نیولی، نو ځکه د دغو هېوادو ټول ټولنیز جوړښت په لازمه توګه بدلون نه دی موندلی. په دغو هېوادو کې د تخنیک په ډېره لوړه بیه تمامېږي، خو مؤلدیت یې کم وي، فني ماهرین پکې لږ دي او کافي پانګه هم نشته، نو ځکه په نوي او عصري تکنالوژۍ د زړې تکنالوژۍ بدلول او تعویض ستونزو سره مخ دي. په دې ډول تخنیکي وروسته پاتې والی نه یوازې دا چې یو علت دی بلکې دا یوه ناوړه نتیجه(معلول) هم ده.

## ۷ . د نفوسو فشار

نه یوازې د نفوسو کتله، بلکې د نفوسو چټکه وده د پرمختیایي هېوادو مشخصه بلل شوې چې دا یوازې هند او چین پورې نه ده تړلې، بلکې اکثرو پرمختیایي هېوادو کې لېدل کېږي چې دا به راتلونکې کې دوی ته ګڼ شمېر اقتصادي، اجتماعي، صحي، محیطي، فرهنګي او ان سیاسي ستونزې رامنځ ته کړي، که چېرې دوی خپل اقتصاد ته په مناسبه توګه وده ورنه کړي. لکه چې لېدل کېږي په لاتینه امریکا، افریقا او اسیایي پرمختیایي هېوادو کې د ۱۵ کلنو څخه د ټیټ عمر وګړو سلنه ٤٠ ته رسېږي! په داسې حال کې چې په متحده ایالاتو کې ۲۵ او په انګلستان کې ۲۳ ده.په افغانستان کې دنفوسو کلنۍ وده په سلو کې تر دریوپورې ښودل شوې ده. دشلمې پیړۍ په پای کې په پرمختیایي هېوادو کې د عمر منځني کلونه یوازې او یوازې ۳۲ -٤٠ کلونو ښودل شوي حال دا چې د امریکا متحده ایالاتو، کاناډا او ناروې کې ٦۹ ښودل شوي، په بلجیم کې ۷۴ ښودل شوی و. په دې وروستیو کې چې روغتیایي چارې ښې شوي په پرمختیایي هېوادو کې دا عدد ٤۷ او په صنعتي شوو پرمختللو هېوادو کې ۷٤ ښودل کېږي، کله چې نړیوالو دزریز اهدافو ته کار کاو دنفوسو توقع کیدونکی عمر په هکله نوی ارقام په دی توګه نشر شول:

*۲-جدول: د بیلابیلو ځلورو کتګوریو کی سړی سرعاید او منځنی عمر*

| Indicators of economic welfare in four groups of countries, 2011 | | |
|---|---|---|
| Income group | GDP per capita (2011 US dollars) | Life expectancy (years) |
| Low income | 635 | 57 |
| Lower middle income | 2298 | 66 |
| Upper middle income | 7239 | 72 |
| High income | 43718 | 80 |
| Simple average of male and female life expectancies.<br>Source: world bank. | | |

دا ارقام د ناوړې روغتیا او ناوړو شرایطو له امله دومره توپیر لري او له بلې خوا ارقام ښکاره کوي چې پرمختیایي هېوادو کې د عاید ډېره برخه د ماشومانو لګښتونو ته پرېښودل کېږي چې هغوی هم ګڼ شمېر یې د کار او بهره برداری عمر ته تر رسېدلو دمخه له منځه ځي. په دې ډول

د دوی په ټول نفوس کې د کار د ځواک سلنه([4]) ټیټه ده نو ځکه دغه منفي ښکارنده د دوی په ملي عاید منفي اغیزه کوي.
اوس د نړۍ نفوس په ګړندی ډول مخ په زیاتیدو دی، په تیره بیا دپرمختیایی هیوادو نفوس د دوی د اقتصادی ودې په پرتله ډیر دزیاتیدو په حال کې دی. نوی ارقام ښیي چې په هرو څلورو ورځو کې یومیلیون تنه دنړۍ په نفوس وراضافه کیږی. له ۱۸۰۴م. څخه تر ۱۹۲۷ پوری د۱۲۳کلونو په ترڅ کې دنړۍ نفوس له یو بیلیون څخه دوه بیلیونه ته لوړ شو، خو یو بل بیلیون بیاپه۳۳ کلونو کیزی وربادنې ورزیات شو، وریسې په ۱۳ او ۱۴ نورو کلونو کې دوه بیلیونه نور وربادنی زیات شو، اوس د نړۍ له نیمایی زیات نفوس پرمختایی هیوادو کی دی، حال دا چې ددوی ونډه په جهانی تولید کی ډیره ناچیزه ده،پرمختللی هیوادونه چی دنړی صرف٪۲۴نفوس لری ، دټولی نړی٪۵۴تولید لری. دا په داسې حال کې چې دپرمختللو هیواونو دنفوس ډیره برخه ښاری نفوس دی، مګر لا اوس هم د پرمختیایی هیوادو نیمایی یا له نیمایی زیات نفوس کلیوالی دی. لاندې جدول دغه حقیقت ښه څرګندوی:

*۱-جدول: د پرمختللو او پرمختیایی هیوادودکلیوالی او ښاری نفوسو برتله*

| The urban population in developed countries and developing regions. | | |
|---|---|---|
| Regions | Populations (millions, 2009) | Urban shares (%) |
| World | 6810 | 50 |
| More developed countries | 1232 | 75 |
| Less developed countries | 5578 | 44 |
| Sub Saharan Africa | 836 | 35 |
| Northern Africa | 205 | 50 |
| Latin America and the | 580 | 77 |
| Caribbean | 231 | 64 |
| Western asia | 1726 | 31 |
| South central asia | 597 | 43 |
| Southeast asia | 1564 | 51 |
| East asia | 295 | 69 |
| Eastern Europe | | |
| Reported by: population reference bureau, 2009 world data sheet. | | |

Source: *Michael P.Todaro et all,(2015). Economic Development (12th edition).PEARSON publisher. P.65* .

---

[4] د کار بشري ځواک Manpower یا Working Population هغه د کار مستعد وګړي دي چې په خپل هر ډول فعالیت سره ملي تولید کې برخه اخیستلای شي. معمولاً د ۱۵-۲۰ کلونو وګړي په بر کې نیسي، خو دغه سني ګروپ کې نظامیان، محصلین، روحانیون، بیکاره زندانیان او مجرمین نشي راتلای.

## ۸ . بیکاري (وزګارتیا)

له بده مرغه په پرمختیایي هېوادو کې بیکاري نه یوازې اقتصادي منفي ښکارنده ده، بلکې د هغې له امله ګڼ شمېر ټولنیزې، سیاسي، کلتوري او نورې ستونزې راولاړېږي. بله خوا دا چې نه یوازې دلته ښکاره بیکاري لېدل کېږي بلکې د بیکارۍ نور ډولونه لکه پټه بېکاري، ټیټ استخدام او د هغو په بېلابیلو بڼو لکه موسمي بیکاري غولونکي تشبثونه (لکه د ستفرو شان چې په تولید هېڅ نه ورعلاوه کوي او نه هم د مارکیټنګ پروسه کې کوم ګټورتوب اضافه کولای شي)، ټیټ مؤلدیت او نورعوامل هم دې کې شمېرل کېږي. بیکاري او ټیټ استخدام Unemployment and Disguised Unemployment تر ډېره ځایه د هغو پرمختیایي هېوادو ګډه مشخصه ده چې د نفوسو ګڼوالي سره مخامخ دي یعنې هغو کې د نفوسو کثافت، د نفوسو د سن یا عمر ناوړه ترکیب او د ودې چټکوالی (Size, Density, age- Structure and the rate of growth of population) ښکارنده پکې لېدل کېږي. د دې بېلګه د آسیا د وچې جنوب شرق هېوادونه ګڼلای شي. خو موسمي بیکاري او ټیټ مؤلدیت یې په ټولو پرمختیایي هېوادو کې لېدل کېږي. سره له دې چې لاتیني امریکا او یو شمېر افریقایي هېوادو کې هم نفوس زیات دی، خو د وزګارتیا پورتنی بڼې پکې نشته. په پرمختیایي هېوادو کې دغه ډول بېکاري د کرنې په سکتور کې ډېره لېدل کېږي ان دا چې د هغوی د مؤلدیت او د تولید طرز صفر بلل شوې! ځکه کرنیز مؤلدین مارکېټ ته ډېر لږ محصول عرضه کولای شي نو ځکه دوی که له یوې خوا د صنعتي اقلامو واردوونکي دي له بلې خوا دغلې- دانې واردوونکي هم دي. د اقتصاد د عمل له پلوه پټه وزګارتیا د نفوسو هغې برخې ته ویلای شو چې که چېرې هغوی کوم بل سکتور ته بوځو، نو د محصول په تولید کې کموالی رانه شي. د ملګرو ملتونو متخصصینو پټه بېکاري په هندوستان، پاکستان، فلیپین او اندونیزیا کې په کرنې کې د بوختو وګړو په سلو کې ۲۰-۲۵ ښودلی.په افغانستان کې په سلو کې ۴۳وګړی وزګارښودل شوی دی( ۲۲/۲/۱۳۹۶دنړیوال بانک راپور).

## ۹ . د عنعنوي سکتور مسلط والی

په ګڼ شمېر پرمختیایي هېوادو کې لا اوس هم (یووېشتمه پېړۍ کې) په تولیدي برخه کې وروسته پاتې تولېدي طرز لاسبری دی. په دغو هېوادو کې د دوی اقتصادي جوړښت او د هغه وده او پرمختیا د ښارونو او کلیو د نفوس له انډول څخه اغیزمن دی. په ټول نفوس کې د ښاري نفوس کموالی د دوی وروسته پاتیوالی ښیي یا د دې سرچپه، ښاري خدمات، آسانتیاوې او د معاصر ژوند بېلګې دهېواد ډېرو برخو ته نه دي رسېدلي، په تېره بیا د Rande د نظر سره سم؛ دوی لا اوس هم د تعصب، اوهامو او فتالیزم څپو لاندې دي.

## ۱۰. بهرنۍ سوداګرۍ پورې تړلتیا

معمولاً پرمختیایي هېوادونه خپل خام مواد بهر ته صادروي، د دې پر ځای مصرفي توکي(اجناس)اود لومړنۍ اړتیا (Basic Human Needs) توکي له بهره پوره کوي. په تېره بیا دوی خپل یو شمېر خام مواد او پیداوار ان پرته له لومړني پروسس (لکه میوه نه کنسرو کېږي او نه بوتل بندي کېږي) لرګي د غټو کوندو په بڼه، طبي بوټي په هماغه طبیعي بڼه په ډېره ارزانه بیه بهر ته لېږي په تېره بیا دوی خپل دغه منابع په غیر علمي، ابتدایي او ناسنجول شوې بڼه راټولوي او د بهرنیو سوداګرو په لاس یې ورکوي، بالمقابل دوی ته یو شمېر توکي د لیلام په بڼه، جعلي او د ټیټ کیفیت لرونکي صنعتي اقلام د مشهورو کمپنیو تر مارک لاندې، له وخت څخه اوښتي مواد په برخه کېږي. دغه بېلګې په بهرنۍ سوداګرۍ کې د دوی دریځ خرابوي. د پرمختیایي هېوادو د صادراتو سلنه د دوی د ټول ملي عاید له ۲۰فیصدوڅخه کمه ده. په ځینو پرمختیایي هېوادو کې د دوی د خارجي اسعارو لوی مدرک یو دوه قلمه اجناس دي. د بېلګې په ډول په ایران، سعودي عرب او کویټ او وینزویلا کې یوازې همدا نفت د دوی د صادراتو غوره برخه جوړوي، لکه چې لېدل کېږي په دوی کې ایران د یوویشتمې پېړۍ په پیل کې خپل ګڼ شمېر نور اقلام لکه فرش، کمپلې، صابون، پلاستکي مصنوعات او نور هم بهر ته وړاندې کړل. مالیزیا او اندونیزیا اوس هم عمدتاً ربړ صادروي، سیلیون یوازې ربړ او چای صادروي، چلي یوازې سپین زر، یوګندا، تایلنډ او رودیشیا قهوه صادروي، خپلو نورو اقتصادي محصولاتو ته یې وده نه ده ورکړې، نو ځکه یې صادرات محدود دي. دغه وضعیت او اکر دوی بهرنۍ سوداګرۍ پورې تړلي او نورو سکتورو ته یې پام نه دی اړولی، نو ځکه د تبادلې په نرخ کې د نوساناتو له کبله د دوی اقتصاد بې ثباته او ترینګلی دی. د اقتصادي اکر دغه کاواکي د دوی یوه ښکاره اقتصادي نښه ده. له بده مرغه په دوی کې وارداتي میلان د پراختیا په حال کې دی. ځینې ارقام وایي چې د افغانستان په بهرنۍ سوداګرۍ کې په سلو کې ۹۵ واردات او پاتې صرف پینځه یې صادرات دی!

## ۱۱ . وروسته پاتې نظم او اداره

د پرمختیا لپاره ضروري مؤسسات یا اصلاً نه شته یا یې هم لازمه وده نه ده کړې. په کلیو کې د مالي او کریدتي مؤسساتو نمایندګي نه شته. بانکي څانګې نه دي پراخه شوي کواپراتیفي غورځنګ ضعیف دی، دمارکېټ میکانیزم پکې ډېر ساده دی، د اسهامو پلورل پیرودل پکې معمول نه دي. صنعتي بانکونه، رهني بانکي څانګې ډېرې وروسته پاتې او سیمه ییزې پاسرې(سپما) ډېرې لږې زېرمه کېږي. د بیمې مؤسسو وده نه ده کړې د پانګې اچونې تحرک نشته، لا اوس هم فیوډالي سیستم لېدل کېږي. باوجدانه ماهر او چټک اداره چیان لږ دي. ټولنیز نظم ډېر وروسته پاتې دی اقتصادي برنامې نه جوړېږي او په نهایت کې حاکمه اداره ضعیفه ارزیابي شوې.دشفافیت نړیوالی اداری په افغانستان کې فساداو دپیسومینځلو راپورونه خپاره کړی او سرویګانې وایی چې په کال کې میلیونونه ډالره رشوت اخیستل کېږی.

## ۱۲ . د بشري پانګې خوار والی (ضعیف کیفیت)

سره له دې چې د کار د بشري ځواک په هکله پخوا یادونه وشوه، خو د هغو د اقتصادي اړخه ارزونه بېله خبره ده، په دې معنا چې: له دې کبله چې بشري ځواک د خپل کار، فعالیت، مهارت او اداري له مخې د اقتصاد په رغاونه کې خورا ارزښت لري د اقتصاد په علم کې دا هم پانګه بلل شوې، خو په پرمختیایي هېوادو کې د دغې (پانګې) مؤلدیت ډېر ټیټ دی، چې د دې بېلابیل لاملونه دي: ناوړه تغذیه، د ځواکمنې روغتیا نشتوالی، نالوستي یا بیسوادي، ضعیف ټرېننګ، کار ته نه درناوی او داسې نور.

Developing regions log for behind the developed world in productivity measured as output per worker.




Source: *Mechael P.Todaro (2015) Economic Development,(12th editin), PEARSON publisher. P.58* .

په دې ډول هېوادو کې لا اوس هم د عنعنوي سیستم د شتوالي له کبله د شغل غوره کول محدود دي. په زړه پورې خو دا ده چې دلته د کار پر عرضه د مزد د ورکړې په پرتله ځینې کلتوري او رواني فکتورونه ډېر اغېزمن دي. د بېلګې په توګه زموږ په هېواد کې به د کلي یو ځوان په ډېر مشکله حاضر شي چې د موسیقي ارکسترا کې غړی شي یا د اوبدلو صنعت ته مخه کړي یا د نظافت ساتلو تشبث (حمام، سرخریېل او سقاوه) پرانېزي، په داسې حال کې چې دا ټول هڅوونکي اقتصادي ګټور فعالیتونه او د ټولنیزو چوپړونو برخه ده، داسې ځوانان زموږ ټولنه کې یو شمېر داسې شغلونو ته نه حاضرېږي چې د ډم، جولا یا کسبه کار نوم ورته په خپل کلي کې غوره نه کړي! له بلې خوا داسې هېوادونو کې صنفي اتحادیې هم نشته، د دوی قوانینو کې د کار او کارګر د حمایې مواد نشته او له بیمو هم بې برخې دي. د مسلکي کورسونو او زده کړې مرکزونو تخنیکي حرفوي ښوونځیواو( community college ) د نشتوالي له کبله د دوی مهارت ټیټ ارزیابي کېږي دا ټول د بشري ځواک خوار والی ښکاره کوي.په دې ډول وضعیت کې د مبتکرمتشبث تبارز ډېر ستونزمن ښکاري، هغه چې شومپټر

ورته ډیر زیات ارزښت ورکړی او مبتکر متشبث یی د اقتصادی پرمختیا لپاره یو ضرورت ګڼلی دی.دغه ټول عوامل یو بل سره لاس ورکوی او په پایله کی د دوی او پرمختللو هیوادونو دتولید ترمنځ ډیرزیات واټن لیدل کیږی، لاندی جدول ( Output/capit) دفی نفر دکاردمحصول دارزش مقایسه ښکاره کوی:

| Output per capita in selected countries, 1960 – 2010 (in 2005 US dollars) | | | |
|---|---|---|---|
| Out put per capita | | | |
| Country | 1960 | 2010 | 1960 – 2010 annual average growth rate (percent per year) |
| Industrialized in | | | |
| 1960 | 12949 | 35810 | 2.1 |
| Canada | 9396 | 29145 | 2.3 |
| France | 7807 | 41558 | 3.4 |
| Ireland | 7924 | 27227 | 2.5 |
| Italy | 4404 | 31815 | 4.0 |
| Japan | 6008 | 25797 | 3.0 |
| Spain | 11710 | 33627 | 2.1 |
| Sweden | 11884 | 32034 | 2.0 |
| United kingdom | 15136 | 41858 | 2.1 |
| United states | | | |
| | | | |
| Africa | 978 | 1287 | 0.5 |
| Kenya | 1442 | 1923 | 0.6 |
| Nigeria | 1567 | 1480 | -0.1 |
| Senegal | 3847 | 3959 | 0.1 |
| Zimbabwe | | | |
| | | | |
| Latin America | 6585 | 12862 | 1.3 |
| Argentina | 2354 | 8750 | 2.7 |
| Brazil | 3915 | 12871 | 2.4 |
| Chile | 2814 | 7430 | 2.0 |
| Colombia | 5033 | 12189 | 1.8 |
| Mexico | 1990 | 4666 | 1.7 |
| Paraguay | 3939 | 7466 | 1.3 |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Peru<br>Venezuela | 7307 | 9762 | 0.6 |
| Asia<br>China<br>Hong kong<br>India<br>Malaysia<br>Singapore<br>South korea<br>Taiwan<br>Thailand | 405<br>4518<br>734<br>1624<br>3170<br>1610<br>2061<br>772 | 8727<br>44070<br>3413<br>11863<br>42360<br>28702<br>32865<br>8467 | 6.3<br>4.7<br>3.1<br>4.1<br>5.3<br>5.9<br>5.7<br>4.9 |
| Note: data are taken from the penn world table version 8.0, and use ppp exchange rates to compare national incomes for a description see the penn world table website at http://www.rug.nl/research/ggdc/data/penn-world-table. | | | |

## ۱۳ . د توليدي عواملو عدم تعادل

د نيمګړي بازار له امله د توليدي عواملو خوځښت ډېر په ټيټه کچه کې دی، سرچينې په لوړه پوله کې ترکار لاندې نه دي راغلي، د منابعو لوړ او ښه استعمال (The highest and best use of Resources) هدف ته نه دي نږدې شوي، پاسرې(پس اندازونه) بانک کې نه زېرمه کېږي اضافي عوايد نشته، که چېرې څه نقده پاسره او بچت برابر شي هغه د نويو تشبثونو د ايجاد په پرتله په ګاڼو ژر لګول کېږي د کورني او بهرني مارکېټ په هکله د هغو د امکاناتو، دمارکېټ دخبرتياوو او معلوماتو په هکله پوهه لږه ده په توليدي څانګوکې تخصص نشته، انحصاري وضع د دوی په زيان ده، ټولنيز وروسته پاتې سيستم او توليدي تنګ جوړښت دوی ته نيمګړی بازار رامنځته کړی، نو ځکه د عواملو عدم تعادل ليدل کېږي.

## ١٤ . اقتصادي وروسته پاتې والی:



د دغو هېوادو وګړي له اقتصادي پلوه وروسته پاتې دي. دا ځکه چې د هغوی مؤلدیت ټیټ دی. د ترانسپورت او نورو ټولنیزو آسانتیاوو نېمګړتیا، ټولنیز ناوړ اکر او دې ته ورته مسایل د دوی داقتصادي وروسته پاتې والی لامل ګرځېدلی.
د پورته ټولو ذکر شویو مشخصاتو او د اقتصادي معیارونو یا د اقتصادي پرمختیا معیارونو (Measurement of Economic Development) په کچه د خپل هېواد معیارونه داسې خلاصه کولای شو:
١ . د افغانستان دمرکزی احصائیې د١٣٩٤ل.( ٢٠١٥ م) کال له ارقامو سره سم، دکوکنارو په شمول د هیواددناخالص تولید ارزښت ١٢٣٩٣٨٢میلیونه افغانۍ(٤ر١٩میلیارده امریکایی دالره)او دسړی سرکورنی تولید٤٣٣٣٥ افغانۍ(٦٧٧امریکایی ډالره)و. دغه ارقام ناکافی دی. دملګرو ملتونو سازمان د نړی ١٥٠ هېوادونو په لړ کې د منځنی آسیا لس هېوادونه په یو بیل ګروپ کې ارزولي، افغانستان د ملي کالني مجموعي تولید له مخې وروستی ځای لري، یعنې هېواد د اقتصادي پرمختیا د یو مهم معیار (GNP) له مخې لړو پرمختللو هېوادو کې راځي. له دې سره یو ځای که چېرې د اجناسو(کالیو) د ډولونو د مصرف، د کورونو ډول، د ژوند د ورځنیو اسبابونو د چمتووالي، خوراک (د پروتین منبع له پلوه)، ګاز، برېښنا او عصري تشنابونو میسروالی او نورو معیارو له مخې وګورو، له دې پلوه هم هېواد په ټیټه کچه ارزول کیږي.
٢. په هېواد کې د کرنې سکتور عمدتاً مسلط سکتور دی، هغه هم یوازې غذایي مواد تولیدوي چې یو ډول مړ- ژواندی (مه مره مه رغېږه Subsistence) حالت لري، د کرنې محصولات یوازې ځینې حجیم اما بې کفیته غذایي مواد دي لکه وریجې، کچالو او غنم ،نو ځکه د وګړو د غذایي نورماتیف ستندرد ډېر ټیټ ارزول کیږي. هغه یو شمیر دسبو اومیوو تولید چې لرو،

د پاکستان د ډمپنگ له امله لوی زیان سر ه مخامخ کیږی.له بلې خوا دهغود مارکیتنګ خدمات(بسته بندی، سورت، اعلانات،ترانسپورت اونور) ډیر ضعیف دی.
د ملګرو ملتونو د F.A.O د اداري د ارقامو له مخې په پرمختللو هېوادو کې هر وګړي ته د ورځې ۳۰۰۰- ۳۵۰۰ واحده کالوري میسره ده، خو زموږ په هېواد کې په مشکل سره ۱۷۰۰ کالوري میسره ده. پرمختللو هېوادو کې هر وګړي ته د ورځې ۳۰ ګرامه پروتین مهیا دي حال دا چې زموږ په هېواد کې همدا اوس ځینو مرفه کورنیو ته یوازې ۱۵ ګرامه پروتین رسېدلای شي او بس.
۳ . په هېواد کې د مارکېټ وروسته پاتي میکانیزم د پرمختیایي اقتصاد یو بل معیار دی. په ښارونو کې د مارکېټ د مېکانیزم یو څه نښې شته، حال دا چې په سیمو او کلیو کې د کالیو تولید او بازار ته د عرضې په منظور د اجناسو تولید ډېر لږ لېدل کېږي، آن داسې حکم کېدای شي چې دلته اوس هم د یو ډول (طبیعي اقتصاد) دوران نښې څرګندې برېښي.
په هېواد کې ګڼ شمېر پنځیزې شتمنۍ لاسبری لا نه دی راغلی، یا هم ورڅخه غیر علمي، ناجایزه غیر موثره او په ډېره لومړنۍ بڼه کار اخیستل کېږي. د بېلګې په توګه همدا اوس زموږ په هېواد کې د اوبو کلنی جریان په یوه ثانیه کې ۵۰-۵۵ میلیارد متر مکعبو ته رسېږي، حال دا چې په سلو کې ۳۰ ګټه هم تري نه اخیستل کېږي،نورې اوبه یا له هیواده بهر وځي یا په شګو کی جذبیږی. په هېواد کې ټوله ٤٤٢٤ زره هکتاره د کرنې وړ ځمکه Arable land پوره د کښت لاندې نه ده راغلې، کرنیزی ځمکې وار په وار له لاسه وځي او ترغیرزراعتی استعمال لاندې راځي، دا په داسې حال کی چې دغیرزراعتی استعمال لپاره پراخه ډاګونه وجود لری. د نفتو، ګازو میتالوژي صنایعو په هکله پوره سروې نه ده شوې هغه کم شمېر کانونه چې رایستل کېږي په وروسته پاتي تکنالوژۍ ورڅخه کار اخیستل کېږي.زیاتر قیمتی کانی توکي لکه زمرد، لعل، لاجبراو دډبرو سکاره دمحلی زورواکو او قوماندانانو له خوا په غیرفنی او غیرقانونی لارو ایستل او قاچاق کیږی. تور او جرمی اقصاد په پراخه توګه لمن غوړولی اودملی پانګوالو تولیدی اوخدماتی سرمایګذاری ته یې لوی ګواښ پیښ کړی دی. ځنګلونودګاوندی هیوادلرګیود قاچاقچیانو له خوا تر تالان لاندې دي، په دې توګه د هېواد ځنګلونه او څړځایونه په مناسبه توګه نه کارول کېږي. ګڼ شمېر ځنګلونه او څړځایونه د بربنډېدو په حال کې دي چې راتلونکې کې یې د ژورې ویجاړتیا (Erosion) امکان شته او داسې نورې ډیرې بدې بېلګې. په دې برخه کې له نورو پرمختیایي هېوادونو زموږ حالت ډېر بدتر دی.
۵ . په ګران هېواد کې کټ مټ لکه د یو شمېر نورو پرمختیایي هېوادو په شان د اغېزمنې پانګې کمښت سره مخامخ یاستو. په هېواد کې پس انداز ته تمایل او د پانګې تشکل ډېر لږ دی چې په مطلق ډول یې یو د Low rate of capital formation حالت بولو.
٦. د ملګرو ملتونو د ارقامو له مخې په هېواد کې د تولداتو (زیږېدنو) مجموعي انډول (Total fertility rate) (٦،٧) د ماشومانو سوتغذي سلنه (۱۳) د پنځه کلنۍ عمر څخه د ټیټ عمر مړیني سلنه ۲۵،۷ ښودلې شوې. د عمر منځنی حد ٤۲-٤۷ د نفوسو کلنۍ وده ۲،۷ فیصده اوځینې وخت له دې پورته ښودل شوې ده. د ټول هېواد د پراخ مساحت په پرتله څو

محدودو ښارونو کې د نفوسو نامناسب تکاثف ښودل شوی. د نفوسو په سلو کې ۸۵ په کلیو کې ژوند کوي.
۷. زموږ هېواد د Technological Backwardness او دودېزې لږ موثریت لرونکې ټکنالوژۍ ستونزه لري چې ورسره یو ځای د فني مهارتونو کمښت لېدل کېږي.
۸. سره له دې چې هېواد کې دکار امکانات شته، خو د روانوجګړو اوځانمرګی بریدونو له امله شغلونه په ټپه دریدلی او وزګارتیاپه سلوکې ۴۳ته رسیدلی ده. د دې ترڅنګ ټیټ مولدیت او موسمي بېکاري هم لېدل کېږي.
۹.د هېواد صادرات ډېر محدود دي، عامه خدمات ویجاړ حالت لري، ملي پانګوال د هېواد دننه پانګه نه اچوي د دې منفي پدیدو ترڅنګ د مغزو فرار او د باتجربه کدرونو له هېواده وتل ملي اقتصاد ته یوه بله لویه ضربه ده. په دې ډول اقتصادي او غیر اقتصادي عواملو داسې یو حالت رامنځ ته کړی چې هېوادمو جنګ ځپلي پرمختیایي ځانګړنې خپلې کړي دي.

تمرینات

۱.دوه ګونی اقتصاد یعنی څه؟
۲.دنفوسو فشار ولې دپرمختیایی هیوادو په مشخصاتو کې راځي؟
۳.پرمختیایی هیوادونه څنګه بهرنۍ سوداګری پورې تړلی دی؟
۴.دپرمختیایی او پرمختللو هیوادو ترمنځ په غذایی نورماتیف کې (دکالوری اوپروتین دمقارله مخې) څه توپیر دی؟
۵.دبیلابیلو هیوادو د نفوسو منځنۍ عمر څو دی؟
۶.افغانستان کومې ډیرې ښې طبیعی شتمنۍ لري؟
۷.دخاوری ژوره ویجاړتیا ولی پیښیږی او څه ګټه یا تاوان لری؟
۸.دافغانستان بشری پانګه پیاوړی ده که ضعیفه، زموږ د پوهنتونونو فرغان د زده کړی د کیفیت او کاری وړتیا له مخی وارزوئ؟
۹.دافغانستان حکومتولی او اداره په کوم ردیف کې راځي؟
۱۰.زموږځوانان د هیواد د پرمختګ لپاره څه کولای شي؟

# درېيم څپرکی

## د پرمختيايي اقتصاد عوامل او
## د اقتصادي ودې لپاره ضروري شرايط

### د وروسته پاتې والی لاملونه

اقتصاد پوهانو د دې لامل چې يو شمېر هېوادونه ولې د پرمختللو صنعتي هېوادونو په مقايسه وروسته پاتې دي په بېلابيله توګه څېړلي. تر ټولو دمخه بايد ووايو چې دغه لاملونه هېڅ يو يې په يوازېتوب د وروسته پاتې والي (يوازينی) علت نه شو ګڼلای. بلکې دا ټول سره يو ځای شوي او A يا Bهېوادو ته يې نظر C يا D هېوادو ته د پرمختياوالي، لږ مختللي او وروسته پاتې والي خصوصيت ورکړې. يعنې د هېوادونو ترقي او پرمختيا کاملاً نسبي بڼه لري. د وروسته پاتيوالي لاملونه هم په نسبي ډول ارزول کېدای شي. ټول لاملونه هرومرو د هر وروسته پاتې اقتصاد لپاره هم صدق نه کوي، ځکه د دغو لاملونو څخه هر يو يې د يو پرمختيايي هېواد د اقتصاد وروسته پاتې والی حالت قسماً روښانه کوي. هسې خو په مجموع کې وروسته پاتې والی هغه ناروغي ده چې پرمختللو صنعتي هېوادو کې تحليلونو او تفسيرونو د يوويشتمې پېړۍ په پيل کې د نړۍ دوه پر درېيمه برخه په هغې اخته بللې، خو بيا هم د نړۍ په همدې دوه پر درېيمه برخه کې داسې هېوادونه هم شته چې د ژوند ستندرد يې ورځ پر ورځ مخ په ښه کېدو ښکاري. هغه هېوادونه چې اوس هم د وروسته پاتيوالي څخه ځورېږي عوامل يې داسې رالنډولای شو:

### ۱) د طبيعي منابعو څخه نامساعده او ډېره لږه ګټه اخېستنه

ځينو هېوادونو لکه د امريکا متحده ايالتونو، انګلستان او روسيې وکولای شول چې د خپلو منابعو څخه پوره ګټه واخلي، خو ګڼ شمېر پرمختيايي هېوادونه شته چې طبيعي سرچينو ته يې لاس نه دی وروړل شوی، داسې پرمختللي هېوادونه هم شته چې طبيعي منابع نه لري لکه سويس او جاپان مګر غښتلی پرمختللی اقتصاد لري، نو طبيعي منابع يوازينی لامل نه دی، بلکې دغه سرچينې او شتمنې هغه وخت ارزښت مومي چې ښې ګټې اخېستنې لاندې راشي، نو د سرچينو او پنځيزو شتمنيو نه لرل د وورسته پاتي والي يوازينۍ علت نه دی بلکې له هغو څخه نامساعده استفاده يا د هغو نه کارول چې منبع په مساعد (Optimum) ډول ګټوره تمامه نه شي د وروسته پاتي والي علت بلل کېږي.

### ۲) د پانګې کمښت

په معاصر اقتصاد کې پانګه په اقتصادي وده کې غوره رول لري. په نننی اقتصاد کې د شاغلې يا دنده موندونکې پانګې، ربح (ګټه لرونکې) پانګې، سوداګرېزې پانګې، استقراضي پانګې، مولدې پانګې، دوراني پانګې او دې ته ورته مفاهيم رامنځ ته شوي چې د اقتصادي

بحثونو لويه برخه جوړوي. د پانګې د توليد پايه Rate of Capital Formation د پانګې راکد (ډب) نه پاتې کېدل او د هغې چټک دوران د اقتصادي ودې ډېره ساده افاده ده. پانګه توليدي عوامل په کار اچوي او په نتيجه کې اقتصادي خوځښت رامنځ ته کېږي. په اوسني وخت کې د اقتصاد جوړښت انډول موندلی او د علمي څېړنو په نتيجه کې د ودې لارې پېژندل شوې دي. سره له دې چې پانګې ته د ودې او ترقۍ د قاطع عامل ارزښت نه ورکوي، خو يقيناً د نورو عواملو او لاملونو ترڅنګ يو اغيزمن لامل بلل کېږي.
سرمايوي کالي (توليدي وسايل) د بشري ځواک په فعالولو او د بېکارۍ په له منځه وړلو کې غوره اغيزه لري. په پرمختيايي هېوادو کې که چېرې د ټول عايد ۳-۵ فيصده يې پاسره کېږي هغه بايد په مولدو برخو کې په کار واچول شي. د پانګې د موجوديت څخه منظور د هغې اغېزمنه کارونه ده. نو ځکه Nurkse ټينګار کوي چې اقتصادي وده تر ډېره حده د پانګې څخه په مهارت سره کار اخېستو، سياسي شرايطو او تاريخي پېښو پورې اړه لري.

## ۳) وروسته پاتې تکنالوژي

په پرمختيايي هېوادو کې پرمختللې تکنالوژي دوی ته ډېره ګرانه تماميږي او خپل داخلي صنعت يې وروسته پاتې دی او دوی ته تخنيکي تجهيزات نه شي برابرولای، خو ترديې هم د وروسته پاتيوالي لوی علت دا دی چې د K/O نسبت (سرمايه تقسيم د حاصل) ډېر ټيټ دی. يعنې د يو واحد پانګې څخه لازم واحدونه حاصلات نه شي ترلاسه کولای خو د دې په مقايسه د (حاصل / کار) يا L/O نسبت لوړ دی د دې معنا دا ده چې د کار مولديت څخه د سرمايې مولديت نور هم ټيټ دی چې د دې علت دا دی چې توليدي سکتورونه په تکنالوژۍ نه دي مجهز. که چېرې کوم تخنيک ميسر هم شي په هغه کې مهارت نه دی موجود.

## ٤) د توليدي تاسيساتو او اقتصادي زېربنايي چارو کمښت

شومپټر Schumpter په دې عقيده دی چې اقتصادي وده او پرمختيا هغه وخت رامنځ ته کېدای شي چې نوښتګر متشبيثين موجود وي او دوی پاسره(سپما) شوې پانګه ډېره ښه وکاروي. په دې توګه تشبث او نوښت Enterprise and initiative اقتصاد ته مخ په وړاندې خوځښت ورکوي. له بلې خوا د اوبو بندونه د برېښنا تاسيسات، لويې زراعتي تصدي، فارمونه او نورو ته له وروسته پاتې حالت څخه د وتلو وسايل جوړوي.

## ٥) د ښکېلاک ناوړه اغېزې

د اکثرو پرمختيايي هېوادو، په تېره د اسيايي او افريقايي پرمختيايي هېوادو تاريخ ښيي چې دوی د ډېرې يا لږې مودې لپاره د شتمنو هېوادو ښکېلاک لاندې پاتې شوي. په دغه موده کې دوی ته د صنعتي کېدو اجازه نه ده ورکړل شوې او يا يې هم ډېره انرژي، وخت او

پاملرنه د ازادۍ د ګټلو لپاره تېره شوې، نو ځکه اقتصادي ودې ته نه دي وزګار شوي. استعمار د دغو هېوادو خلکو ته يو ډول ناوړه احساس پرېښی چې دوی د ترقۍ پر لور نه هڅېږي او ځان ورته له روحي پلوه وروسته پاتې او ناتوان ښکاري. ځينې هېوادونه وروسته تر استعمار له اقتصادي پلوه بهر سره تړلي پاتې شوي، نو ځکه د اقتصادي استقلال د نه لرلو له کبله يې لازمه پرمختيا نه ده کړې. ځينې څېړونکي استعمار قاطع لامل نه ګڼي تردې چې برخلاف داسې بېلګې هم راوړي چې شتمنو هېوادو د استعمار او ښکېلاک په وخت کې دغو هېوادو کې لوی اقتصادي تاسيسات جوړ کړي او د دوی د اقتصادي وضع سره يې مرسته کړې ده. داسې بېلګې ډېرې لږ دي.

## ٦) د مؤسسو وروسته پاتې والی

پرمختللی اقتصاد د فعالو، چټکو او يو بل سره مرستندويه اقتصادي مؤسساتو غوښتنه کوي، خو په پرمختيايي هېوادو کې يو نېمګړی بانکي سيستم فعاليت کوي، صنعتي رښتيني بانکونه نه لري او په لږ سيمو کې بانکي څانګې نشته، د اسهامو د پېرلو او پېرودلو بازار نشته، بيمې، د پانګې اچونې تشويقي او حمايوي لايحې او فعال تجارتي اتاقونه نشته نو ځکه د منظمې پانګې اچونې او فعال مالي- پولي سيستم تحرک خنډ او ځنډ سره مخامخ دی. داسې ويل کيدای شي چې اقتصادی موسسات په لازم ډول ندي فعال. دغو هيوادو داسې بنسټونه ندی جوړ کړی چې د دوي اقتصادی پرمختګ سره مرسته وکړي.

## ٧) غير اقتصادي عوامل

د وګړو بېسوادي، خرافي دودونه، اداری وروسته پاتې سيستم، تعصبونه، موهومات او بی اتفاقی هم هغه څه دي چې د اقتصادي ودې او پرمختيا د مخنيوي لامل ګرځېدلي. لکه چې تېر څېرکي کې مو د پرمختيايي هېوادو اقتصادي اساسي مشخصاتو په لړ کې، په ځانګړې توګه د ګران هېواد مشخصات په لنډ ډول راوړل، دلته هم په ډېر لنډ ډول د افغانستان دوروسته پاتيوالي د هغو ګډو لاملونو ترڅنګ چې پورته مو وويل د ۴۰کلن ناتار له امله نور لاملونه هم ذکر کوو چې د هېواد اقتصاد ته يې زښت ډېر زيان اړولی او هېواد يې د پينځه ويشت کاله مخکې پرمختيايي حالت څخه ډېر وروسته پاتې حالت ته غورځولی. دغه فکتورونه او د هغو پايلې دا دي:

## د جګړو له پيل څخه مخکې

د هېواد په ملي مجموعي توليداتو کې کرنې په سلو کې ۵۸،۷ صنعت ۵،۲۳ سوداګرۍ ۱۷،۸ جوړښتونو (ساختماني سکتور) ۸،٤ ترانسپورت ۲،٤ او نورو خدماتو په سلو کې ٤،۱ برخه لرله. کرنيز محصولات د هېواد بهرني تجارت کې د اسعارو د ترلاسه کولو مهمه منبع وه.

چې برخه یې په بهرنۍ سوداګرۍ کې ٦١،٧٦ فیصدوته رسېده، د دې سره یو ځای ځینې صنعتي توکي لکه طبیعي ګاز، کیمیاوي سرې، غالۍ، پوستین، پوستینچې او یو شمېر لاسي صنایع مهم صادراتي اقلام وو چې په ١٣٦٦ کال کې یې ارزښت ٢٥٦٥٤١٠٠٠ ډالرو ته رسېد، د ١٣٦٨ کال د رسمي شمېرنو له مخې د مادي تولید په ساحه کې ٩٢،٤ میلیونه وګړي بوخت وو. په هېواد کې د صنعتي تاسیسساتو او فابریکو شمېر ٥٥٧ ته رسېد. په هېواد کې اقتصادي تحرک د شلمې پېړۍ له درېیمې لسیزې راپیل شوي وو. په هېواد کې لومړنی اقتصادي اجتماعي پلان په ١٣٣٥ کال طرح او په تطبیق یې پیل وشو ډېر غوره نتایج یې لرل. د هېواد اکثره زېربناني اقتصادي تاسیسات همدغه وخت پیل شول، دویم پنځه کلن ټولنیز پلان په لومړي پلان پسې جوخت په ١٣٤٠ کې پیل شو سره له دې چې د ترانسپورتي ستونزو له کبله پیش بیني شوي ارقام ترلاسه نه شول، خو بیا هم بریالی بلل کېد. په همدې ډول درېیم پلان ورپسې پیل او تطبیق شو، کله چې ١٣٥٢ کال کې بدلون پېښ شو په ١٣٥٤ کال کې د یو اوه کلن پراخ اقتصادي پلان په تطبیق پیل وشو. دغو هڅو په اقتصادي وده غوره اغیزه کړې وه، خو د جګړو پیل د بشري درنو زیانونو نه علاوه هېواد د معنوي او مادي ستونزو سره هم مخ کړ. په دې لړ کې اقتصادي-زیربنایي تاسیسات ړنګ او تالان شول، کرنې، په تېره د اوبو رسولو شبکو ته زیان ورسېد.



*کورنۍ مهاجرتونه او بیوزلۍ د جګړې ترټولو بده اغیزه*

په اقتصاد کې یو بېساري انفلاسیون چې حد یې حتی په سلو کې ٢٠٠ ته رسید (له١٣٧١-١٣٨١لړیورې)، راپېښ شو، د کار ځواک متلاشي شو، مولده سرمایه په نشت برابره شوه، په بهرنۍ سوداګرۍ کې هېواد له لویې ماتې سره مخامخ شو، په ملي مجموعي تولید (G. N. P) کې د فوق العاده کمښت له امله په بیو کې بې ثباتي او د افغاني پیسو د پیربدلو په توان

کې ټیټوالی راغی، د بانکونو، ګمرکاتو او مالیاتو سیستم لوټ اوویجاړ شو، د بهرنیو هېوادو سره اقتصادي اړیکې وشلېدلې، بهرنۍ مرستې، نړېوال بانک، د اسلامي بانک او د ملګرو ملتونو د مؤسساتو مرستې په لازمه توګه نشوې جذبېدلای، له هېواد څخه پانګه، مهارتونه او مسلکي کدرونه ووتل، یو شمېر د کار ځواک په جګړه کې استخدام شو. په دې توګه د کار متخصص ته زیان واوښت، د مارکتینګ په پروسه کې منځګړو لاسونو (دلال، بروکر، کمیشن کار، جلاب او محتکر) لا قید فعالیتونه پراخ کړل، لوایح، مقررات اصول او حمایې او دولتي موانع له نظره ولوېدل، اقتصادي پلان شنډ او داسې نور ویجاړونکي ګوزارونه په اقتصاد وارد شول.
دا ټول هغه اضافي منفي عوامل و چې د هېواد اقتصاد یې ډېر وروسته پاتې حالت ته ورساوه. له۱۳۸۱ل.کال څخه وروسته د لویدیزوالو په مرسته نوی سیاسی نظام په پښو ودرول شو او د بازار دنظام له اصولو سره سم دلبرالډیموکراسی سیستم هڅې پیل شوې، زیاتی بهرنۍ مرستې راغلی، خو د بی ظرفیته، فاسدې او بی کفایته اداري له امله د بهرنیو مرستو د مثبتو تاثیراتو ترڅنګ یی منفی تاثیرات هم ولیدل شول. ټولنیزه بیعدالتی، دعیاشی د روحیې پیاوړی کیدل، دېردیو لاس ته کتل او دو نورو په تمه کیناستل زیات شول، د کار او زیار روحیه له منځه ولاړه، دهیواد پلازمینه په یوه لومپن ښار بدله او ورسره اداری، مالی او اخلاقی فساد خپور شو. دغو ناوړه عواملو ډیرې بهرنۍ مرستی بی اغیزی کړی، خو بیا هم ځینی مثبت ګامونه اوچت شول، لکه: د مطبوعاتو دازادی ډاډمن کیدل، پولی ریفورم(چې دری صفرونه یکی کم شول)، د یوه نوی اساسی قانون جوړیدل، د دولت د دری ګونو قواوو ښه تفکیک او د انتخاباتو ترسره کیدل،دهیواد دبهرنیو اړیکو پیاوړتیا، دښوونځیو د شاملانو زیاتوالی،دګڼ شمیر نویو ښوونکو او دولتی کارکوونکو استخدام، د لوړو زده کړو د موسساتو ایجادیدل(دغه پروسه له کمی پلوه ډیره دپام وړ وه)، د مخابراتی خدماتو ډیر ښه کیدل او پراختیا او دې ته ورته نور غوره اقدامات ترسره شول، خو تولیدی پروژو او د طبیعی منابعود ساتنی، له هغو څخه د هیواد داقتصاد دښه کولو لپاره کار اخیستو او دزیربنایی تاسیساتو جوړولو ته پاملرنه ونه شوه.همدغو کلونو کی افغانستان د سوداګری دنړیوال سازمان، دشانګهای سیمه ییز سازمان، ایکو اوسارک غړیتوب ترلاسه کړ(ځینو کې دغړی او ځینو کی دناظرپه توګه وپیژندل شو). دنړیوالو او دسیمی د هیوادو مینه پیداشوه چی د ټاپي، کاسا-زر، دمرکزی-جنوبی آسیا ترمنځ د نوری فایبر او په سیمه کی د وربښمو دلرغونی لارې بیا جوړیدو ته تمه پیدا شي.افغانانو سره څه ناڅه د خپلو اوبو د مدیریت فکر پیدا او آن د یوڅو بندونو کار پیل شو.یو د ستاینی وړ کار د ۷۰کالو مخکی حلقوی سرک بیا قیر کول و.سره له دې چې ددغه حلقوی سرک ترمیم دګاونډیو هیوادو دواردتاو د آسانه لیږد لپاره اسانی راوسته، خو هیوادوالو ته یې هم د تګ-راتګ سهولت برابر کړ.

## فقر دايره (Vicious Circles of Poverty)

د فقر يا غربت دايره نن ورځ په اقتصادي بحثونو کې يوه دود شوې او نامتو نومونه ده. دلته يو څو دايروي اړيکې چې د غربت د دايرو يا د فقر د کړيو (Vicious Circles of Poverty) په نوم مشهوري شوي لېدل کېږي.د دغې دايرې له امله په لږو پرمختللو هېوادو کې د پرمختيا سطح ټيټه پاتې ده. Nurkse د دې اصطلاح معنا په دې ډول توضيح کوي. ددغې دايرې کړۍ چې له يو شمېر څواکونو څخه جوړې شوي، يو د بل دوه برابره عمل کوي، نو ځکه غريب هېواد نور هم د غربت او فقر په حالت کې ساتي. د بېلګې په توګه يو فقير سړی د خوړلو لپاره هېڅ نه لري، نو ځکه وږی دی، نو د ده روغتيا خرابه شوه، نو له فزيکي پلوه سست شو، نو د ده د کار ظرفيت راټيټ شو، د دې معنا دا شوه چې دې غريب شو، چې غريب شو خوړو ته څه نه لري چې خوراک ته څه نه لري، نو روغتيا يې خرابه شوه او همداسې نرکسي د هغو هېوادو په هکله چې د فقر دايره پکې مسلطه ده او د پورته غريب سړي سره يې مشابه کړی وايي:

(A country is Poor because it is poor)

يعنې: يو هېواد غريب پاتې شوی دا ځکه چې غريب دی.

له همدې امله تقريباً تېره پېړۍ کې پرمختللي هېوادونه پرله پسې، کال په کال شتمن شول او ترقي يې وکړه خو پرمختيايي هېوادونه همداسې (پرمختيايي) پاتې شول. يو پرمختيايي هېواد د غربت د څو څو کړيو څخه اغيزمن کېږي، خو د ښه کېدو نښې يې نه راڅرګندېږي. د هغوی وګړي ضعيف، بې سواده، محافظ کاره، عنعنه پرست او په خرافاتو ګير خلک دي او د نويو مفکورو، نوښتونو او ابتکاراتو په وړاندې ضروري عکس العمل نه ښکاره کوي ترڅو اقتصادي پرمختيا راپيښه شي. سره له دې چې داسې هېوادو کې د مړينو شمېره ډېره زياته ده، بيا يې هم نفوس په ګړنديتوب ډېرېږي، د دې هېوادو مجموعي فضا او حالت د نه زغملو دی، نو ځکه د فقر د دايرې په موجوديت کې پرمختيا او وده نشي پيښېدالی. Nurkse دا هم وايي چې د پانګې راټولېدل ډېر ورو، ځنډني او لږوي دا ځکه چې د پس انداز له امله د سرمايې (پانګې) عرضه او پانګې اچونې ته دعلاقې له مخې د پانګې لپاره تقاضا ټاکل کېږي. يا په بله وينا: که چېرې پانګه اچونه وهڅېږي نو پانګې ته تقاضا لېدل کېږي او که پس اندازونه موجود وي د پانګې عرضه رامنځ ته کېږي، نو چې کله هم د پانګې عرضه موجوده وه او هم تقاضا، په داسې يو حالت کې اقتصاد مخ په ښه کېدو په مخ روانېږي. که پانګې ته تقاضا او د هغې عرضه نه وي دا يو ډب حالت دي.

خو د فقر د دايرې د تسلط په حالت کې، د عايد د ټيټ والي له کبله، پس اندازونه کم دي، چې پس اندازونه کم دي؛ نو د پانګې عرضه کمه ده. عايد ځکه ټيټه کچه کې دی چې مولديت ټيټ دی او مولديت ځکه ټيټ دی چې د پانګې کمښت لېدل کېږي، بېرته هماغه دوران تکرارېږي. د پانګې کمښت د پس اندازونو د کمښت له امله دی د پس اندازونو کموالی د عايد د کمښت له کبله دی... او په دې ډول يوه دايره جوړېږي چې د دې کُلی حکم داسې دی: په فقيرو او وروسته پاتې هېوادو کې د پانګې عرضه او تقاضا ټيټه کچه کې ده!

په پورته توګه موږ د موضوع د ښه پوهېدو لپاره دوه دایرې چې یوې ته مود تقاضا دایره او بلې ته مو د عرضې د دایرې نوم ورکړی.
۵ شکل :




د پانګې د تقاضا دایره

دا دایره ښیي ، چې د اقتصاد وروسته والي لاملونه پکې تکرار شوي او د فقر دایره یې تشکیل کړې.




اقتصاد پوهانو د څېړنو له مخې ویلي، چې د پانګې عرضه ځکه ناچیزه ده، چې ټیټ عاید،د ټیټ پس انداز لامل دی او د ټیټ پس انداز په حالت کې پانګه یا هیڅ نه وي، یا هم کمه وي، نو له همدې امله مولدیت ناچیزه وي، د پانګې د تقاضا په هکله واقعیت دا دی، چې د ټیټ عاید په حالت کې اجناسو او کالیو ته تقاضا لږه وي، دا د ټیټ مفیدیت سبب کېږي، د ټیټ مفیدیت په حالت کې پانګه اچونه نه هڅول کېږي،



اقتصاد پوهانو د څېړنو له مخې ویلي چې: د پانګې عرضه ځکه ناچیزه ده چې تیټ عاید،دټیټ پس انداز لامل دی او د ټیټ پس انداز په حالت کې پانګه یا هېڅ نه وي یا هم کمه وي، نو له همدې امله مولدیت ناچیزه وي، د پانګې د تقاضا په هکله واقعیت دا دی چې د ټیټ عاید په حالت کې اجناسو او کالیو ته تقاضا لږه وي دا د ټیټ مفیدیت سبب کېږي د ټیټ مفیدیت په حالت کې پانګه اچونه نه هڅول کېږي. باید ووایو چې ټیټ عاید د لږ مولدیت سبب کېږي او دا په ګډه یوه دایره جوړوي. که چیری داسې معقول اقتصادی تدابیر ونیول شي چې دهغو له مخې منابع ترکارلاندې راوستل شي، دتولید کچه اوچته شي،سپما وهڅول شي، نودا به دپانګې دجوړېدو لامل شي، دغه پانګه به بیرته په کار ولوېږی او ورو ورو به دفقرد دایرې کړۍ یوه په بلې بسې ماتې شي. په دې هکله هیګنز Higgins وایي: "مار خپله لکۍ په خپله خوري".

د عرضې له پلوه باید وویل شي چې: د وروستي لوړ حاصل د ترلاسه کولو لپاره او له هغو څخه د پانګې د تولېدو لپاره باید ننني لګښتونه ځار کړو. کله چې پاسرې او بچت پانګه جوړه کړه، مولدیت لوړېږي، خو په دغسې هېوادو کې د داسې قربانۍ امکان ډېر لږ لېدل کېږي، دا ځکه چې خلک معیشتي (مه مره مه رغېږه Subsistence) ژوند لري. هغه لږ شمېر چې د پس انداز کولو وس لري هغوی په غیر مولده توګه لګښتونه کوي، نو چې پس انداز لږ وي، مولده سرمایه ناڅېزه وي.

د تقاضا په هکله باید وویل شي چې: پانګې اچونې ته تمایل او علاقه ځکه کمه ده چې بازار کوچنی او د پېرېدلو قدرت او توان کم دی، نو ځکه د پانګې مفاد کم دی او کم مفاد په دې لاره کې د پانګې اچونې مخنیوی کوي، نو ځکه د غربت دایره له څو کړیو جوړه شوې، خو باید دغه دایره له یوه ځایه ماته شي او پرې نښودل شي چې همداسې دوران او دوران وکړي.

د پانګې د عرضې د ښه کېدو لپاره باید د پس اندازونو او پاسرو د هرې سرچېنې څخه ګټه واخېستل شي، باید مولده پانګه ایجاد شي، دا هغه وخت کېدای شي چې د عنعنوي بېځایه لګښتونو مخه ونیول شي، اداره کې ښه والی راشي، بېکاري باید له منځه لاړه شي، خلک باید له بېځایه لګښتونو ډډه وکړي، بهرنۍ مرستې هم دا ستونزې حل کولای شي. همدارنګه دپرمختیا متخصصین د مهارت لرلو ته هم اشاره کوی او دشیطانی دایره کی مهارت له تعلیم سره تړی:




پ

د تقاضا له لارې هم دا دايره له منځه تلای شي: که چېرې مارکېټ پراخه شي د پانګې لپاره تقاضا ډېرېږي. لکه څنګه چې پخوا ګڼ شمېر هېوادونو دغه دايره له منځه وړې. Nurkse وايي دغه دايره ماتېدونکې ده. کله چې له يوه ځايه ماته شي، دايروي تسلسل له منځه ځي او اقتصادي پرمختيا رامنځ ته کيږي.
ډيره ضروری ده چې بايد پرمختيايی هيواونه ځان له فقر څخه خلاص او خپل ولسونه هوساينی ته ورسوی. دغه هدف بايد داقتصاد پوهانو، حکومتونو، پارلمانونو، نړيوالومالی موسساتو او نورو اړونده ټولو مراجعو په اجنداکی شامل ويو لکه څرنګه چی وروسته له ۲۰۱۵م. دپرمختيا په اجندا کی دغه جمله ذکر شوی ده:
Our vision and our responsibility are to end extreme poverty in all its forms in the context of sustainable development and to have in place the building blocks of sustained prosperity for all .
يعني: زموږ موخه،ماموريت او مسئوليت دی چې په هراړخيزه توګه مطلق فقرپای ته ورسوو او بشريت ثبات لرونکی پرمختيا اوهوساينی باندی لاسرسی وomomی. ( 7:2)
د نړيوال بانک رئيس ښاغلی جيم يونګ کيم(Jim Yong Kim)په ۲۰۱۳م. کی ويلی و:
موږ هغه وخت بريالی ياستو چی د فقر په له منځه وړلو کی دتير وخت تجربو څخه کار واخلو او ټوله نړۍ جوړه کړو دابه زموږ لپاره په تاريخ کې خارق العاده شيبی( auspicious moment in history)وی.نابرابری له منځه يوسو اوهره کورنۍ پاکو اوبو،کافی خوراک او جامو ته لاسرسی ولری او نړۍ له ناروو غيوپاکه وی، څوک (مخکی له مرګ) څخه مړه نشی،دنابرابری پرځای فرصتونه رامنځته کړو او بالاخره داسې نړۍ چی لوږه و بيوزلی پکې نه وي. دی وايی:

-A world free of poverty,
-A world where every one has enough to eat,
-A world where no one dies from preventable diseases,
-A sustainable world where all households have access to clean energy.(7:2)

ټودارو( Michael P. Todaro) په ۲۰۱۵ م. کال کی يوه تحليل کی ليکی:
موږ عملاً دپرمختيايی هيوادو په ډله کی دوه ډوله هيواونه وينو:
يو هغه هيوادونه چې لا اوس هم په سختۍ سره په بيوزلۍ کی ژوند کوی لکه يو شمير افريقايی هيوادونه لکه سوډان، حبشه او يوڅو نور. بل هغه هيوادونه چی دپرختګ په لوری په چټکۍ سره روان دی لکه چين،هندوستان،جنوبی افريقا،برازيل.

## د اقتصاد د پرمختیا لپاره ضروري شرایط

مخکې چې موږ کوم لاملونه په ډېر لنډ ډول ذکر کړل هغه ټول د اقتصادي پرمختیا خنډونه (Obstacles of Economic development) وو. طبعاً کله چې موږ د اقتصادي پرمختیا لپاره فکر کوو، نو د همدغو موانعو او خنډونو له منځه وړل پخپله اقتصادي پرمختګ دی. یا په بل عبارت موږ باید د اقتصادي ودې او پرمختیا لپاره لازم لاملونه (Factors of economic growth) وپېژنو. د اقتصادي پرمختیا لارې چارې او شرایط په دوه ډوله دي: اقتصادي شرایط او غیر اقتصادي شرایط (Economic and non- economic).

ډاکتر جهنګان په خپل کتاب کې چې په ۱۹۹۹ کال کې د (The Economics of development and planning) په نامه خپور شوی په څلورم څپرکي کې وایي: اقتصادي وده ځینو شرایطو پورې تړلې لکه طبیعي منابع، بشري منابع، پانګه، تشبثونه، تکنالوژي او نور چې دا ټول اقتصادي فکتورونه دي. خو د اوږدې مودې لپاره اقتصادي وده نه شي ترلاسه کېدای ترڅو چې په یوې ټولنې کې اخلاقي ارزښتونه، سیاسي وضع او ټولنیز مؤسسات ښه نه شي. چې دا غیر اقتصادي شرایط دي، نو ځکه د اقتصادي پرمختیا د ترلاسه کولو لپاره یوازې اقتصادي پرمختیا د خنډونو له منځه وړل کافي نه دي، بلکې سربېره پردې د ځینو ضروري شرایطو برابرول حتمي برېښي. پروفیسور لیویس (W. A. Lewis) وایي: د اقتصادي پرمختیا لپاره درې شرطونه ډېر ضرور دي:

- د پانګې اچول.
- د پوهې د سطحې لوړول.
- د پلان جوړونې څخه کار اخېستل.

کرن کراس (Cairn cross) په ډېره ښه توګه ویلي چې اقتصادي ودې ته یوازې اقتصادي شرایط نه، بلکې د ټولنیزو کړو- وړو ټول اړخونه، د نظم او قوانینو جوړول، د ټولنې د وګړو سواد او مهارت ته هم اړتیا ده. نو ځکه کلتوري، سیاسي او ټولنیز ټول شرایط د اقتصادي شرایطو سره ګډ پکار دي. د پرمختیا لپاره لاندې اقتصادي شرایط ضرور دي:

۱) داخلي بېخبنا او بنسټ: د پرمختیا پړاوونه باید لومړی داخلي لاملونو باندې پیل شي. بهرني لاملونه د څنګیزو شرایطو او متممو ځواکونو په توګه عمل کولای شي. د کرن کراس (Cairn cross) په عقیده که چېرې وغواړو چې د پرمختیا پروسه دوامداره شي نو باید د پرمختیا ځواکونه د هېواد دننه ولټوو، پرته له هغه به پرمختیا په لنډه موده کې ودرېږي او مصنوعي خاصیت به ولري. سړکونه، فابریکې ، دبریښنابندونه،هوایی ډګرونه، ریل پټلۍ دپرمختیا لپاره بیخبنا جوړوی. دا د پرمختیا د مفکوری لرونکو،نوښتګرو اوخوځنده وګړوپه فعالیت او هڅو جوړیدای شی.که د وګړو په مغزو کې پرمختیا رانشي اقتصادي پرمختیا ناممکنه ده.



*داوبولګولو بندونه او دبرېښناتولیددزیربنا مهمه برخه ده.*

۲)د بډایه طبیعي سرچېنو شتوالی (Natural Resources): هغه هېواد چې طبیعي پوره زېرمې لري، نظر هغه هېوادونو ته چې د طبیعي سرچینو له پلوه بډای نه دي، د پرمختیا ښه چانس لري. دا په دې معنا نه ده چې که کوم هېواد سرچېنې ونه لري پرمختیا نه شي کولای. جاپان او سویزرلنډ د منابعو له کمښت سره مخامخ دي، خو د ژوند لوړه سطح لري. دا باید هېره نه کړو چې د طبیعي منابعو د شتوالي په صورت کې په بهر تکیه کولو ته اړتیا نه پېښېږي او د اقتصادي پروژو په بشپړولو کې پوره ډاډ موجود وي. که چېرې د پخوانیو مستعمرو د طبیعي سرچینو د بهره بردارۍ په هکله د استعمار تاریخ (History of colonialism) مطالعه کړو، نو د طبیعي سرچینو ستراتیژیک ارزښت به راته څرګند شي، څکه چې د ښکېلاکګرو یو لوی هدف تل د مستعمره هېوادو د طبیعي سرچینو لوټل و. تردې چې د نوي استعمار مفکوره همدا د طبیعي شتمنیو په سر ځان حاکمولو سره سم په نوي طرز، نویو ذرایعو او نویو ګټو سره راپیدا شوی. تر هغو چې د پرمختیا پروسه په ملي ځواکونو او داخلي عواملو ټینګه نه شي اقتصادي پرمختیا نامطمینه ده او د اوږدې مودې لپاره دوام نه شي کولای.



*دبیوزله کلیوال ژوند اودهغوی د کورونو دطرز یوه بیلګه چې د خپلو سیندونو له اوبوڅخه د استفادی توانایی هم نلری.*

۳)د نیمګړي بازار د نښو له منځه وړل:
د لږ مولد سکتور څخه لوړ مولدیت لرونکي سکتور ته د
تولیدي عواملو د لیږدولو خنډونه بایدله منځه لاړ شي، کورني تولید کې انحصار (که موجود وي) له منځه ولاړ شي، مارکېټ ته د هر متشبث داخلېدل او پانګه اچول وهڅول شي، ترڅو بازار په بشپړ ډول ښه ونیسي.

٤) د سرچینو اغېزمنه وېشنه او جوړښت بدلول (Structure change):
بشپړ بازار د منابعو او سرچینو ډېر ښه وېش ته لاره هواروي، د دې پایله دا کېږي چې د تولید امکانات پراخ شي، د بیا بیا تولید نوري یې زیات، د تولیدي ځواک څرنګوالی ښه او د وګړو تولیدي مهارت اوچت شي. د کرنې سکتور ته د تکنالوژۍ ننوتل او هغه څخه د کار ځواک صنعت ته پرېښودل هم په اقتصادي جوړښت کې بدلون دی. دا ځکه د پرمختیایي هېوادو یوه ځانګړنه دا ده چې هلته د کرنې سکتور کې ګڼ شمېر وګړي په ډېر ټیټ مولدیت سره بوخت دي، مګر پرمختللو هېوادو کې ګڼ شمېر نفوس، صنعت، علمي چارو، ټولنیزو، چوپړونو او نورو کې بوخت دي. همدارنګه له کرېډتي پلوه، له مالي پلوه، د وېش د سیستم، د سوداګري نظم او پانګه د پرمختیا لپاره ضرور برېښي. د کرنې له سکتور څخه د بشري ځواک وزګارول او صنعت ته د هغو انتقال د پرمختللي تکنالوژۍ په دودولو کېدای شي، د بېلګې په توګه له نن څخه ٦٠ کاله مخکې د امریکا متحده ایالاتو په کرنه کې د ټول نفوس ٥٤% وګړي بوخت وو دوی ډېر لږ محصولات تولیدول، خو اوس د ټول نفوس یوازې ٢% په کرنه بوخت دي. دوی نه یوازې د ټول هېواد لپاره کافي باکفایته غذایي محصولات، فایبر، صنعتي بوټي، مېوې، سابه او حبوبات او لبنیات تولیدوي، بلکې نورې نړۍ ته یې هم صادروي او د کرنې د سکتور اضافي نوري لکه پوټکي، وړۍ او نور صنعت ته لیږي، نور

نفوس د اقتصاد، علمی څیړنو اود ټولنیزو خدماتو ګڼ شمېر ځانګو کې بوخت دي. دا د جوړښت د بدلون یوه بېلګه وه.

٥) د پانګې ټولېدل[٥] :د پانګې د ټولېدو د پایې چټک زیاتوالی هغه وخت د حاصل د ودې لامل ګرځي چې د هغې زیاتوالی د نفوس د زیاتوالی له اندول څخه اوچت وي. اقتصادي پرمختیا پرته د اوبو لګولو د پروژو، پلونو، ویالو، کانالونو د کېندلو او پرته د سرک جوړولو، وسپني پټلۍ غځولو، هوایي ډګرونو، بندرونو او پرته د هر ډول مجدد تولید پرته د وسایلو له په کار اچولو ممکن نه ده ځکه همدا د تولید د اغېزمنتوب د اوچتولو لامل ګرځي.

خو د دې چارو لپاره پانګه په کار ده. پرمختیایي هېوادو کې پانګه لږه ده. په دې ډول د پانګې ټولول د اقتصادي پرمختیا لپاره ستراتیژیک ارزښت پیدا کوي. د پانګې ټولول یو بل سره درې ترلي پړاوونه لري:

الف) د پس انداز او زېرمو زیاتول.

ب) مالي او کریدتي میکانیزم، ترڅو موجود خصوصي او دولتي ټولې منابع په کار ولوېږي او د پانګې د جوړېدو وروسته، د پانګه تجمع ممکنه شي، یعنې د پانګې تر تشکل وروسته د پانګې ثقل رامنځ ته شي.

ج) د پانګې اچونې څخه عملي ګټه اخېستنه چې سرچینې د سرمایوي اجناسو د رامنځته کولو او استولو لپاره په کار ولوېږي.

سره له دې چې دې برخه کې یوازې د پانګې جوړېدل کافي نه دي، د پرمختیا پروسه یوازې د پانګې د جوړېدو د زیاتوالي پروسه نه ده، بلکې د اقتصادي مؤسساتو او ټولنیزو کړو- وړو په طرز کې بدلون راوستل هم دي. پانګه موږ د اړینو توکیو او اجناسو په تولید اوهستولو کې لګوو.

څرنګه چې د پرمختللو ټولنو د تاریخ کتل رازده کوي؛ ټولنیزو کړو او اقتصادي مؤسسو کې هېڅ ډول بدلون د اقتصادي پرمختیا څخه پرته امکان نه لري، د بېلګې په ډول د امریکا متحده ایالاتو، انګلستان او نورو هېوادونو کې د اقتصادي ودې او پرمختیا د پروسې څخه مخکې هېڅکله ټولنیزو چارو او مؤسساتو کې بدلون نه دی راغلی، بلکې دغه بدلون د اقتصادي پرمختیا په بهیر کې پېښ شوی.

---

[٥] موږ تراوسه د پانګې په برخه کې دوه ډوله نوموني کارولې: یوه یې د پانګې ټولېدل (تجمع) (Capital Accumulation) او بل یې د پانګې جوړېدل (Capital formation) .کله چې د ټولنې د وګړو عاید ورو ورو زیاتېږي، نو پس انداز رامنځ ته کېږي پس انداز ورو ورو پانګه جوړوي دغه پانګه چې ټوله په تولیدي برخه کې په کار واچول شي د پانګې تجمع رامنځ ته کوي. د دې ساده او وطني مثال داسې دی لکه چې مونږ متې یا ځګ شاربو لومړی ،نو د شړومبو پر سر ځک راټول شي دغه لومړني کوچ دي او بیا وروسته هغه د شړومبو له سره راټولوو او د کوچو پېړه (غټ غونډاری) په لاس راځي.دپانګې تجمع هم همداسې وبولئ، نو ځکه مو د دغو دوو اصطلا حاتو د توپیر لپاره دغه مثال راوړ.

دولت کولای شي، له بېلابیلو لارو لکه د مالیې د وضع کولو، په وارداتو بندیز، ټکسونو او نورو د وګړو لګښت کم کړي او پس اندازونه لوړ بوځي. همدارنګه د نویو پیسو د چاپ (چې ممکن ناوړه عواقب هم ولري) له لارې، د بېکارۍ په تېره بیا د پټې او موسمي بېکارۍ د له منځه وړلو او د پس اندازونو د فعالولو (لکه په بانکونو کې د تکتاني لپاره هڅول، ترڅو خلک خپلې اضافي پیسې هم بانک ته یوسي او هلته یې زېرمه کړي) له لارې او همدارنګه د بهرنیو پورونو له لارې د پانګې راټولېدل ممکن کړي. یوه بله لاره د بیځایه، غیر ضروري، لوکسو اجناسو د واردولو مخنیوی دی، خو د هغو پر ځای د صادراتو تقویه کول هم د پانګې د زیاتېدو سبب کېدای شي. په دې ډول د پرمختیایي هېوادونو دولتونه په بېلابیلو لارو نظر خپلو داخلي امکاناتو ته په کتنې سره د پانګې تشکل ته لاره هوارولای شي. په دې برخه کې د مثمرو پروژو تطبیق ډېر ګټور تمامېږي.

٦ ) ټکنالوژي:
پرمختیایي هېوادو ته د مناسبې تکنالوژۍ غوره کول ډېر مهم ضرورت دی، دا ځکه چې ځینې وخت په دغو هېوادو کې پرمختللي تکنالوژي د دوی د شرایطو سره مطابقت نه کوي، ځینې وختونه د ډېرې پرمختللې تکنالوژۍ په کار اچول د منابعو د ضایع کېدو او د بېکارۍ د رامنځ ته کېدو سبب کېږي. ترڅو چې لازمه پانګه نه وي چمتو او لازمه پوهه نه وي موجوده، د تکنالوژۍ نوې کول ناممکن دي. ځکه چې اغیزمنو تخنیکونو، پانګې او ماهرو فني کارکوونکو ته اړتیا لري چې باید پرمختیایي هېوادونه مخکې ترمخکې ورته چمتوالی ولري.



*اروپا وروسته تر دوهمې نړیوالې جګړې دتکنولوژي په مرسته بیارغاونې ته ملاوتړله*

۷) د پانګې اچونې ډېرې ښې لارې- چارې:
د دولت او پلان جوړونې ارګانونو ته لازمه ده چې د پانګې اچونې مناسبې طریقې وټاکي. دا ځکه چې یوازې مناسبه پانګه اچونه لوړ مولدیت ترلاسه کولای شي. باید د اقتصاد په هغه

برخه کې پانګه اچونه وشي چې ټولنيز حاشيوي ډېر لوړ مولديت ولري. همدارنګه (٦)
External economics (لکه د کار ډېر ښه وېش ولري، تشکيلاتو کې ښه والی راشي، د ټولنيزې پانګې څخه ګټه اخېستنه رامنځ ته کړي او داسې نور)ته پاملرنه په کارده. پانګه اچونه بايد د پرمختيا او ودې د زنځير هغې ډېرې ښې وده مودونکې کړی ته تخصيص شي (موږ بايد ډېره اساسي کړی وموږ او بيا وروسته پر نورو کړيو هم لاسبری موندلای شو). د ټولنې د شرايطو له مخې بايد دا وټاکوچې ايا کار وړونکې پانګه اچونه وشي او که پانګه وړونکي؟ همدارنګه بايد د متوازنې ودې (Balanced growth) انډول اونسبت د بېلابيلو سکتورونو ترمنځ له پامه ونه غورځول شي.

٨) د پانګې جذب

په پرمختيايي هېوادو کې د پانګې د راجذبولو په هکله کوم بريد Limit نشته حال دا چې دغه بريد بايد په نظر کې ونيول شي مثلاً: بايد دومره پانګه جذب شي چې توليدي عوامل په کار ولوېږي، دومره پانګه راجذب نه شي چې د انفلاسيون سبب شي يا د پانګې د راټولولو له امله د پرداخت تعادل ګډوډ شي. په دغه هېواد کې د انفلاسيون د پيښېدو امکانات ډېر زيات دي. د دغه انفلاسيون له کبله داخلي پس انداز او د خارجي اسعارو منابع ګواښ سره مخامخ کولای شي.

## د پرمختيا لپاره غير اقتصادي شرايط

لکه چې پخوا وويل شول د پرمختيا پروسه نه يوازې اقتصادي عوامل، بلکې غير اقتصادي عوامل هم لري.

W.S.Woutinsky په دې هکله وايي: که چېرې ممکنه وي د مشيګان، پنسلوانيا او اوهايو ټولې فابريکې، پرته له دې چې د خلکو ذهنيت، تفکر، مهارت او کړو- وړو کې بدلون راولو، هندوستان ته راولېږي او په يوه شپه ورځ کې يې دلته ځای پرځای کړو، بيا به هم وګورو چې په کلونو کلونو به هندوستان لکه دهمدا نن په شان پرمختيايي هېوادو کې شمېرل کېږي. کيرون کراس وايي: پرته له هغه ډول مادي شرايطو چې پرمختللو هېوادو کې شته، پرمختيا

---

[٦] په اقتصادي بحثونو کې په تېره اقتصادي پروژو، پلان جوړونې او پانګه اچونه کې موږ دوه ډوله اصطلاحاتو سره مخامخ کېږو: يو يې External economics ده لکه د بېلګې په ډول: يوه توليدي مؤسسه يا پروژه د مارکېټ يا خامو موادو يا ښار څخه لرې پرته ده کله چې هغې ته د اوسپنې پټلۍ وغزول شي يا نوی سرک ورته جوړ شي لېږدول رالېږدول کېږي هغه ګټه چې په دې توګه ترلاسه کېږي External economicsده، خو که چېرې د توليدي مؤسسې، پروژې يا دستګاه په دننه کې د تشکيلاتو د اصلاح. د کار د وېش، د خامو يا انرژيکې موادو د سپما او نورو له امله صرفه جويي وشي هغې ته External economics وايي، د دې سرچپه وضع Diseconomies بلل کېږي.

ناممکنه ده، خو که چېرې د وګړو په مغزو کې دې کارته لاس وانه چول شي او بدلون رانه وستل شي، نو پرمختیا تردې هم ناممکنه ده.
نو دغه غیر اقتصادي عوامل کوم دي؟ دلته به یې په لنډ ډول ذکر کړو:

## ۱) ټولنيز- کلتوري شرايط

دغه شرایط پس انداز ته د وګړو علاقه او میلان ټاکي. که چېرې په لازمه اندازه پس انداز ونه شي،د پانګې جوړېدل به په ټيټه کچه کې وي، نو اقتصادي پرمختيا به چټکه نه وي، خو د دې په سرچپه حالت کې به دا پروسه برعکس وي.

## ۲) ښوونه او روزنه

پروفيسور ګالبريت په دې هکله ويلي: نني وخت کې د پرمختيا لپاره تر ښووني او روزني بل هېڅ ضروري شرط نشته. دی وايي: که چېرې هر څومره پرمختللي ماشين الات وارد کړو، خو د وګړو روزنه کې هڅه ونه کړو بې ګټې کار دی. ښوونه او روزنه او د تکړه کدرونو شته والی د تکنالوژۍ څخه استفاده او د پرمختيايي پروسو ښه پېژندل ممکن کوي.
کيرون کراس بيا وايي: هېڅ هېواد پرته له ښووني او روزني د پرمختللي صنعتي تمدن خاوند نشي کېدای.
له دې پرته دپرمختيا معيارونه لکه ښه روغتيا، لوړ استعداد، دکاراوچته توانايی، دمړينو کمښت اونوښتونه هم ښووني اوروزنی پورې اړه لری. لاندې ګراف د میندو د تعلیم او دماشومانو دروغتياارتباط ښکاره کوی:

Coorelation between under 5 mortality and mother's education

*Mothers education*



له بده مرغه بیسوادی، ناوړه تغذیه، له روغتیایی اصولو بیخبری اود روغتیایی خدماتو کمښت د دي لامل شوی دی چی له پنځه کلنی دتیټ عمر مړینی ډیر شی. لاندی جدول دغه واقعیت څرګندوی:




## ۳) ښه او باکفایته حکومت

باکفایته، د وګړنیز احساس لرونکی، باوجدانه او صادق حکومت کولای شي قانوني نظم برقراره، ښه لوایح تطبیق، ښې پروژې پیل، ښه هیوادني پلانونه طرح او په نهایت کې د اقتصادي پرمختیا زمینه برابره کړي او خپل خلک ټولنیزې رفاه ته ورسوي او وګړو ته د ژوند د لوړې کچې(رفاه) امکانات چمتو کړي.

## ٤) نفوس

که چیرې د پانګې د زیاتوالي ضریب د نفوس د زیاتوالي په اندول لږ وي اقتصادي پرمختیا نشي حاصلېدای.
لنډه دا چې د کرنې د سکتور وروسته پاتیوالی، د پانګې کمښت، د فني، ماهرو کدرونو کمښت، د مناسبو مبتکرو، فعالو متشبثینو نه هڅېدل، په تخنیک نابلدي، ترانسپورتي او مواصلاتي ستونزې، د کریدیتي اشیاوو نشتوالی او داسې نورو نیمګړتیاوو د دې هیواد پرمختیا ټکنی کړې، نو ځکه هم اقتصادي او هم اجتماعي دواړه شرایط د پرمختیا لپاره ضرور دي.

## لنډيز

فقر په عمومي توګه هغه حالت ته وايي، چې هلته د ژوند اساسي احتياجات فرد ته پوره نه شي، يعنې د فقر کرښه هغه ده، چې د ژوند سطحه د اساسي اړتياوو له پوره کېدو څخه راټيټه وي، دلته د اساسي احتياجاتو تعريف لږ څه ستونزمن ټکی دی، ځکه ممکن اړتيا يا احتياجات بېلا بېل وګڼل شي، خو بيا هم بنسټيز احتياج د افرادو له خوا ټاکل کېږي، اوس بله موضوع هم واقع کېږي او هغه دا چې دا کافي نه ده، چې يوازې د بنسټيزو اړتياوو عرضه زياته شي؛ بلکې بايد ډاډمن شو، چې دا اجناس واقعا محتاجو خلکو ته رسيږي، بله دربيمه پوښتنه ممکن دا پيدا شي، چې اساسي احتياجات د وخت په تېرېدو سره بدلون مومي، نو ددې ځواب لپاره کافي ده، چې ووايو، ددې لپاره ډيناميکي طرحه بايد په پام کې ونيول شي، حتی غير عادي احتياجات هم بايد په پام کې ونيول شي، ځينو پوهانو فقر داسې تعريف کړی، چې: کله چې يوه ټولنه کې اساسي مادي احتياجاتو بر علاوه غير مادي احتياجات کله فردي ازادي او په جمعي تصاميمونه حق لرل موجود وي، فقر مسلط دی.

پروفيسور جهنګان په ۱۹۹۳م. کال کې د بنسټيز احتياج او اساسي ضروورياتو پرځای د فقر پيژندلو لپاره يو بل ډول تعريف راوړی، هغه وايي:

مطلق يا بشپړ فقر Absolute Poverty يوازې کم عايد لرل نه دي؛ بلکې سوء تغذي هم ده، ناروغي، د اوسېدو د ځای نه لرل، جامې نه لرل او د ښوونې او روزنې نشتوالی فقر دی، Absolute Poverty د خلکو د ژوند له ټيټې کچې ژوند سره منعکس کېږي، په فقيرو ټولنو کې د خلکو د عايد ډېره برخه په خوراک لګېږي، ياني تقريبا د خلکو د عايد په سلو کې اتيا يوازې په خوراکي څيزونو لګېږي، خو ددې بالمقابل په پرمختللو هېوادو کې د خلکو د عايد صرف په سلو کې شل په خوراکي توکو کې لګېږي، خلک صرف له غلو دانو او نشايستوي منابعو تغذيه کېږي، نو ځکه د سوء تغذي علايم په کې ليدل کېږي، دوی ته کافي غوښه، هګۍ، د کبانو غوښه او شيدې نه رسيږي، په دې توګه موږ د اقتصاد رخا او اقتصادي رفاه توپير کولی شو، خو لومړی بايد د اقتصادي معيارونو له مخې د ژوند ټيټ ستندرد يا د فقر کچه وپيژنو.

د اقتصادي معيارونو له مخې بېوزلي يا فقر په لنډه توګه داسې پيژنو، چې فقر، غربت يا بېوزلي هغه نادره حالت دی، چې د يو انسان، کورنۍ او يا هم د يوې ټولنې ژوند د حد اقل ستندرد Minimal Level Living څخه هم ټيټ وي، کله چې د اړتياوو ډېر ټيټ حد Minimum Needs هم پوره نه شي، دې ته بېوزلي ويل کېږي، په دغه نادره حالت کې ضروري اړتياوې؛ لکه کافي غذا، غذايي مصوونيت، روغتيايي اسانتياوې، ښوونه او روزنه، پاکې اوبه، د کوټو لازم شمېر او نور مهيا نه وي.

د کـار نړیــوال ســازمان (I.L.O) د یــوې ټــولنې د وګــړو لپــاره لــه فقــر څخــه پورته د احتیاج اساسي ضروریات په لاندې توګه ښودلي دي:

1. اساســي اړتیـاوې؛ لکـه حـد اقـل ضـرورت وړ غـذا، کـور، یـو شـمېر ضـروري سامان آلات او جامې.

2. د عامــه خــدماتو چمتــو والــی؛ لکــه پــاکې اوبــه، دولتــي عامــه ترانســپورت، د روغتیا او ښوونې او روزنې تاسیسات.

3. د خلکـو ګـډون پـه هغـه تصـامیمو کـې چـې دوی او د دوی ژونـد پـورې تړلـي وي.

نـو ویلـی شـو، چـې د فقـر او غربـت څخـه پورتـه حالـت کـې لـه فزیولـوژیکي حـد اقـل شـرایطو پرتـه اجتمـاعي شـرایط هـم شـامل دي، غربـت او بېـوزلۍ کـې لـه مـادي احتیاجـاتو پورتــه غیـر مـادي احتیاجـات لکـه فـردي ازادي، پـه تصـامیمو کـې د فـرد د ګـډون حـق هـم شـامل دی، خـو مـادي احتیاجـات لـومړنی ضـرورت دی، ځکـه چـې پـه دې کــې هغــه فزیولــوژیکي او لــومړني احتیاجــات؛ لکــه کــور، کــالي او ډوډۍ شــامل دي، د فقر یا بېوزلۍ بالمقابل حالت رفاه بلل کېږي.

هغـه هېوادونـه، چـې د بېـوزلۍ علایـم پـه کـې لیـدل کېـږي، د ډېـرو لـږو پرمختللـو Least Developed Countries یــا LDCs پــه نــوم یــادېږي، چــې هلتــه بېکــاري لیــدل کېــږي، اقتصــاد یــې اوس هــم صــرفا پــه کرنــه متکــي دی، وګــړي یــې ضــعیف، بېســواده او محافظــه کــاره دي، د نفوســو وده یــې ډېــره ګړنــدۍ او ټــولنیز خــدمات پــه کــې نــاچیزه، پــه دغــو هېوادونــو کــې د فقــر یــا بېــوزلۍ یــوه دایــره یــا Vicious Circles of Poverty مسطله ده.

بیوزلي هم په مطق ډول او هم په نسبي توګه د پېژندلو وړ ده ، هغه حالت او وضعیت دی چې یوه وګړي ته د ده اقل حد لومړنۍ اړتیاوې چمتو نه وي، یا په بله وینا: هغه ناوړه انساني حالت چې د بیولوژیکي لومړنیو اړتیاوو په شمول دژوند اقل حد سهولتونو ته لاسرسی نه وي، کېدای یش، یو وګړی، یوه کورنۍ او آن یو هېواد، د یو بل وګړي.کورنۍ یا هېواد په پرتله په نسبي توګه بیوزله وپېژندل شي او هم کېدای شي د ژوند د معیارونو په ارزولو سره یو وګړي، کورنۍ یا ټولنه په مطلق ډول بیوزله وبلل شي. په دی توګه بیوزلی یو حالت دی چې په نسبی او مقایسوی توګه ښودل کیږی، ثابت او دایمی نه دی، بلکی د ښه کولو او له دی حالت څخه د وتلو وړ دی. د پرمختیایي هېوادو لپاره دا ډېره مهمه ده ، په پرمختیایي هېوادو کې د بیوزلو خلکو سلنه سنجول کیږي، د بېلګې په توګه همدا اوس د ملګرو ملتونو د راپور له مخې په افغانستان کې په سلو کې ۳۸ وګړي بیوزله بلل شوي دي، (۱۳۹۵ ل ، کال)ځینې وخت ممکن یو تن د ژوند د تېرولو لپاره یوه اندازه د پام وړ عاید ولري، خو د ټولنې د نورو وګړو په مقایسه ډېر کم وي، په دې حالت کې هم نوموړې بیوزله پېژندل کیږي، او د فقر تر کرښې لاندې شمېرل کیږي، د ټولنې د عمومي رفاه او عاید په اوچتېدو سره د فقر کرښه هم لوړه تعریف کوي، د دې لپاره یو معیار ښودل شوی چې د فقر کرښه Poverty line بلل کیږي، دا د عاید هغه برید دی چې تر هغه لاندې وګړي ټول

ببوزله پېژندل کېږي، یعني دوی د خوراک ، جامو کور او د ټولنیزو او کلتوري اړتیاوو د پوره کولو وس  ونه لري.

## تمرینات

۱.دبیوزلی شیطانی دایره یعنی څه؟
۲.پرمختیایی هیوادوکې دپانگی عرضه ولی ناچیزه ده؟
۳.دپرمختیا لپاره ضروری شرایط ولیکئ.
۴.لویس داقتصادی پرمختیا لپاره کوم درې شرایط ښوودلی دی؟
۵.دپرمختیا لپاره غیراقتصادی شرایط څودي؟ له هغی جملې ټولنیز کلتوری شرایط،باکفایته حکومت، ښوونه اوروزنه او نفوس تشریح کړئ.
۶.ښکیلاک له وروسته پاتې هیوادو سره څه وکړل او نور به څه ورسره کوی؟
۷.نیمگړی بازار کوم بازار دی؟
۹.دپانگې ټولول یو بل سره کوم درې پړاوونه لري؟
۱۰.په افغانستان کې دوروسته پاتیوالی کومې نښې ښکاري؟

# څلورم څپرکی

## د اقتصادي پرمختيا ستراتيژي
## (متوازنه او غير متوازنه وده)

د يو پرمختيايي حالت څخه خپل ځان ته د توليدوونکي اقتصاد حالت ته د يوه وروسته پاتې اقتصاد لوړېدل، ددې غوښتنه کوي چې يوه اقتصادي مناسبه ستراتيژي غوره شي. د اقتصادي پرمختيا د ستراتيژۍ په اړه دوه مکتبونه شته: نرکسي( Regnar Nurkse)، رودانRodan او لېويس په دې باور دي چې داسې پانګه واچول شي او داسې تدابير ونيول شي چې د اقتصاد د بېلابيلو سکتورونو (کرنې، صنعت، سوداګرۍ، ترانسپورتي جوړښتونو، کلتور، ښوونه روزنه، عامه روغتيا) ترمنځ متوازنه وده رامنځته شي. ځينې نور اقتصاد پوهان لکه Hiurschman وايي چې د پانګې اچونې د هماهنګوالي او په بېلابيلو سکتورو کې په مساوي توګه د ودې پر ځای ښه دا ده چې د ځانګړو ستراتيژيکو صنايعو په برخه کې په لومړي قدم کې توجه وشي، دا ځکه چې د اساسي فعاليتونو پرمخ بيول اقتصادي چټکه وده تضمينوي. دغه څه چې په لنډ ډول ويل شول دا ددوه ډوله لېد لوري (طرز ديد) لنډيز و چې لومړی د متوازنې ودې تيوري او دويمه يې د غير متوازنې ودې تيوري بلل کېږي. له دې کبله چې په اقتصادي بحثونو کې په دې هکله ډېر ضد او نقيض نظريات وړاندې شوي او يو ډول ابهام يې رامنځته کړي ښه به وي په حاضر څپرکي کې دغه موضوع لږ څه په دلايلو سره روښانه شي ځکه چې اقتصادي پرمختيا کې بايد په دغو تېوريو پوهه موجوده وي.
طبعاً هر هېواد غواړي د خپل اقتصاد د پرمختيا پروسه دوامداره وساتي او ترممکنه حده د ټولنې د وګړو د رفاه ډېر ښه امکانات برابر کړي. عايدات لوړ، مصارف لږ، د استخدام شرايط ښه، ذخاير او پس اندازونه تشويق او د ژوند د سطح ستنډرد اوچت کړي. د دغو اهدافو پوره کول د ملي اقتصاد پرمختيا تامينوي. دغه رشد او وده د کمي او کيفي بدلونونو په معنا ده چې د هغې په ترڅ کې د اقتصادي اډانې غوره سکتورونو کې ملي منابع ورځ په ورځ په زياتېدونکي توګه ترکار لاندې راوستل کېږي. په دې ډول سره يو نوی اقتصادي جوړښت رامنځته کېږي او پرمختيا صورت نيسي. د يو ځانګړي او منفرد سکتور د ودې په پرتله د ټول ملي اقتصاد د ودې معنا پراخه ده. د ملي اقتصاد وده د کمي شاخصونو لکه د ملي عايد اندازه کې زياتوالی، د پس اندازونو د ښه کېدو، د سړي سرګټې لوړوالي او نورو په واسطه ښودل کېږي چې له دې سره يو ځای د اړونده ټولنې د وګړو د ژوند کچه او د ژوند بېلابيل اړخونه لکه روغتيا، ښوونه او روزنه، ترانسپورتي اسانتياوې، تفريحي، کلتوري او فرهنګي خدمات او نور ښه والی مومي. د ملي اقتصاد په پرمختيا سره ټولنيزې ناوړه ښکارندی(پديدی) لکه بېکاري، ناروغی، روږدتيا (اعتياد)، ناوړه بوختيا چې د تفريح(!) په نامه ترسره کېږي (لکه قمار او نور). ټولنيزې شخړې او نورې ستونزې حل او د ټولنېزې رفا (Social welfare) بريد ته رسېږي، نو ځکه بايد په يوه مناسب انډول او توازن سره ټولو برخو او هر منفرد سکتور ته وده ورکړل شي او اقتصاد د پورته ځانګړنو لرونکی شي.

د ګڼ شمېر اقتصاد پوهانو په نظر پورتنۍ موخه د متوازن رشد په عملي کولو ترلاسه کېږي. د ملي اقتصاد دغه ډول ودې ته (Balanced growth) هماهنګه وده یا متناسب رشد هم ویل کېږي. دا په دې معنا ده چې بېلابیل تشبثونه عین زمان کې انکشاف کوي او اقتصادي متمم ساحات، د اقتصادي بېلابیلو پړاوونو په ترڅ کې هماهنګه وده مومي. دغه نظریه او تیوري ډېره نوی هم نه ده، دا اوږده تاریخي سابقه لري: د اقتصادي نظریاتو د تاریخ په ترڅ کې لومړی ځل فزیوکراتان د متناسب رشد مسئلې ته ځیر شول. د اتلسمې او نولسمې پېړیو په ترڅ کې علومو نوی خوځښت وموند. هماغسې چې طبیعي علومو کې نوي کشفیات وشول، ټولنیزو پوهنو کې هم تېر اشتباهات رفع او نوې نظریې رامنځته شوې.
دغې دورې ته د روشنفکرۍ(رونتیااوویښتابه) د دورې نوم ورکړل شو. فزیوکراتان په اقتصاد کې د علمی اوعملي مکتب لومړني بنسټ ایښودونکي ګڼل کېږي. له دوی څخه مخکې ځینو اقتصادي نظریاتو کې ځینې منفرد بیلابیل موضوعات لکه بهرنۍ سوداګري، د پیسو جریان، ربح او نور په ځانګړي ډول بښودل شوي وو، خو فیزیوکراتانو د لومړي ځل لپاره د اقتصاد د کلي جریان جامع تحلیل وړاندې کړ.
د دغه مکتب مشهور لیکوال کنزي (Keynes) د کرنې سکتور مهم مولد سکتور وباله او د (اکونومي تابلو) په واسطه یې د هغه ارتباط له نورو سکتورونو سره واضع کړ. وروسته بېلابېلو نورو اقتصادي نظریاتو انکشاف وکړ، خو هغې موضوع چې هېڅکله یې خپل اهمیت له لاسه ورنه کړ، هغه د متممو اقتصادي ساحاتو متوازنه وده وه.
د اقتصاد د علم نامتو تیوریسن او څېړونکی (Rosenstein- Rodan) خپل مشهور اثر (Problems of industrialization of Eastern and south eastern Europe) کې د کرنې اوصنعت کلکې اړیکې تشریح کړې (ځکه چې دا دواړه مولد سکتورونه دي، د هغو په پرمختیا سره کانونه، جوړښتونه سوداګري او نور ټول سکتورونه تحرک او پرمختیا مومي). ده د کرنې د سکتور په بنسټ د صنایعو وده وښودله، رودان هغه لومړنی اقتصاد پوه و چې پرته له دې چې د(متوازنې ودې) اصطلاح وکاروي د متناسب رشد تیوري یې په ۱۹٤۳ م. کال کې کشف کړه. دغه موضوع د R.nurkse له خوا نوره هم مدللـه شوه. دغه راز پروفیسر لیویس د دې نظریاتو سره ورته تیوري وړاندې کړه. دلته د موضوع د لنډولو په خاطر د دوی د نظریاتو لنډ نچوړ وړاندې کوو:
د پرمختللي او مولد اقتصاد پر لوري د یوه پرمختیایي اقتصاد انکشاف د دې غوښتنه کوي چې یوه مناسبه اقتصادي سراتیژي ترلاس لاندې ونیول شي او د بېلابیلو اقتصادي سکتورونو ترمنځ باید پانګه ایښودنه متوازن رشد رامنځته کړي، په بله معنا:
الف) دولت باید په عین وخت کې د بېلابیلو ساحو ترمنځ پانګونه وټاکي.
ب ) د متوازنې ودې لپاره باید پلان جوړونه موجوده اوسي، سربیره پردې Lewis دا هم وایي چې بیلانس نه یوازې دا چې د سکتورونو ترمنځ، بلکې د بهرنۍ او کورنۍ سوداګرۍ ترمنځ هم ضرور دی!
د متوازنې ودې له تیورۍ سره سم، هماهنګ رُشد ټول تولیدات سره مرتبط کوي، د کار بښه ویش، د تخنیکي مهارت او د خامو موادو ډېر ښه کارولو، د مارکېټ د پراختیا، د کار د

ځواکونو او پانګې څخه د بهتري استفادې زمینه برابروي. د نرکسي او رودان دغې ګډې تیورۍ ته د The big push theory یا درنې او زوروری ډیکي/ټېلې نوم ورکړل شو. پروفیسر پاول هم دا نظریه تائیدوله چې په ۱۹۶۱ کال کې یې رواج وموند. په تېره بیا هغه هېوادونه چې ځانګړي کاني توکي (لکه نفت په عربي هېوادو کې) د عاید کوم قوي مدرک (لکه د سوداګرۍ بندرونه یا د مصر لپاره سویز کانال او د پانامي کانال) یا ځانګړې صادراتي اقلام لکه ربړ، چای او قهوه، نه لري او کرنه یې لا تراوسه عمده مسلط اقتصادي سکتور دی، نو دوی ته لازمه ده د راتلونکي انکشاف په خاطر د کرنې پر بنیاد صنعت ته متوازنه وده ورکړي. د کرنې د ودې اغیزه د ملي اقتصاد په وده او تقویه باندې د لاندې عواملو له مخې اثر لري:

۱) د نفوسو د زیاتوالی سره سم د هغوی د غذایي اړتیاوو پوره کول،

۲) د صنعتي محصولاتو ورځ په ورځ زیاتېدونکي تقاضا د ډېرو مهمو اقتصادي سکتورونو د پراختیا اړتیا رامنځ ته کوي،

۳) د کرنیزو محصولاتو زیاتوالی د دې امکان برابروي چې بهرني اسعار جذب او په دې ډول د راټولې شوې پانګې په ذریعه ماشین الات وارد او د هېواد د ترقۍ باعث شي،

٤) د کلیوالي وګړو د عاید د سطحې لوړول چې بیا د حکومت له خوا راټولېږي (د مالیاتو او ټکسونو په بڼه)،

٥) د بیکارۍ د ټولو ډولونو کمښت او د کار د زمینې برابرول،

۶. په مجموعي توګه د ژوند د ستندرد لوړول.

اقتصادي پرمختیا یوه داسې پروسه ده چې له هغې سره یوه ټولنه ځان ته د اړتیا وړ نوړیو، توکیو او چوپړونو د چمتو کولو اغیزمنتیا لوړوي او د هغې له امله د سړي سر عاید او د ژوند سطحه کې لوړتیا راځي او د اقتصاد په جوړښت (Structure) او پروسیجر کې په زړه پورې بدلون راځي، په دې ترڅ کې د ترلاس لاندې کرنیزو ځمکو او پراخو بډایه سرچینو په کمې اغیزمنتیا (Quantitative efficiency) کې تحرک او زیاتوالی راځي او کله چې تولید کې زیاتوالې راغي، نو عاید لوړېږي چې عاید لوړ شو پانګه تشکل مومي او په دې ډول د ورځ په ورځ زیاتېدونکو وګړو اړتیاوو ته ځواب ویل کېدای شي، دغه زیاتوالی بهرنۍ سوداګرۍ کې هم غوره اغېزه لري، دې سره په ستوي (موازي)توګه د کلیوالو خلکو د خرید توان (د صنعتي محصولاتو لپاره) لوړېږي او دا په خپله د صنعت پرمختګ او د صنعت د محصولاتو لپاره د مارکېټ پراختیا رامنځته کوي، بالمقابل د صنعت محصولات لکه کیمیاوي سرې، تکنالوژي (یوم، لور، ټرکټور، کولبه...)، د اوبو لګولو اسانتیاوې او اسباب د کرنې سکتور کې د تولید د زیاتوالي سبب کېږي. په دې ډول هم د صنعتي سکتور مارکېټ پراخېږي او هم د بزګرو د پیرودنې توان زیاتېږي. له همدې امله د دواړو سکتورونو ترمنځ د پانګې تبادله لوړېږي، له دې سره نورې شبکې او څانګې لکه عامه خدمات او ترانسپورت هم ښه والی مومي، کله چې د اضافه شویو زراعتي محصولاتو (ازاد تولید) لېږدول له کلیو څخه ښارونو ته او هم په ښارونو او فابریکو کې د تولید شویو سامان الاتو لېږدول د ښارونو څخه کلیو ته وشي، هغه دوه ګوني اقتصادي نښه چې موږ پخوا وویل ورو

ورو له منځه ځي. سربېره پردې چې په دې کار سره د کتاب په دويم څپرکي کې د پرمختيايی والي نښې او معيارونه رڼګېږي، د فقر د دايرې کړۍ هم وار په وار سستېږي. د دغو مهمو اقتصادي سکتورونو د پرمختيا دغه طويل المدته اغيزې به د پانګې اچونې په لور يو ښه قدم وي. دا هم په خصوصي او هم په عامه (Public) ډګرونو کې صدق مومي.
که چېرې واردوونکي اجناس او توکي د هېواد دننه کورني ضايع توليد (هست) کړي او توليدات لاپراخه شي، په اسانی سره کولای شو پوره اندازه بهرنی اسعار له دې لارې ترلاسه کړو.
څومره چې صنعت پرمختګ کوي، نو د زراعت عوايد نظر د هېواد مجموعي عوايدو ته کمېږي، دا ځکه چې دا ډول مواد په پراخه اندازه د هېواد دننه د واردو شويو مالونو پر ځای په توليداتو کې په کار ځي. دا توليد شوي توکي او نورې د يوې اندازې پيسو د سپما لامل ګرځي، د غلو- دانو زياتوالی هم د بهرنيو اسعارو د زياتوالي لامل ګرځي دا ځکه چې اقتصاد په ځان د ويساوالي خواته درومي، په دې ډول د غذايي موادو او خوراکي توکيو زياتوالی نه يوازې دا چې بهرني اسعار يا پانګه ترلاسه کوي، بلکې د هېواد د اقتصاد په ټولو اړخونو غوره په زړه پورې اغېزه کوي.
د پورتنی بهرنی پانګې په ذريعه موږ کولای شو په صنايعو کې نوې څانګې پرانيزو او لا پراختيا ورکړو.
له دې کبله چې د پرمختيايي پړاوونو په لومړی سرکې وروسته پاتې هېوادونه د ماشين الاتو او د هغو پرزه جاتو د واردولو لپاره پوره پانګې ته اړتيا لري، نو د دغې پانګې د پوره کولو لپاره موږ اړ يو چې د کليوالو سيمو د کرنې د مولديت کچه ( Productivity Level) اوچت کړو د دې پايله دا راخيژي چې د کرنې د دغې پراختيا سره يو ځای يو څه اضافي توليد مارکېټ ته عرضه کېږي، صادراتو کې زياتوالی راځي، يو شمېر وارداتي اقلامو څخه بې نيازه کېږو، بالاخره پورتنی ذکر شوې سرمايه او پانګه تشکل مومي.
دا هغه تجربه وه چې يو شمېر پرمختيايي هېوادو کې ترسره شوې کوم چې افغانستان ته ورته شرايط يې لرل، خو بايد په ياد ولرو چې موږ به دلته په هغه څه ډېر بحث وکړو چې زموږ د هېواد ځانګړو شرايطو سره برابر دي.
د يو شمېر هېوادو لکه د جاپان پرمختيايي پړاوونو له پورته پړاوونو سره توپير درلود هغوی ډېر په چټکی صنعتي لاره غوره کړه او يو شمېر افريقايي هېوادونه د منرالونو (په تېره قيمتي فلزاتو) استخراج ته اړم دي، يو شمېر د خليج هېوادونه د نفتو صادرات لري او بله سرچينه نه لري يا يې هم پام ورته نه دی کړی. خو موږ ته بويه هغه دريځ ونيسو چې برياليتوب مو پکې نغښتی وي او ډاډمنه پرمختيا مو په نصيب شي په دې هکله ګڼ شمېر پوهان مدلل نظرونه لري:
د Mellon او Johnston له نظر سره سم د کرنيزو توليداتو زياتوالی، د عامه لومړنيو اړتياوو د لګښتونو کمښت، د کرنيزو امتعو د بيو راټيټېدل او له کروندګرو له بېلابېلو لارو د مالياتو او ټکسونو ترلاسه کول په برکې لري، نو د دې لپاره چې زياته اندازه پانګه ترلاسه شي. نو طبعاً بايد د کرنيزو کارکوونکو په شمېر کې کمښت راوستل شي او پر ځای يې عصري تکنالوژي زراعت ته داخله او ترويج شي، يعنې ماشين الاتو څخه کار واخېستل شي.

خو دلته دا ستونزه راپیدا کېږي چې د کرنې د سکتور دغه وزګار شوي وګړي د صنعت لپاره ضروري حرفوي او مسلکي کارګران نه دي. نو دلته یو زیات شمېر مصارف په مستقیم او غیر مستقیم ډول د دوی په روزنه باندې صورت نیسي. د ملګرو ملتونو د هغې څېړنې له مخې چې په ۱۹۸۰-۱۹۷۱ پورې یې کړې ځرګندوي چې یوازې او یوازې د پرمختیایي هېوادونو صنعت دېرش مېلیونه وګړو ته اړتیا لري په دې معنا چې یو کال کې تقریباً درې مېلیونه وګړو ته اړتیا ده چې باید په صنعت کې د کار لپاره وروزل شي. پر کارګرانو سربېره باید انجینران، تخنیککاران او نور پرسونل هم وروزل شي چې شمېر له سلو مېلیونو لوړېږي. طبعاً د صنعت لپاره د دغو پرسونلونو روزل لګښتونه غواړي. د دغو لګښتونو د پوره کولو لپاره بیا هم اړ یو چې د کرنې عصري کېدو او په هغې کې د في واحد مولدیت لوړولو ته کوشش وکړو. د دې لپاره چې دولت وکولای شي دغه لوړه اندازه لګښتونه پوره کړي نو د فیسونو، مالیاتو، ټکسونو، جریمو او نورو په زیاتولو لاس پورې کوي، دا عمل د کرنې متشبیثین د تولید لوړولو ته مجبوروي. دا ځکه چې په هغه شمېر پرمختیایي هېوادو چې پر ځمکو مالیات کم وي، نو هغوی ته د کرنې د پراختیا نړېواله اداره اخطار او خبرداری ورکوي چې د دې پایله به داشي چې د ځمکو د حاصلاتو لوړولو ته به ونه هڅېږي. کرنه به عنعنوي پاتې شي، په پای کې به اقتصاد همداسې وروسته او د فقر یا غربت دایره به پخپل ځای پاتې وي، نو باید خلک اړ ایستل شي چې د خپلو ځمکو څخه لوړ تولید ترلاسه کړي، ښایي د یو څه مودې لپاره د کرنې د سکتور څخه وزګار شوي (شړل شوي) کسان بېکاره پاتې شي، خو ډېر ژر د صنعت د څانګو په پراختیا هغوی ببرته استخدامېږي، په دې توګه لېدل کېږي چې د کرنې پرمختیا دواړه حالتونه رامنځ ته کوي، هم د کار د زمېنې برابرول او هم تر یو وخته د بېکارۍ رامنځ ته کول، خو کله چې کرنیز تولیدات لوړېږي د هغو سره سره د صنعت ساحه پراخېږي او یو شمېر وګړي پکې استخدامېږي په پایله کې یې دبزګرانو او ځمکوالو د عایداتو زیاتوالی (د کرنې د مولدیت د لوړوالي له امله) د خلکو د ژوند د ښه کولو او د هغوی د خودکفا او اقتصادی حالت دبهبود لامل ګرځي. په همداسې یو حالت کې بزګران هڅه کوي چې د لوړ غذایي کیفیت لرونکي محصولات (a higher nutritional value food) او باکیفیته غله جات (superior quality cereals) استعمال کړي لکه حبوبات، هګۍ، کوچ، شیدې، کلول، لوبیا، نخود، میوې او نور. دغه راز دوی د ځینو خدماتو لکه ښوونځیو، کتنځیو،مخابراتو،ترانسپورت د اوبو رسولو سیستم، د بانکونو څانګو او مطبوعاتو څخه برخمن کېږي بالمقابل صنعت هم د خپلې دغې متوازنې ودې سره مهم رول ادا کولای شي.

دا به غلطه وي که چېرې داسې فکر وشي چې ګواکې پرمختیایي هېوادونه خپل اقتصادي جوړښت کې مطلقاً د داسې سکتورونو لرونکي نه دي چې د متوازنې او متناسبې ودې په رابطه دې ورسره مرستې ته اړتیا نه وي. په دغو هېوادو کې ټول په صنعتي مېتود استوار معاصر تولید یوازې او یوازې هغه وخت ښه اغېزمن دی چې متوازن او متناسب وي. د دغه متوازن رشد په نتیجه کې د تولیداتو د هوښیارانه تنظیم لپاره ټاکلی فرصت رامنځته کېږي او لکه څرنګه چې تېرو بحثونو کې وویل شول صنعت خام محصولات د استفادې لپاره

پروسس کوي. صنعتي کېدل د اقتصاد د ودې لپاره یو اهم ضرورت دی، خو واقعي اقتصادي پرمختګ هغه وخت رامنځته کېږي چې د صنعتي کېدو لپاره د ډېر غور او دقت
څخه وروسته یوه منظمه او متناسبه پالیسي غوره شي چې دا ډول پالیسي پخپله د زراعت د ترقی او په نورو اقتصادي سکتورونو د مثبتې اغېزې په شکل ظاهرېږي. په نتیجه کې استخدام لوړ او د ټولنې عواید هم لوړېږي. د افغانستان په شان پرمختیایي هېوادونه له یوې خوا د کرنې د عنعنوي سیستم او له بلې خوا د نفوسو د چټک زیاتوالي له امله په کرنه کې په فوري توګه د یو لوی بدلون لپاره انتظار نشي ایستلای، ځکه چې د کرنې عصري کېدل یوه تدریجي پروسه ده، نو پکار ده چې دغه ډول هېوادونه د کرنې ترڅنګ د صنعت د ودې لپاره هم متوازن ګامونه پورته کړي ترڅو کیمیاوي سرې، ماشین الات، وسایل، درمل او نور لومړني مواد په اسانۍ سره دهقانانو ته مهیا کړي. صنعتي کېدنه دغو هېوادو ته په دې خاطر هم ضرور ده چې دغه سکتور د زراعت ترڅنګ ډېر پس اندازونه رامنځته کوي او پانګه جوړښت مومي.
هیواونو ډیر نفوس په صنعت او خدماتو کی بوخت دی. دغه ارقام نړیوال بانک په۲۰۱۰م. کال کې دیوې څېړنې په ترڅ کې نشر کړی دی.

| Share of the population employed in the agricultural, industrial, and service section in selected countries 2004-2008 (%) | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | Agriculture | | | Industry | | | Service | | |
| | Males | Females | Share of GDP (2008) | Males | Females | Share of GDP (2008) | Males | Females | Share of GDP (2008 ) |
| Africa | | | | | | | | | |
| Egypt | 28 | 43 | 13 | 26 | 6 | 38 | 46 | 51 | 49 |
| Ethiopia | 12 | 6 | 44 | 27 | 17 | 13 | 61 | 77 | 42 |
| Madagascar | 82 | 83 | 25 | 5 | 2 | 17 | 13 | 16 | 57 |
| Mauritius | 10 | 8 | 4 | 36 | 26 | 29 | 54 | 66 | 67 |
| South Africa | 11 | 7 | 3 | 35 | 14 | 34 | 54 | 80 | 63 |
| Asia | 42 | 68 | 19 | 15 | 13 | 29 | 43 | 19 | 52 |
| Bangladesh | 41 | 41 | 14 | 21 | 15 | 48 | 38 | 44 | 37 |
| Indonesia | 18 | 10 | 10 | 32 | 23 | 48 | 51 | 67 | 42 |
| Malaysia | 36 | 72 | 20 | 23 | 13 | 27 | 41 | 15 | 53 |
| Pakistan | 44 | 24 | 15 | 18 | 11 | 32 | 39 | 65 | 53 |
| Philippines | 7 | 8 | 3 | 33 | 16 | 37 | 60 | 74 | 60 |
| South korea | 43 | 40 | 12 | 22 | 19 | 44 | 35 | 41 | 44 |
| Thailand | 56 | 60 | 22 | 21 | 14 | 40 | 23 | 26 | 38 |
| Vietnam | | | | | | | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Latin | 27 | 6 | 9 | 22 | 16 | 36 | 51 | 78 | 55 |
| America | 18 | 5 | 7 | 28 | 13 | 29 | 54 | 82 | 64 |
| Colombia | 19 | 4 | 4 | 31 | 18 | 37 | 50 | 77 | 59 |
| Cost rica | 42 | 8 | 19 | 20 | 18 | 30 | 38 | 73 | 51 |
| Mexico | | | | | | | | | |
| Nicaragua | | | | | | | | | |
| | 2 | 1 | 1 | 32 | 9 | 24 | 66 | 90 | 76 |
| Developed | 2 | 1 | 1 | 30 | 9 | 22 | 68 | 90 | 77 |
| countries | | | | | | | | | |
| United | | | | | | | | | |
| kingdom | | | | | | | | | |
| United | | | | | | | | | |
| states | | | | | | | | | |

*Source: Michael P.Todaro (2015), Economic Development, PEARSON. P.66 .*

بیلابیلو هیوادو کې د سکتورنو ترمنځ ارتباط او په هرسکتور کی دبوخت نفوس سلنه، دذکورو او اناثو بوختیا په اقتصادی فعالیتونو کې او د دوی د کار ونډه په ملی مجموعی تولید کې فرق کوی . په لاندې جدول کې دلاتینی امریکی، آسیا او افریقی یو شمیر غوره شوی هیوادونه (چې عمدتاً پرمختیایی هیوادونه دی)، له صنعتی پرمختللو هیواونو سره مقایسه شوی دی، له مقایسی څخه ښکاری چی په پرمختللو هیوادو کی ډیر لږ وګړی په کرنه کې بوخت دی، خو د کرنی دسکتور له هر تولیدی واحد(هرهکتارځمکې،هرفارم،هری غواوهرې چرګی...) څخه ښه زیات عاید ترلاسه کوی، مګر دپرمختیایی هیوادونو ډیره سلنه وګړی په کرنه کې بوخت دی، مګر په ملی مجموعی تولید او بهرنۍ سوداګری کې یی سهم ډیر کم دی. دپرمختیایی هیوادونو په پرتله، دپرمختللو لکه څرنګه مو چې د درېیم څپرکي په پیل کې وښوده، زموږ د هېواد اکثره وګړي د اقتصادي ستونزه سره مخامخ دي، همداراز د بېکارۍ مختلف ډولونه موجود دي. دا چې یو زیات شمېر وګړي د کرنې سکتور کې ظاهراً بوخت ښکاري اما په واقعیت کې د هغوی مولدیت کم او د عاید سطحه یې ډېره ټیټه ده، نو کولای شو هغوی په اسانۍ د زراعت د سکتور نه د صنعت سکتور ته انتقال کړو چې دا د زراعت په محصولاتو کومه منفي اغېزه نه کوي. بل هغه عمده ضرورت چې د کرنې او صنعت د متوازنې ودې ته شته دا دی چې د صنایعو په ودې سره د سرمایې دوران تېزېږي، یعنې پانګه راکده نه پاتې کېږي او د دغه دوران په نتیجه کې د پس اندازونو اندازه زیاتېږي. په اخر کې ویلای شو چې د کرنې سره یو ځای د صنایعو متوازنه وده د ټولنې د پوره مثبت بدلون، د عاید د سم وېش او متوازنې ترقۍ او نهایتاً د اقتصادي ترقۍ سبب یا لامل کېدای شي. سربېره پردې د کرنې او صنعت متوازن رُشد او د کرنې د پرمختیایي پلان د نورو برخو د دولتي پلانونو سره هماهنګ یا کواردنات کول د کار د ښه ټولنیز وېش او د سکتورونو ترمنځ د اختصاصي کېدنې سبب هم کېږي. په دې توګه که له یوې خوا کرنه کې کیفي بدلون

راځي له بلې خوا د کرنې مهمه ونده اوس د فابريکو لپاره د خامو موادو تهيه کول دي، نو ځکه د دې سکتور ترمنځ هم خپل منځي اړيکې، پيوستون او سلسله په قوت سره وده کوي او حتی پيچلې کيږي او دا ټول عوامل د کرنې او صنعتي کامپلکسونو سره د هماهنګې ودې د پلان کولو ضرورت پيښوي. د متوازنوالي په دې مېتود سره له يوې خوا پورتني مقاصد ترسره کيږي او له بلې خوا توليد کې سم انډول رامنځ ته کيږي، محصولات درست وېشل کيږي او د بشري ځواکونو څخه په استفادې او مالي او بودجوي لګښت کې ښه والی او انډول رامنځ ته کوي. خو کوم هېوادونه چې پرته د زراعت د متوازن رشد څخه يوازې د صنايعو ودې ته ملا تړلې هغوی د خامو موادو د کمښت سره چې بايد دغه پراخ شوي صنعت ته يې عرضه کړي مخامخ شوي. په همدې خاطر اقتصاد پوهان دې نتيجې ته رسېدلي دي چې پرته له شکه د ترقۍ راز په صنعتي کېدو کې دی، خو تر يوه حده پورې. د ترقۍ د عمليې يا د پرمختيا راز د صنعت او زراعت(دواړو) په متناسب رشد کې پروت دی. سربېره پر ذکر شويو فاکتونو د دغو دوو سکتورونو متوازنه وده لاندينۍ ښېګڼې هم لري:

١) د کرنې يو ځای په متوازنه توګه د صنايعو وده د پانګې د تشکل لپاره اسانتيا پيښوي، چې دغه راټوله شوې پانګه د کرنې په مدرينزه کېدو لګېدای شي.

٢) د صنايعو وده يو شمېر موسمي وزګار کېدونکو کليوالو ته د کار ښه زمينه برابروي او هغوی د پخواني بخورو نمير ژوند څخه وځي او عايديي لوړيږي.

٣) د صنايعو په ترقۍ سره د خلکو مادي ژوند سره يو ځای کلتوري او فرهنګي حالت کې ترقي راځي د خلکو ښوونه او روزنه ښه کيږي او ورو ورو د عصري ژوند سره اشنا کيږي.

٤) د صنايعو وده د خلکو په مصارفاتي اقلامو کې تنوع راولي چې د دې د لاس ته راوړلو لپاره کروندګر او د کرنې ماهرين د ځمکو څخه د تشديدي استفادې او اعظمي توليد لپاره هڅې کوي. دا هم بايد ووايو چې يو شمېر اقتصاد پوهانو د متوازنې ودې سره توافق نه دی ښودلی هغوی د متوازنې ودې په تيورۍ انتقاد کړی. دلته به د بېلګې په توګه هغه ذکر کړو:

## د متوازنې ودې په تيورۍ انتقاد

سينګر وايي چې په پرمختيايي هېوادو کې ٧٠-٩٠% وګړي په کرنه کې بوخت دي. دوی عمدتاً کرنيز توکې صادر وي او نور توکي خصوصاً صنعتي محصولات او ماشينونه واردوي، د دوی د ټولو توليداتو دوه پر دريمه برخه د کرنې سکتور کې توليديږي، خو مولديت يې ډېر ناچيزه دی. نو بايد دغه جوړښت له بنسټ څخه بدلون ومومي نه دا چې ټول سکتورونه په متوازنه توګه وده ومومي. د کرنې سکتور څخه چې ډېر لږ مولديت لري د صنعت سکتور ته چې لوړ مولديت لري لېږد او انتقال اقتصادي معقوله ستراتيژي ده.

په پورته توګه د سينګر له نظر سره سم د متوازنې ودې نظريې ته بايد غلطه نظريه ونه وايو، بلکې هغه به يوه خامه نظريه وبولو او د پرمختيايي هېوادو په هکله، ديو څه اصلاحاتوپه پام کې نيولوسره د تطبيق وړ ده.

Malitstra وايي: دغه پالیسي لکسه ده، نو ځکه یې پرمختیایي هېوادونه نشي زغملای Alfred Marshal تقریباً معتدله لار نیولې. د ده د نظر نچوړ دا دی: هغه هېوادونه چې خپل اقتصاد کې خاص سکتور لکه صرفاً د نفتو تولید نه لري او اقتصاد یې تراوسه پر کرنه ولاړ دی هغوی ته متوازنه وده مناسبه ده، مګر هغوی چې د موثري پانګې اچونې یو خاص سکتور ته د ډېر ښه انکشاف استعداد لري هغوی باید ځانګړي سکتور ته وده ورکړي لکه انګلستان کې چې د مالداری د پیاوړتیا له کبله څه موده وړی اوبدلو، د غوښې تولید او دې ته ورته چارو ته خاصه توجه کړې وه.
Singer بل ځای وايي چې تر هر څه مهمه دا ده چې د پرمختیایي هېوادو په هکله او د پرمختیایي اقتصاد په برخه کې یو هر اړخیز تفکر د اهمیت وړ دی، خو د محدودو سرچینو د موجودیت په شرایطو کې د کوم ستر کار سرته رسول معقول نه دي. د ده له نظره د تحت استخدام (نه بشپړ استخدام او نه بشپړه بیکاري) شرایطو کې د متوازن انکشاف طرح ښه طرح ده.
پرمختیایي هېوادونه د څو سکتوري اقتصاد دورې یا د څو سکتوري انکشاف په شرایطو کې ډېرې زیاتې پانګې ته اړتیا لري. یعنې دی وايي: که مونږ اقتصاد ته متوازنه وده ورکوو، نو اړ یو چې ټولو برخو کې پانګه واچوو او دا ډول پانګه اچونه ډېره پانګه غواړي، حال دا چې یو پرمختیایي اقتصاد د پانګې له کمښت سره مخامخ وي، نو ځکه د دې ډول اقتصاد شرایط دا غواړي چې غوره شویو ډګرونو ته پاملرنه وشي. له بلې خوا پرمختیایي اقتصاد د فني پرسونلو او کدرونو، صنعتي ماهرینو له کمښت سره او په تېره بیا د منجمنت او تشبث په ساحه کې د مجرب سټاف د نشتوالي سره مخامخ وي، نو نشي کولای ټول سکتورنه په متوازنه توګه پرمخ بوځي.
A.O. Hirschman په خپل اثر The strategy of economic Development کې متوازنه وده د اقتصادي پرمختیا د تیورۍ په توګه نه مني دا ځکه چې دا د وروسته پاتې اقتصاد Non- Developed Economy یا نه پرمخ تللي اقتصاد پر فرضیه ولاړه نظریه ده. په یو پرمختیایي اقتصاد کې تل تولید د عواملو نا انډولي موجوده وي، نو ځکه د متوازن رشد د پالیسۍ تطبیق پکې ګران ښکاري. ځینې اقتصاد پوهان د دولت مداخله په ټولو برخو کې لازمه نه بولي. د هغوی له نظر سره سم، که چېرې د پرمختیا امکانات موجود نه وي، نو دولت هم هېڅ نه شي کولای! دغه ډول پالیسي هغه وخت اغیزمنه تمامېدای شي چې ټولنیز تمام شد قیمت ټیټوالی وعمومي او بهرنۍ سپماوې او ګټې External Economize رامنځ ته شي او دا بیا په داخلی سپماوو Internals Economize بدلې شي.

## غیر متوازنه پرمختیا

د غیر متوازنې ودې یا پرمختیا تیوري د Hirschman له خوا د ده په یو کتاب کې چې د (اقتصادي پرمختیا د ستراتیژۍ) په نوم خپور شوی، وړاندې شوې ده. ده د پرمختللو هېوادو د اقتصادي پرمختیا تاریخ ته په کتلو سره وویل: د پرمختیایي اقتصاد د ودې او ترقۍ لپاره

ډېره غوره ستراتیژي، نا انډوله او غیر متوازنه وده یا پرمختیا ده یعنې په پرمختیا کې عدم بیلانس. دی وایي عملاً متوازنه پرمختیا او تعادل ډېر لږ لېدل کېدای شي. تعادل به دا معنا ولري چې ګویا هر څه ډېر ښه تنظیم شوي او د هغو بدلون ته هېڅ اړتیا نشته، په داسې یو اکرکې عاید په ټیټه کچه کې وي، هیرش مین نه یوازې په مولدو سکتورو کې د پانګې اچونې پلوی دی، بلکې په عین سویه ښوونه او روزنه، عامه روغتیا، ټرانسپورټ، بندونو او نهرونو کې هم د پانګې اچونې پلوی دی. که چېرې په یو اقتصاد کې د سړي سر ټولنیزه پانګه وده ومومي، نو له دې امله د دوی د ژوند لګښتونه ښه کېږي او دوی کولای شي د ډېرو چوپړونو څخه برخمن شي مثلاً د دوی د برېښنا په لګښت، ترانسپورټي اسانتیاوو او نورو کې پرمختیا راځي، یعنې علاوګي ظرفیت رامنځ ته کېږي. مولد فعالیتونه باید د اضافه شوي (علاوګي) ظرفیت سره برابر شي، دا پرمختیا د علاوګي ظرفیت له لارې صورت نیسي. که چېرې یو اقتصاد مولدو فعالیتونو ته پرمختیا ورکړي، متمم فعالیتونه او بازار هم پرمختیا مومي. سړي سر ټولنیزه پانګه باید د مولدو فعالیتونو پرمختیا سره ستوي، موازي او برابر شي. دغه ډول پرمختیا ته د پانګې د قلت له لارې پرمختیا ویل کېږي دا حالت یو زیګ-زاګ حرکت ښکاره کوي، کله چې اقتصاد او عاید لږ ښه شي، استخدام ټیټ شي، کله چې عامه خدمات ښه شي، عواید کمیږی، کله چې استخدام ته توجه وشی، عواید کمیږی او داسی نورې لوړې-ژورې.

د هیرشمن له نظر سره سم یو پرمختیایي اقتصاد کې لویه ستونزه د منابعو کمښت نه دی، بلکې له منابعو څخه د ګټې اخیستنې د اهلیت او لیاقت کمښت دی. د همدې علت له مخې SO.C او DPA په عین وخت کې پرمختیا نشي موندلای، نو لازمه ده چې له هغو څخه یوه ته یې وده ورکړل شي. که چېرې SO.C ته پرمختیا ورکوو اقتصاد ډېر دروند $AA_1$ $BB_2C$ خط یا کرښه تعقیبوي، که چېرې SO.C له A څخه تر $A_1$ پورې پرمختیا وکړي، مولد فعالیت هم هڅول کېږي، په B نقطه کې تعادل منځته راځي. تر $B_2$ نقطې پورې لږه نوره پرمختیا د DPA د لازیاتې هڅونې سبب کېږي په C نقطه کې تعادل رامنځ ته کېږي، دغې ډول پرمختیا ته د علاوګي ظرفیت له لارې پرمختیا وایي، خو که هغه بله کرښه یعنې $AB_1$ $BC_1C$ د DPA له لارې پرمخ ولاړه شي، SO.c هم هڅول کېږي، په لوړو نقطو کې باید د DPA سره برابروالی ومومي. دغه ډول پرمختیا ته هیرشمن د Soc پانګې د قلت له لارې پرمختیا نوم ورکړی دی. هیرشمن وایي: یو پرمختیایي اقتصاد د دغو دواړو کرښو پرمختیا په یوه وخت نشي زغملی، نو ځکه د پلان جوړونې اداره (د پلان وزارت یا د پلان دولتي ګمیټه یا کمیسون) باید د ټولنې د شرایطو سره سم له دغو لارو څخه یوه یې غوره کړي. یعنې د اقتصادي پروژو ټاکل کار لاندې نیول د یوه پرمختیایي اقتصاد او هېواد د وخت او شرایطو تابع دی. دې برخه کې د عامل – حاصل (Input- Output) جدول مرسته کولای شي. د ده له نظر سره سم هغه پروژې چې په اقتصاد ډېره ژوره اغېزه کولای شي د بېلګې په توګه د اوسپنې ویلې کول او فولاد جوړول دي، خو پرمختیایي اقتصاد د خپلو شرایطو له مخې هېڅکله داسې پروژو ته د لومړیتوب حق نشي ورکولای. هیرشمن د دې پلوي دی چې لومړی باید هغه ضایع کار لاندې ونیول شي چې یوه ټاکلې کچه کې د ټولنې د اړتیا وړ کالیو، توکیو او نورېو

تولیدونکي او عرضه کوونکي اوسي. کله چې کورنۍ اړتیاوې تر یوه بریده بسیا شولې دویم ګام کې باید د بهرنیو صنایعو د وارداتو د تعویض لپاره حمایه شي. سره له دې چې یو پرمختیایي اقتصاد کې د دوی د صنایعو صادراتو ته ارزښت نه دی ورکړل شوی، خو په حقیقت کې د صادراتو د تشویق او د وارداتو د تعویض ترمنځ همدومره توپیر شته چې لومړی یې د دویم عملي لاره ښیي. نوموړی په لنډیز سره وایي چې: متوازنه وده په پرمختیایي اقتصاد کې په همزمانه توګه ناممکنه ده، نو د دې مجبوریت له مخې د غیر متوازنې پرمختیا لاره غوره کوي.

## په غیر متوازنې پرمختیا انتقاد

د پرمختیایي اقتصاد لپاره د غیر متوازنې پرمختیا ستراتیژي چې د هیرشمن له خوا پیشنهاد شوی د پرمختیایي پلان جوړونې ټول اړخونه نظر کې نیسي. د هڅولو، فشارونو او خنډونو هر ډول بڼې د پرمختیا په لاره کې روښانه کوي. دی دا هم وایي چې په پرمختیا پسې بیا وروسته کوم ډول او څومره پانګې اچونې ته اړتیا ده او دا څومره حکومتونو ته مهمه ده. دې د ازاد تشبث طرفدار هم نه دی او نه هم دولتي بشپړه پلان جوړونه مني یعنې د پخوانیو سوسیالیستي هېوادونو په څېر مرکزي پلان جوړونه ورته لازمه بولي چې خصوصي متشبثین د هغې په رڼا کې رهنمایي، تشویق او حمایه شي.
پروفیسر پاول او Srtreeton وایي: بنسټیزه خبره د اقتصاد متوازن پرمختګ رامنځ ته کول نه دي، بلکې اساسي سوال دا دی چې آیا د غیر متوازنې ودې مساعده درجه کومه یوه ده یعنې په څه اندازه، غیر متوازن والی مجاز دی چې چټکه پرمختیا رامنځ ته شي؟ یعنې په دې تیورۍ کې باید د غیر متوازنې پرمختیا رهبرۍ، وخت او ترتیب وټاکل شي.
نرکسی وایي: په پرمختیایي اقتصاد کې غیر متوازنه وده حالات نور هم خرابوي، دغه غیر متوازنه وده به بیا تر ډېرې مودې همداسې دوام پیدا کړي. دوی په بیلابیلو هېوادو کې د غیر میتوازنه ودې بد مثالونه ذکر کړي. داسې فکر ونه شي چې یو وخت د مرکزي اقتصاد لرونکو هېوادو متوازنه وده خوښوله، برعکس متوازنه وده ډېر د پانګوالو نظامونو کې هم تطبیق شوي. برعکس غیر متوازنه وده د مرکزي اقتصاد او مرکزي پلان هېوادو کې هم تطبیق شوې.
که چېرې د غیر متوازني ودې د تیورۍ له مخې چې وایي باید ستراتیژیکو اقتصادي برخو کې دې لومړی پانګه واچول شي، د دې نظر سره سم په ستراتیژیکو برخو کې زیاته پانګونه(سرمایه ګزاري) ممکن عاید لوړ کړي او له عرضې څخه زیاته تقاضا رامنځ ته شي. نو آیا دا یو بد انفلاسیون نه رامنځ ته کوي؟ او بل دا چې د غیر متوازني پرمختیا په شرایطو کې ټولنیز حاشیوي مولدیت او د حاصلاتو په پرتله د پانګې کم نسبت قناعت ښښونکی کېدای شي؟ نه هېڅکله نه. خو سره له دغو انتقاداتو له دغې ستراتیژۍ څخه ډېر ښه هر کلی وشو.

تمرينات

۱.متوازنه وده يعنی څه؟
۲.فزيوکراتان څوک وو؟
۳.کرنه دکومو شپږو عواملو له مخی دملی اقتصادپه وده اثر لری؟
۴.د Mellonاو Johnston له نظره دکرنيزو توليداتو زياتوالی ته څه ضرورت دی؟
۵.په متوازنه وده ولی انتقاد شوی دی؟
۶.په متوازنه وده کې اقتصاديی سکتورونه څنګه يوبربل اغيزه لری؟
۷.داقتصاد نامتو څيړونکی R. Rodan په خپل مشهور اثر کی څه ويلی دی؟
۸.دافغانستان لپاره متوازنه اوکه غيرمتوازنه وده مناسبه ده؟
۹.په اروپاکې د روشنفکرئ دوره کومه يوه وه؟
۱۰.دهيرشمن له نظره دوروسته پاتې هيوادو ستونزه دمنابعو کمښت ندی، بلکې له منابعوڅخه دګټې اخيستو دظرفيت نشتوالی دی، دغه خبره په خپل استدلال او نظر توضيح کړئ.

# پنځم څپرکی
# د اقتصادي پرمختيا نظريات (ځينې تيورۍګانې)
# (Some Theories of Economic Development)

لکه چې پخوا وويل شول په ملي عايد کې زياتوالی د اقتصادي پرمختيا يو معيار و. د شلمې پېړۍ په ٤٠-٥٠ لسيزه کې د پرمختيا په هکله بيلابېلې تيورۍ وړاندې شوي. مخکې له دې چې دا تيورۍ شرحه کړو، دا به ووايو چې دغه تيورۍ څرنګه جوړې، پخې او وړاندې شوې دلته به د پرمختيا ډېرو مشهور تيوريو څخه يادونه وکړو، هغه چې مشهورې نه دي مبهمې دي او عملاً په دې ٥٠-٦٠ کلونو کې تطبيق شوي نه دي د هغو ذکر نه کېږي.
په اقتصاد کې د يوې تيورۍ د پخېدو لپاره ځينې شرايط ضرور دي. وروسته بيا علما او پوهان خپل مطالعات (Observation) د هغو په رڼا کې د خاصو شرايطو سره مقايسه او تعديل کوي، نتيجه ګيري کوي په اقتصاد کې تيوري د اصل، اساس، قانون، پرنسيب او قاعدې سره مترادف استعمالېږي. په اقتصاد کې يوه تيوري بايد ٤ اصلي شرايط ولري:

## ١) فرضيات (Assumption)

د دې په خاطر چې پوهان وکولای شي يوه تيوري وړاندې کړي او د هغې پر اساس ځينې اقتصادي تدابير ونيسي، دوی ځينې پديدې(ښکارندې) فرض کوي او بيا پيش بيني او تجارب ترسره کوي او د هغو تجاربو نتايج د تطبيق ډګر ته وړاندې کوي چې اقتصادي تصدي او نور ډګرونه پرې غني او بشپړ شي. خو بايد وويل شي چې په اقتصادي پديدو کې يوه پديده ثابته فرض شي نو د هغې نور اړخونه ثابت نشي پاتې کېدای د بېلګې په توګه مونږ فرض کوو چې که د يو جنس د قيمت په لوړېدو سره (که نور مسايل ثابت پاتې شي) د هغه عرضه زياتېږي، خو په واقعي جهان کې (نور مسايل ثابت) نه پاتې کېږي. ځکه دلته د يو جنس په توليد کې مصارف، تکنالوژي، د عوضي اجناسو عوضي د بشپړونکو اجناسو قيمت، مربوط جنس ته د خلکو ميلان، عايد، نفوس او نور ډېر شيان شته چې اغيزه لري، نو ځکه د (که نور شيان ثابت پاتې شي) خبره واقعيت نشي موندلای. که دا خبره واقعيت ومومي نو بيا ربښتيا هم د يو جنس د قيمت په لوړېدو د هغه عرضه لوړېږي. يو مثال به راوړو: که غوښه قيمته شي حتماً يې عرضه نه لوړېږي ممکن يو شمېر خلک کلول/ لوبيا ته مراجعه وکړي، که قيمت يې لوړ شي او غوايان زيات حلال شي نو اړ يو د مالدارۍ شمېره راکمه شي او دا بيا د فارمونو د مصارفو د لوړېدو سبب کېږي او داسې نور، نو په فرضيه کې بايد د متغيراتو خبره هېره نه شي. په دې ډول (که قيمت لوړ شي عرضه زياتېږي) صرف يوه تيوري ده.

## ۲) د یوې تیورۍ د ارایې لپاره متغیرات Variables:

هره پدیده د هغې د عواملو د بدلون سره بدلیږي مثلاً د یو جنس د قیمت لوړېدل هغه ته تقاضا کموي (نور شیان په خپل حال فرض شوي دي) دلته تقاضا یو متحول یا متغیر Variables دي، چې د بیو بدلون هغه بدلوي.

## ۳) ادعا Hypothesis:

هر هغه څه چې د اثبات په لومړیو پړاونو کې دي او نتیجه یې د تجربې په توګه لا ثابته نه وي هغه ادعا بلل کیږي نو په دې ډول په اقتصادي تیوریو کې د فرضیاتو او متغیراتو ترڅنګ ادعاوې هم شته. ترهغو چې د ادعا نتیجه سل په سلو کې ثابته نشي د هغې د تطبیق کولو اجازه نشته مثلاً ادعا کیږي چې ټولنیزو خدماتو کې د حکومت د لګښتونو لوړول کار کولو ته د وګړو هڅه کموي. دا یوه ادعا ده ترڅو ادعا ثابته نشي هېڅکله د قانون په توګه نشي منل کېدای.

## ٤) اساس، قاعده یا قانون

دا د تدقیق او بررسۍ اخري مرحله ده هغه څه چې د Observation په اساس ثابت شي د اساس قاعدې او قانون بڼه نیسي.

تر اوسه چې د پرمختیا او اقتصادي ودې په هکله کومې تیورۍ ګانې شته د همدې ډول اجزاوو پر اساس جوړې شوې دي. دلته به ځینې تیوري ذکر کړو:

د اقتصادي پرمختیا کلاسیکه تیوري (دا د ادام سیمت، ریکاردو، مالتوس، جان ستوارت میل او نورو نظریات دي).

- د شومپتیر تیوري: دغه تیوري د اقتصادي ودې محدودونکی عامل د متثبث قلت ښکاره کوي، برخلاف د مثشبث موجودیت د اقتصادي پرمختیا عامل بولي.
- د کینز او د هغه د پیروانو تیوري Keynesian theory: کینز په اقتصادي پرمختیا کې د لنډې مودې د نوساناتو رول ښکاره کړه په ۱۹۳۰ کال کې یې د (General Theory of Employment interest and Money) په نوم خپله تیوري خپره کړه.

وروسته ګڼ شمېر پوهانو د اقتصادي پرمختیا په هکله نظریات ورکړل په دې کې یوه ډېره نامتو تیوري د روستو د پړاونو تیوري بلل کیږي سره له دې چې د دغې تیورۍ، بنسټ اېښودونکو څخه نیولې بیا د هغې تر بشپړونکو ډېرو پوهانو کار کړی خو فعلاً په اقتصادي بحثونو کې د روستو د تیوري په نوم یادیږي. دلته به دبیلګې توګه دغه یوشمیرمهم نظریات ذکر کړو.

## د پرمختیا په هکله د میردال (Myrdal) نظر:

پروفیسور ګیو نار میردال (Prof.Gunnar Myradal) په دې ګروهه و، چې پرمختیا د یوې دایروي پرله پسې دوران په توګه واقع کېږي، د میردال له نظره د عصري کولو د پروسې غوره عناصر عبارت دي له:

## معقولیت:

ټولنیزه او اقتصادي وده او انکشافي پلان لرل، د مولدیت لوړوالی، د ژوند د سطحې لوړوالی، د ټولنیزې او اقتصادي ودې چانس برابروالی، اغېزمنه سازماندهي، ملي یووالی، استقلال، دیموکراسي او ټولنیز دسپلین.

نوموړي په وروسته پاتې هېوادو کې د شیطاني دایرې (Vicious Circle) ته اشاره کوي او دا چې پرمختیا د دغې دایرې د ستونزو پرله پسې حل کول دي، دی وایي، دا به غلطه وي، چې موږ یوه ټولنه کې په ټولنیز سیستم کې د ارتباط خبره هېره کړو، دی په منطقوي ارتباط عقیده لري او وایي، چې د یو هېواد بېلې بېلې سیمې یو بل سره رابطه لریو دغه منطقي او د هغو انکشاف یو پر بل اغېزه لري.

میر دال وایي، چې البته اقتصادي پرمختیا، مخصوصا د صنایعو وده د تولید پر جوړښت، استخدام، اجتماعي ذهنیت او نورو باندې غوره اغېزه لرلی شي، ممکن دغه پرمختیاوې د سیمو د دوه ډوله پرمختیا سبب شي، چې یوه سیمه کې په تخنیکي، اقتصادي او اجتماعي ترقي رامینځته شي، خو بله منطقه کې به غربت او فقر موجود وي، میردال عقیده لري، چې صنعتي وده یو انفرادي ځانګړی عمل نه دی؛ بلکې یو داسې جمعي لاره ده، چې په هغې سره ذهنونه، موسسات، تشکیلات، تولید، استخدام او نورې ټولې چارې بدلون مومي، د صنعت په برخه کې هر ګام او د یوه صنعتي ځانګې پرانیستل په تقاضا کې د بدلون، د عیاد د لوړتیا او د پانګې اچونې او تولید د پراختیا سبب کېږي، په یوه منطقه کې دغه ډول پرمختګ د بلې منطقې وروسته پاتې کېدل ملي اقتصاد کې د بې توازنۍ سبب کېږي، هغه وایي، که په داسې حال کې ټول اقتصادي جریان په خپل سر د بازار ځواکونو او خصوصي واک ته وسپارل شي، نو صنعتي تولید، تجارت، بانکداري، بیمه، ترانسپورت او نور ټول فعالیتونه فقط یو څو نقطو کې متمرکز کېږي، خو نورې سیمې بېوزلې پاتې کېږي او له اغېزمنو پرمختیایي عواملو څخه تشېږي، په همدې خاطر دېته د تخلیه کېدو اثرات (Back Wash Effects) وایي، چې تخلیوي اثرات، اقتصاد ته نور هم زیان اړوي، له نورو سیمو د پانګې کارګرانو، اجناسو او خامو موادو حرکت دې سیمې ته راماتېږي او په دې توګه د سیمو انکشاف کې عدم مساوات زیاتېږي.

دا ځکه څومره چې دغه عوامل دغې سیمې ته ډېر حرکت کوي، هغه بله سیمه همدومره تشېږي، تر پخواني وروسته پاتې او بېوزلې منطقې نوره هم بېوزله کېږي.

لــه دي املــه چــې د كــارګرانو مهــاجرت انتخــابي وي، نــو مهــارت لرونكــي ځــوان كــارګران ژر پــه كــار كــې نيــول كيــږي، نــو مــخ پــر وده سيمه كــې پرمختيــا نــوره هــم ګړنــدۍ كيــږي، خــو نــورې سيمې همــدومره وروســته پــاتې كيــږي، پــه دې توګــه مــوږ يــوې تــه مســاعده سيمه او بلــې تــه غيــر مســاعده سيمه وايــو، چــې نتيجــه يــې د يــوې Regional Inequalities يــا منطقــوي بــې عــدالتۍ موجــب كيــږي، لــه همــدې املــه د پانګې حركت هم دغو دوو نامسعدو سيمو باندې اغېزه كوي.

پــه انكشــافي سيمه كــې چــې پــانګې اچــول كيــږي، هلتــه عايــد او تقاضــا نــوره هــم زيـــاتيږي، دا عمـــل نـــورو ســـرمايوي اړتيـــاوو، يـــاني د پـــانګې اچـــوني ضـــرورت زيـاتوي، نـو ممكـن د پـس انـداز عرضـه هـم زياتـه شـي، خـو د تقاضـا زيـاتوالى ممكـن پــوره نــه شــي كــړاى، چــې دا د ګټــو يــا ربــح فيصــدي لــوړوي، دا حالــت ددې لامــل ګرځــي، چــې لــه پــاتې سيمو خصوصــا لــه نامســاعدو يــا وروســته پــاتې سيمو څخــه لا زياتــه نــوره پانګــه هــم همدلتــه راجمــع شــي او پــس اندازونــه مــخ پــه همــدې مســاعدې خــوا بانــدې رامــات شــي، دغــه وضــع ددې موجــب كيــږي، چــې مســاعده سيمه كــې بانكونــه او نــور اقتصــادي موسســات او ســهولتونه ايجــاد شــي، دا پــه بيــوزلــه سيمه لا زيــات بــده اغيــزه كــوي، دا ځكــه چــې دلتــه د بــانكونو څــانګې لــه وروســته پــاتې سيمو څخــه پــس انداز پرمختللي سيمې ته چې هلته د ګټې او ربح سلسله لوړه ده راكش او راولي.

يــوه بلــه د عــدم تعــادل پيښــه دا واقــع كيــږي، چــې ســوداګري او د اجناســو راكــړه وركــړه هــم د مســاعدې سيمې پــه ګټــه بــدلون مــومي، پــه پرمختللــو سيمو كــې د رقــابتي بــازار پراختيــا د دوى رقــابتي قــدرت د صــعودي بهــرې د نزولــي تمــام شــد قيمــت پــه ډيــر ټيټ انډول زياتوالى مومي.

صــعودي بهــره پــه وروســته پــاتې سيمه يــا غيــر مســاعدو منطقــو كــې كــوچنۍ حرفــې او لاســي صــنايع چــې دي، هغــه هــم لــه مينځــه وړي، دا وخــت لــه دې املــه چــې پــه وروســته پــاتې منطقــو يــا غيــر مســاعدو سيمو كــې د ســرك، بريښــنا او نــورو عامــه خــدماتو او زيــر بنــايي چــارو كــوم ضــرورت نــه ليــدل كيــږي، نــو هلتــه هيڅــوک كــار نــه پيــل كــوي، خــو بــرخلاف پرمختيــايي عامــه او زيربنــايي شــبكې پــه مســاعدو سيمو كــې نــورې هــم زيــاتيږي، ددې بالمقابــل پــه مســاعده سيمه كــې پراختيــايي اثــرات ( Spread Effects) واقــع كيــږي، ددغــه سيمې عوامــل، خــام او نــيم كــاره مــواد، پانګــه، كــارګران او كدرونــه راجلبــوي، تقاضــا هــم پــه كــې ښــه كيــږي او پرمختيــا پــه ترقــۍ بدلــه او د صــنعت ســكتور د خــامو مــوادو توليــدوونكي ســكتور خصوصــا زراعــت ځــان پســې راكشــوي، دغــه وضــع د بيــوزلۍ پــه حالــت كــې بايــد پــه نظــر كــې ونيــول شــي، د ميــردال دغــه علمــي اثــر پــه ۱۹۷۱م. كــې ( Economic Theory & The Underdevelopment Countries) تــر عنــوان لانــدې نشــر شــو او د زيــات شــميړ اقتصــاد پوهانو توجه يې ځانته جلب كړه.

## د پرمختیا په هکله د الفرد مارشال نظر:

الفـــرد مارشـــال (Alfred Marshall) تقريبـــا معتدلـــه لار نيـــولې، دده د نظـــر لنـډيز داسـې دی، چـې هغـه هېوادونـه چـې خپـل اقتصـاد کـې خـاص سـکتور؛ لکـه صـرفاً د نفتـو توليـد نـه لـري او اقتصـاد يـې تـر اوسـه پـر کرنـه ولاړ دی، هغـوی تـه متوازنـه وده مناسـبه ده، مګـر هغـوی چـې د مـوثرې پـانګې اچـونې يـو خـاص سـکتور تـه د ډېـر ښـه انکشـاف اسـتعداد لـري، هغـوی بايـد ځـانګړي سـکتور تـه وده ورکـړي؛ لکـه انګلسـتان چـې د مالـدارۍ د پياوړتيـا لـه کبلـه يـې څـه مـوده وړۍ اوبـدل، د غوښـې توليـد او دېتـه ورتـه چـارو تـه خاصـه توجـه کـړې وه، يـانې دی د يـوه خـاص اقتصـادي ډول ترقـۍ بانـدې زور اچـوي، هغـه وايـي، چـې بايـد هغـه لنـډه لاره ولټوله شـي، چـې پـه هغې سره پرمختيا ميسره شي.

# د اقتصادي پرمختیا لپاره د روستو مراحل
# Rostow's Stages of Economic Growth

Walt Rostow والت روستو په ۱۹۱٦ م کال کې په نیویارک کې نړۍ ته سترګې پرانیستي دي، په ۱۹۳٦ م کال کې یې خپل لسانس د ییل (Yale university) له پوهنتون څخه او فوق لسانس یې په ۱۹۳۸ م کې له کمبریج پوهنتون څخه او دکتورای یې به ۱۹۳۹ م کې له ییل پوهنتون څخه ترلاسه کړ او په ۱۹۵۲ م کال کیې د دغه پوهنتون د اقتصاد دتاریخ په تدریس پیل وکړ په ۱۹٦۱ م کال کې د ملي امنیت په چارو کې د امریکې د هغه مهال د ولسمشر جان کینډی ځانګړی مشارو غوره شو.
وروسته بیا له ۱۹٦۱ څخه تر ۱۹٦٦ م پورې د امریکې د بهرنیو چارو په وزارت کې د پالیسي جوړولو د شورا مشر و ټاکل شو ورپسې بیا تر ۱۹٦۹ م پورې د هغه مهال د ولسمشر لیدن جانسون ( Lyndon B. Johnson) د ملي امنیت مشاور شو ، له بده مرغه په ویتنام کې د جانسون د غلط سیاست مدول روستو وپیژندل شو ، روستو ورسته تر ۱۹٤۹ م څخه چې امریکې په ویتنام کې کلکه ماتې خوړلې وه، دولتي اداري دندې پرېښودې اوپه اوستین (Austin) کې د تکزاس پوهنتون (University of Texas at Austin) د استاد په توګه پاتې شو .
د نوموړي ډېره مشهور نظریه هماغه د پرمختیا یي د مراحلو په هکله چې پنځو پړاوونو کې تشریح کړې ده ، له دې پرته یې ګڼ شمېر مقالې هم نشر شوي دي.
د والت روستو د اقتصادي ودې د پړاوونو کتاب The Stages of Economic Growth په ۱۹۵۲ م کې خپور شو .
۱۹٦۰ م کې بې د غیر کمونیستي مانیفیست په نوم کتاب (Anon - Communist) په ۱۹۷۱ م کې یې د Politics and The Stages of Growth اثر په ۱۹۷۵ م کې یې د How it all Began په نوم اثر ، په ۱۹۷۸ کې یې ( The World Economy ) ( چې د نړۍ د اقتصاد ي بنې تاریخ دی ) او په ۱۹۸۵ کې یې د کینډي او ایزنهاور او بهرني مرستې اوپه ۱۹۹۰ کې یې ...Theories of Eco. Growth اثر اوپه ۱۹۹۸ م کې یې The Great pupations spike and after په نوم اثر خپور شو.
د ۱۹۵۰ او ۱۹٦۰م. کلونه په نړۍ او په تیره په اروپا کې ستونزمن کلونه وو، ډېرو متفکرینو د وضعیت د بیرته نورمال کیدو، اقتصادی بیارغاونې او ثبات په هکله فکر کاو. ددغوکلونو د پیچلي او ګونګ چاپیریال څخه چې د سړې جګړې له امله ځپل شوې او د نوي ازاد شویو هیوادونو د سیالۍ وخت و، د نورو نظریاتو ترڅنګ یو هم د روستود اقتصادي پرمختګ یا د "پرمختیا د مرحلو موډل" رامینځته شو. د دې موډل د اغېزمنتیا دښودلو او پرمخ بیولو لپاره د امریکا دغه اقتصادي پوه (والټ رسټو) کار کا و. د روسټو د اصولو له مخې اقتصادي پرمختګ د ځینو مرحلو یا ګامونو لړۍ ده چې ټول هیوادونه یې باید تعقیب یا تیر کړي. لکه څنګه چې روسټو د خپل کتاب " د اقتصادي پرمختیا مرحلې" په لومړیو کې لیکلي دي چې:

“دا کتاب د اوسني تاریخ د اهمیت په اړه د یوه اقتصادي تاریخ پوه مختلفې نظریې راښیې.... موږ بیلابیل هیوادونه د دوی د اقتصادي ودې دخصوصیاتو له پلوه کولای شو چې له لاندینیو پینځو مرحلو څخه په یوې پورې اړوند وبولو چې عبارت دي له:

۱.لرغوني یا عنعنوی ټولنه
۲.دپایداره کیدو په لور د پورته کېدو د ضروی یا لمړیو شرایطو مرحله
۳.د ټوپ وهلو پړاو
۴.پوخوالي ته رسیدل
۵.د لوړ مصرف (ګڼ کتلوی مصرف)مرحله

دا مرحلې یواځې او یواځې نومونه او د مرحلې د خصوصیاتوتشریح کوونکې ندي او نه د اوسنیو پرمختللیو ټولنو د پرمختګونو د لړیو په اړه د څو حقیقي څېړنو عمومي کول دي، بلکې د دوی تر مینځ یو داخلي منطق،ارتباط او دوام موجود دی. ر په ستو د خپلو نظریاتو په پای کې د اقتصادي ودې اوپرمختیا د کارل مارکس په شان یوه دتاریخی مراحلو نظریه رامینځته کړه ، یو شمیر اقتصاد پوهان د روستو نظریات د مارکس له نظر سره ورته بولی، خو کټ مټ یا دهغه نقل یې نه بولی، داځکه چې مارکس دټولنی ټول اړخونه او طبقاتی تضادونه په پنځو مرحلو کې ښودلی، خو روستو یواځې د اقتصادی ودې او پرمختیا پړاوونو باندې تمرکز کړی دی .”

د روستو د نظریاتو یو ټکی دا و چې د نړۍ پرمختللی هیوادونه د اقتصادی استحکام او دپرمختیا د پروسې د پایداره کیدو د لومړنیو شرایطو له مرحلې څخه تېر شوي، خو د نړۍ پرمختیایی هیوادونه یا خو په لرغوني ټولنه کې وه او یا خو هم د لمړي شرایطو په مرحله کې ،یعنې هغه هیوادونه چې باید د خپل پرمختګ د پایداره کیدو لپاره وروسته له دې، د اقتصادي پرمختګ معین ګامونه پورته کړي.

د روستو (د اقتصادي ودې مراحل) کتاب د پوهنتون لپاره داسې کتاب و چې په هغه کې د پرمختیا لپاره پړاوونه داسې ښودلي دي:

1 ) عنعنوي ټولنه،
2 ) ضروري شرط،
3 ) د ټوب وهلو پړاو ،
4 ) د پوخوالي مرحله او
5 ) د ګڼ کتلوي مصرف پړاو.

له پورتني مهم کتاب څخه پرته یې یو شمېر نور اثار هم خپاره شوی چې هغه یاد رسالو په بڼه دي یا هم تحلیلي مقالې دي، نوموړي دا تشریح کړه چې یو هېواد چې صنعتي شوي هغه مهال د ټوپ وهلو پړاوونه رسېږي، چې د سپما ضریب یې لوړ شوی وي، مثلاً بریتانیا په ۱۷۸۰ ، امریکا په ۱۸۲۰ کې المان په ۱۸۵۰ کې دغه پړاو تېر کړی دی، خو ګڼ شمېر اسیایي او افریقا یي هېوادونو کې لاس اوس هم د سپما نسبت او د تولیدي پانګې ضریب د ټوپ وهلو پړاو ته نه دي رسېدلي ، په دې توګه نوموړي د ټوب وهلو(جهش take off) د پړاو لپاره سپما ( پس اندازه یا Saving) شرط باله او دایي ویل چې پانګه باید مولده پانګه

وي، خو يو شمېر نور اقتصاد پوهان د ده له دې نظر سره موافق نه و ، دا ځکه دوی ويل چې انګېزه او تکنالوژۍ هم هغه عوامل دي چې د پرمختيا او د دې په درجه تاثير لري، نو ځکه يو شمېر اقتصاد پوهان د روستو نظرياتو او دپړاوونو نظر يې ته ډېر ارزښت نه ورکوي، روستو په ۲۰۰۳ م کې ومړ.
روستو د اقتصادي پرمختيا پروسه د ځينو پړاونو په واسطه تشريح او مشخصه کوي.
په دې معنا چې ټول هېوادونه دغه پړاوونه بشپړوي. دغه پړاوونه دا دي:
۱. عنعنوي ټولنه:
په دې پړاو کې د ټولنې جوړښت داسې وي چې د توليد سطحه ډېره محدوده وي، له ابتدايي وسايلو او لارو چارو کار اخېستل کېږي. البته په توليد کې لږ لږ زياتوالی روان دی خو ډېر ورو ورو، دا ځکه چې داسې ټولنه له علم او تکنالوژۍ څخه محرومه وي. زيات شمېر سرچينې کرنه کې کارول کېږي او بالمقابل کرنه د ټولنې لپاره د محصولاتو په وړاندې کولو کې زياته برخه لري.

۲. ضروري شرط:
دا د تېرېدو او ګذار يو پړاو دی. دا يوه اوږده مرحله ده ځکه هغه ټولنه چې د تخنيک او علم څخه استفادې کولو ته چمتو کېږي يو څه وخت غواړي دغه پړاو د ټوپ وهلو (جهش) مرحلې ته د تېرېدو پړاو بلل شوي. جغرافياوي موقعيت، سوداګري، سرچينې، بازار، سياسي او ټولنيز جوړښت برتيانيا سره مرسته وکړه چې دغه پړاو ډېر ژر بشپړ کړي او د ټوپ وهلو (جهش) پړاو ته ننوځي.
په دغه پړاو کې يو عمومي تحول او بدلون پېښېږي، دلته دولت او سياسي شرايط مهم رول لوبوي، يعنې دولت د پانګې اچونې له لارې کولای شي لويې لويې پروژې عملي کړي مثلاً د ريل پټلۍ، سرکونه او بندرونه تاسيس کړي، ښوونه او روزنه پرمخ بوځي، د کرنې لپاره تکنالوژۍ برابره، لوی لوی کرنيز فارمونه جوړ او په پای کې د صنعت ترقۍ ته زمينه برابره کړي. په دغه مرحله کې روستو داسې توصيه کوي چې بايد داخلي پس اندازونه لوړ شي او هغه په مولده پانګه بدل شي. بايد ملي افکار وده وکړي تر څو د جهش مرحله بشپړه شي يعنې عامه وګړو سره ملي احساس او د ترقۍ شوق او د هېواد د پرمختيا مينه پيدا شي او دا مفکوره بايد سياسي رهبرۍ کې هم موجوده اوسي. په دې ډول د جهش يا ټوپ وهلو د مرحلې لاره هوارېږي.

۳. د ټوپ وهلو پړاو:
دا د هېوادونو اقتصادي پرمختيا کې يو ځانګړی چټک تحرک دی. د بېلګې په توګه په انګلستان کې د جهش پړاو په ۱۷۶۳ م. کې پيل او تقريباً دوه لسيزې يې دوام وکړ، د امريکا متحده ايالاتو کې يې ۱۸۴۳-۱۸۶۰ کلونه وخت ونيو. دا کلونه(موده)له صنعتي انقلاب سره برابر ګڼل کېږي. په جرمني کې د نولسمې پېړۍ دربېمه ربع او جاپان کې د نولسمې پېړۍ پای د ټوپ وهلو پړاو بلل شوې. کاناډا وروسته تر ۱۹۱۴ او هند او چين ايله په ۱۹۵۰ کلونو

کې دې پړاو ته ورسېدل.اوس هند او چین دواړه ګړندی روان دی. د دې پړاو ځینې خصوصیات دا دي:
الف- په دې مرحله کې د ملي خالص عاید ۵-۱۰ فیصده برخه پانګې اچونې ته بیله او پانګه اچونه وده مومي.
ب- یو یا دوه سکتورونه ډېر برلاسي پیدا کوي.
ج- په همدې پړاو کې مؤسساتي، ټولنیز او سیاسي ژور بدلونونه هم راځي او په مجموع کې ټولنه کې حرکت پیښیږي.

٤ . د پوخوالي پړاو ته د لېږدېدو پړاو:
په دغه پړاو کې د ملي عاید په سلو کې ۱۰-۲۰ پانګې اچونې ته بېلیږي د نفوسو د زیاتوالي په پرتله د ملي عاید زیاتوالی زیات وي، د اقتصاد په ټولو برخو کې له پرمختللې ټکنالوژۍ کار اخېستل کیږي. نه یوازې دا چې ملي اقتصاد خپل ضروري ټول شیان تولیدولای شي، بلکې کوم اضافه څه چې وغوښتل شي هم تولیدولای شي. دغه پړاو کې د پرمختیا پروسه د ټوپ وهلو تر پړاو پېچلې وي، ممکن دلته د وسپنې، ډبرو سکرو، پټلۍ او ثقیله صنایعو څخه د ماشین او کیمیاوي صنعت او د بریښنا د انرژۍ سکتور ته انتقال صورت ونیسي. لکه هماغسې چې انګلستان، فرانسه، متحده ایالاتو او جرمني کې ولېدل شول.

۵. د ګڼ کتلوي مصرف پړاو (The age of high mass Consumption):
دلته هڅه کیږي ټولې منابع او سرچینې د ټولنیزې هوساینې لپاره وقف شي. دلته عمده سکتور د مصرفي اجناسو د تولید سکتور وي او تولید یې دوامداره بڼه لري لکه راډیو، موټر، یخچال، ویډیوګانې. د بېلګې په توګه جاپان او لویدیځه اروپا ۱۹۵۰ کال کې دغه پړاو ته داخل شول. جاپاني متخصیصنو د خپل هېواد د ډېر پرمختګ په نتیجه کې په دې وروستیو کې یوه بله مرحله هم اضافه کړې او هغې ته یې (شپږم پړاو) نوم ورکړی. دوی وایي زموږ هېواد اوس په دې پړاو کې دی او د دې پړاوځانګړتیا په یو لوی ښار باندې د ټول هېواد بدلېدل دي! یعنې ترانسپورټ، مواصلات، تجارت او نور د ملي اقتصاد ټول سکتورونه دومره وده او پرمختګ کوي چې اصلا د ښارونو او کلیو ترمنځ توپیر له منځه ځي. د نوموړي ډېره مشهور نظریه هماغه د پرمختیا یې د مراحلو په هکله چې پنځو پړاوونو کې تشریح کړې ده :
۱: عنعنوي ټولنه
۲: ضروري شرط
۳: د ټوب وهلو پړاو
٤ : د پوخوالي مرحله او
۵: د ګڼ کتلوي مصرف پړاو.
له کتابونو پرته یې یو شمېر نور اثار هم خپاره شوی چې هغه یاد رسالو په بڼه دي یا هم تحلیلي مقالې دي، نوموړي دا تشریح کړه چې یو هېواد چې صنعتي شوي هغه مهال د ټوپ وهلو پړاوونه رسېږي، چې د سپما ضریب یې لوړ شوی وي، مثلاً بریتانیا په ۱۷۸۰ ، امریکا په ۱۸۲۰ کې المان په ۱۸۵۰ کې دغه پړاو تېر کړی دی، خو ګڼ شمېر اسیایي او

افریقا یي هېوادونو کې لاس اوس هم د سپما نسبت او د تولیدي پانګې ضریب د ټوپ وهلو پړاو ته نه دي رسېدلي ، په دې توګه نوموړي د ټوب وهلو د پړاو لپاره سپما ( پس اندازه یا Saving) شرط باله او دایي ویل چې پانګه باید مولده پانګه وي، خو یو شمېر نور اقتصاد پوهان د ده له دې نظر سره موافق نه و ، دا ځکه دوی ویل چې انګېزه او تکنالوژئ هم هغه عوامل دي چې د پرمختیا او د دې په درجه تاثیر لري، نو ځکه یو شمېر اقتصاد پوهان د روستو نظریاتو او دپړاوونو نظر یې ته ډېر ارزښت نه ورکوي، روستو په ۲۰۰۳ م کې ومړ.

د روستو د پړاوونو ارزونه:

دغه تیوري د یو شمېر اقتصادپوهانو له انتقاد سره مخامخ شوې. ځیني وایي چې روستو یوازې د پرمختیا د پړاوونو علایم او ځانګړنې شرح کړي د هغو په هکله یې دا نه دي ویلي چې د یو پړاو د له منځه تللو علت څه دی او د بل پړاو د رامنځ ته کېدو لاملونه کوم دي؟ بل دا چې روستو خپل مراحل د یوې مستقیمې کرښې په بڼه ښودلي حال دا چې ځینې وخت د پړاوونو تکرار لېدل کېږي. مثلاً جاپان زیک زاګ شکل باندې او ځینو هېوادو دایروي فنر ډوله پرمختیا کړې. ده دا هم نه دي ویل شوي چې څه وخت یو پړاو پیل او بل پړاو پای ته رسېږي؟ ځیني اقتصادپوهان دا انتقاد هم کوي چې د بېلګې په توګه په انګلستان کې د نساجي صنعت یو مسلط او د ډېرې ګټې لرونکي سکتور و، حال دا چې دا دومره عمده سکتور نه شمېرل کېږي، بله دا چې اقتصادي پرمختیا پخپله یوه پرله پسې پروسه ده او دا پروسه په ځو ځو ټوټو او ځو ځو پړاوونو نشو ویشلای، بل دا چې پرمختیا یوازې کمي اړخ نه لري ځینې کیفي اړخونه هم لري. ځینو اقتصادپوهانو ویلی چې دده پنځه مرحلې د نامتوفیلسوف کارل مارکس سره توپیر لری، خو کارل مارکس هره مرحله دټولنیزو طبقاتو دبدلون او تکامل پراساس جلا کړی ده، یعنی دتولیدی ځواکونو تعامل یې مهم شمیرلی او په دې توګه لومړی کمون له مرئییتوب سره، مر ئییتوب له فیوډالی مرحلې سره او فیوډالی مرحله له بورژوازی یا سرمایدای سره جوت توپیرونه لری، خود روستو دمراحلو او توپیرونو دلایل ندی څرګند. په هرترتیب ، مهمه داده چې موږ پرمختیا او دهغی لپاره لومړیتوبونه وپیژنو او د پوهانو له ټولو نظریاتو استفاده وکړو. پرمختیا په ټولنیزو بدلونو، سپما، اختراعاتو او د علمي مرکزونو په پرمختیا هم غوره اغیزه کوي، خو روستو د پرمختیا کیفي اړخونه نه دي ذکر کړي. نور اقتصاد پوهان په اقتصاد کې د دولت مداخله ضروري بولي. د پانګې په هکله هم یو انتقاد شته هغه دا چې ځینو هېوادو کې بهرنۍ پانګه او په ځینو کې کورنۍ پانګه ډېر رول لري. د بېلګې په توګه انګلستان کې کورنۍ پانګې اما په متحده ایالاتو کې بهرنۍ پانګې ډېر رول درلود. له دې کبله چې هر هېواد ځانګړي شرایط لري او د هر هېواد اقتصادي ځانګړنې سره توپیر لري، نو تر یوه فرمول لاندې د هغو راوستل هم منطقي نه برېښي. د وسپنې د پټلیو، د ډبرو سکرو، ماشین الاتو او نورو په هکله چې روستو مثالونه راوړي دا هم هرو مرو په ټولو هېوادو کې صدق نه کوي.

د اقتصاد دپرمختیا په برخه کې کینز، فی راینز او ګڼ شمېر پوهانو تیوری وړاندې کړي. همدارنګه د پرمختیا یو شمېر موډلونه هم د ذکر وړ دي. د بېلګې په توګه د هارود دومار موډل، د پانګې د راټولېدو درابینستون موډل، د تکنالوژیکي بدلون موډل، د هندوستان د پلان جوړونې موډل، د اوږدې ځغستا د ودې موډل یا Long run growth model او داسې نور.
له دغو ټولو څخه منظور دا دی چې په ټولنه کې د اقتصادي پرمختیا علایم او معیارونه راښکاره شي. هغه معیارونه او علایم چې د پرمختیا په پایله کې راڅرګندېږي په لاندې توګه په لنډ ډول لست کېږي.

١ . د کرنې په سکتور کې د یو تن زراعتي کارګر د تولید د اندازې لوړوالی،
٢ . د سړي سر د بریښنا د لګښت لوړوالی،
٣ . د ډېرو سکرو یا کومې بلې انرژیکي منبع لګښت،
٤ . د وګړو د عمر اوږدوالی،
٥ . د سړي سر حیواني پروتین لګښت،
٦ . په ښوونځیو کې د ماشومانو د شمولیت سلنه،
٧ . د اوسېدو په یوه کوټه کې د وګړو وسطي شمېر،
٨ . د هرو زرو تنو لپاره د ورځپاڼو شمېر،
٩ . د دوکتورانو شمېر،
١٠ . د ښارونو پراختیا (یا د ښاري خدماتو وسعت)،
١١ . د اجتماعي تحرک درجه،
١٢ . د لیک لوست لوړ نسبت،
١٣ . د عصري ژوند د بېلګو سره اشنایي،
١٤ . د مطبوعاتو د ازادۍ درجه،
١٥ . د بهرنۍ سوداګرۍ د جوړښت ښه والی،
١٦ . د بشر کار ځواک ورځ په ورځ ښه والی،
١٧ . د مالي او پولي مؤسساتو اغیزمنتوب،
١٨ . په صنعت، کرنه، کانونو، ودانیزو او نورو بنسټیزو برخو کې د تکنالوژۍ عصري والی،
١٩ . د سړي سر ګټې وده،
٢٠ . سیاسي استقرار او د وضعې ثبات،
٢١ . د اداري کفایت درجه،
٢٢ . د ګوندونو ازادي،
٢٣ . د تفریحي، کلتوري او اموزشي مرکزونو شمېر او دې برخو کې اسانتیاوې او داسې نور.

دلته به د هغو یو څو نامتو اقتصادپوهانو نظریاتو سره ددوی ژوندلیک هم راواخلو چی د پرمختیایی اقتصاد او پرمختیایی تیوری په برخه کی نامتو دی:

آ.لویس



د هغو نامتو اقتصاد پوهانوپه لړ کې چې د پرمختیایي اقتصاد په هکله یې نظریات ورکړی یو هم آرتور لویس Arthur Lewis دی. لویس په ۱۹۱۵ م کال کې په سن لیوسیا (Saint lucia) کې زېږیدلی دی نوموړی یو تور پوستی او د نوبل د جایزې وړونکی دی، منځنی زده کړې یې په سن لوسیا کې بشپړې اوپه ۱۹۳٤ م .کې د لندن د اقتصاد پوهنځۍ کې شامل او په ۱۹۳۷ م کې ورڅخه بریالی راووت ، بشپړ نوم یې د (William Arthar) په بڼه لیکي .له ۱۹۳۸ م کال وروسته یې د لند اقتصاد په پوهنځي کې په تدریس پیل وکړ او تر ۱۹٤۸ م پورې یې دغې دندې ته دوام ورکړ، په همدې دوره کې یې په ۱۹٤۸ م کې خپله دوکتورا د مانچستر له پوهنتون څخه ترلاسه کړه او له ۱۹٤۸ م وروسته د مانچستر د اقتصاد په پوهنځي کې په تدریس بوخت شو. دغه کلونه یې د ژورو لیکنو او تحلیلونو دوره وه، له ۱۹۴۸ څخه تر ۱۹۴۹ م پورې یې د اقتصادي څېړنو کتاب ولیکه، ورپسې اقتصادي پلان جوړونې کتاب اوبیا یې ( داقتصادي وړدې نظریات ) کتاب خپور شو ، نوموړی یو څه موده ملګرو ملتونو د سازمان سره د پرمختیایي هېوادونو په چارو کې د مشاور په توګه کار وکړ، څه موده یې د نایجیریا او غنا په هېوادونو کې هم د اقتصادي مشاور په توګه پاتې شوی دی، په ۱۹۵۸ م کې یې د مانچستر په پوهنتون دنده پرېښوده او د لویدیز هند د ټاپو ګانو د ښوونې او روزنې د موسسې رئیس شو اوپه ۱۹٦۳ م کې چې کله دغه موسسه پوهنتون شو نو لویس ددغه پوهنتون مرستیال شو په همدې کال یې د بریتانیا د دربار له لوري یوه جایزه هم واخیسته او دا مهال امریکې ته ولاړ او د پرنستون په پوهنتون کې په تدریس بوخت شو ، په ۱۹۷۰ م کال کې د کارابین د ټاپوګانو د ابادۍ د بانک ریس شو اوپه ۱۹۷۳ م کې بېرته پرنستون ته ستون شو .

ور ورو یې د پلان جوړونې له موضوعاتو څخه مخ واړاو او د تطبیقي اقتصاد په ډګر کې یې څېړنې پیل کړې، د پرفیسر لویس نظریات د پرمختیا یي اقتصاد په برخه کې یې دستاینې وړ دی، ده عملاً پردمختیا پروسه د څار له اوعیني تجارب یې راټول کړل، ده له امریکې څخه تر اروپا ، هند او افریقې پورې عملي تجارب لرل او هغه یې په خپلونظریاتو کې څرګند کړل یو شمېر دغه ډول نظریات په لاندنیو اثارو کې شته .

- د اقتصادي برنامو د جوړولو اساسات ( ۱۹٦٦ م . )
- د ناجیریا اقصتادي وده ( نظریات ) ( ۱۹٦۷ م )
- داقتصادي پرمختیا یو شمېر اړخونه ( له ۱۸۸۰ څخه تر ۱۹۱۳ )
  پورې د استوایي سیمو پرمختیا ( ۱۹۷۱ م )
- د نړیوال اقتصادي نظام بشپړتیا ( ۱۹۷۷ م )
- ده اونوسانات ( ۱۹۷۸ م )

پوهاند لویس له ۱۹٦٦ - ۱۹۷۳ پورې د غنا د پوهنتون افتخاري ریس و ، په ۱۹۸۲ م کال کې د امریکا د اقتصاد پوهانو د ټولنې رئیس شو ، د ده یوه مهمه ځانګړتیا داوه چې خپله پوهه یې له عملي چارو سره وتړله، په ۱۹۷۹ م کې یې له تیودو شولتز ( theodore W. Schultz) سره یو ځای د پرمختیایي اقصتاد په برخه کې د بیسارو هلو ځلو له امله په اقتصاد کې د نوبل جایزه ترلاسه کړه، ددوه پردمختیایي ودې تیوري یو مشهور اثر دی، چې په حقیقت د اقتصادي پرمختیا نظریه ده ، او باید له ودې سره یې توپیر وشي، همدا اوس هم دغه نظریه پرمختیا یي هېوادو کې د اقتصاد درسي کتاب دی، ده د دوه ګونې اقتصاد (Dualistic Economy ) نظریه په ډېره روښانه توګه توضیح کړه چې یوې خواته یې د صنعتي اوښاري اقصتاد وضعیت او بل خواته یې د کلیوالي اقتصاد وضعیت یو بل سره پرتله کړي دي، سره له دې چې د ده د دوه ګونې اقتصاد پر موډل یو څه انتقادونه هم شوي دي، خو بیا هم ډېره برخه یې د یو شمېر مسایلو حل ت ه په کار تلاى شي، یعنې د ده د غې لیکنې ډېره برخه د حالاتو په بدلون سره هماغه عملي اعتبار لري، چې څو کاله مخکې یې درولد اما کمه برخه یې د نړیوال وضعیت او اقتصادي تحولاتو له کبله د اقتصاد پوهانو تر بیا کتنې لاندې راغلې ده ، دا دوى معنا نه لري چې وارد شوي انتقادونه د ده د علمي کار ارزښت کم کړى، بلکې د وضعیت بدلون ښکاره کوي.

## اساسي موډل:

د پرمختګ له لومړنیو او غوره موډلونو څخه چې د یوه هیواد د جوړښتي تغیراتو په مرحله باندې رڼا اچوي، د ارتهر لیوس د ۱۹۵۰مو کلونو تیوریکي موډل دې. د لیوس دوه سکتوره موډل د ۱۹۶۰ او ۱۹۷۰مو کلونو د زیاد مزدور لونکو شاته پاته هیوادونو د پرمختګ عمومي نظریه شوه. دا نظریه لا تر اوسه ډېر طرفداران لري په ځانګړې توګه د امریکا د پرمختګ اقتصاد پوهان چې له دې نظریې څخه متاثره شوي دي.
د لیوس په موډل کې یو شاته پاته اقتصاد دوه سکتورونه لري چې عبارت دي له:
۱.لرغونې، زیات نفوسه، اطرافي او پایښتي سکتور چې د مزدور حاصلخیزي او ګټه ونلري— دې حالت ته لیوس د اضافي مزدور حالت وایي، په دې مانا چې که له زراعت څخه مزودر راوباسل شي نوپه محصول کې کوم تاوان نه رامینځته کیږي ځکه چې دغه مزدور په صنعتي چارو کې بوختیږي.
۲.لوړ حاصله، عصري او صنعتي سکتور-- کوم ته چې مزدور له پایښتي سکتور څخه په تدریجي توګه انتقالیږي.
د موډل اساسي تمرکز د مزدور په انتقال او په لوړحاصله سکتور کې د محصول او کارګمارنې په زیاتوالي باندې دى. د مزدور انتقال او د عصري سکتور د کارګمارنې وده او زیاتوالې د عصري سکتور د محصول د زیاتوالي له کبله دي او دغه زیاتوالې د صنعتي پانګه اچونې او د پانګې د ډېرېدو له مخې معلومیږي. دغه ډول پانګه اچونې د عصري سکتور د ګټې د ډیرښت له پلوه رامینځته کیږي یعنې هر کله چې مزدوران په عصري سکتور

کې کار کوي نو هغوی دومره کار کوي چې د هغوی له مزدرۍ او تنخواګانو څخه ډیر څه مالکانو ته پاته کیږي او هرکله چې دوی ته ډیره ګټه پاته کیږي نو دوی خپله ګټه بیرته په کار اچوي او پانګه اچونه کوي نو له دې امله نوې او مختلفې پانګه اچونې رامینځته کیږي. په پای کې داسې فرض کیږي چې په ښهري صنعتي سکتور کې د مزدورۍ (تنخوا) اندازه ثابته پاته کیږي.(لیوس فرض کوي چې په عصري سکتور کې د مزدورانو تنخو باید د اطرافي پاینتي ګټې په پرتله ۳۰٪ لوړې وي تر څو مزدوران د صنعتي سکتور په لور وهڅیږي).په صنعتي سکتور کې د مزدرۍ (تنخوا) په ثابت نرخ سره ، عصري سکتور ته د مزدور د انتقال منحني خط په بشپړه توګه ارتجاعي دې.

کولای شو چې د لیوس د عصري سکتور د ودې موډل د دوه سکتور لرونکي اقتصاد په مرسته چې په ۳,۱ شکل کې ښودل شوې دی، تر څېړنې لاندې ونیسو. اول زراعتي سکتور چې د ۳،۱ بې شکل د ښي لوري په دوه ډیاګرامونو کې کښل شوې دې تر څېړنې لاندې نیسو.پورتنې ډیراګرام ښیي چې څنګه د مزدور په زیاتیدو سره د پاینتي غذا د تولید اندازه تغیر کوي. دا دتولید د هغې تابع څخه عبارت ده په کومه کې چې د غذا مجموعی اندازه د مزدور د تغیراتو له مخې ټاکل کیږي.دغه د تابع شکل دې $TP_A=f(L_A,K_A,t_A)$ چې $TP_A$د تولید له مجموعي، $L_A$ د مزدور له اندازې چې په دې تابع کې یواځینی تغیر کونکې دې، $K_A$ ثابتي سرمایې او $t_A$ د ثابتي تکنالوژۍ څخه عبارت دي. د ښي لوري په ښکتني ډیاګرام کې د مزدور د منحني میانه$AP_{LA}$ او حاشوي$MP_{LA}$ تولید لرو چې د پورتني ښي ډیاګرام د مجموعي تولید له منحني څخه مو راخیستي دي. د زراعتي مزدور مقدار چې په دواړو افقي محورونو باندې موجود دې سره مساوي دی او د شمېر یې د ملیو نونو په اندازه ښودل شوې دې ځکه چې لیوس هغه اقتصاد تر څېړنې لاندې نیسي چې ۸۰ یا ۹۰٪ نفوس یې په اطرافي ساحو کې ژوند او کار کوي.

لیوس د زراعتي سکتور په اړه دوه فرضیې وړاندې کړې دي. اول، مزدور اضافي دې په دې شرط سره چې $MP_{LA}$یې صفر ده. دوهم، ټول اطرافي کارکونکي په محصولاتو کې مساوي ونډه لري تر څو د اطرافي حقیقي مزدورۍ اندازه د مزدور د میانه تولید له مخې وټاکل شي. فرض کړۍ چې د $L_A$ په اندازه کارکونکي دي چې $TP_A$ په اندازه تولید کوي او ټول کارکونکي په دغه تولید کې د $W_A$ په اندازه ،چې د سړي سر غذا ده ، په مساوي ډول ونډه لري.($W_A$ میانه تولید دې کوم چې له $TP_A/L_A$ څخه په لاس راځي). د دغو مزدورانو حاشوي تولید صفر دې لکه څنګه چې د ۳،۱ ب شکل د ښکتني ډیاګرام پواسطه ښودل شوی دی؛ لدې امله د اضافي مزدور فرضیه په ټولو مزدورانو د عملي کېدو وړده.




د ۶ الف شکل پورتنی ډیاګرام د صنعتي سکتور د مجموعي تولید منحني خطونه راښيي. دلته یوځل بیا وایو چې د جوړو شویو اجناسو تولید $TP_M$ د تغیرکونکي مزدور $L_M$، ثابتي پانګې $K_M$ او ثابتي تکنالوژئ $t_M$ له تابع څخه عبارت دی.په افقي محوررونو باندې د مزدور هغه اندازه چې د TPM1 د تولید لپاره په کار اچول شوې ده، په زرګونه ښهري مزدورانو سره ښودل شوې ده. د لیوس په موډ ل کې د عصري-سکتور سرمایه له $K_{M1}$ څخه $K_{M2}$ او $K_{M3}$ ته لوړیږي دا ځکه چې سرمایه داران له خپلو ګټو او سرمایو څخه بیا پانګه اچونه کوې او له دې امله په عصري سکتور کې سرمایه زیاتیږي او د سرمایې دغه زیاتېدنه په ۳،۱ الف شکل کې د مجموعي تولید منحني پورته خواته له $TP_{M1}(K_{M1})$ څخه $TP_{M2}(K_{M2})$ او $TP_{M3}(K_{M3})$ ته بیایي. هغه مرحله چې دغه ګټې او ذخیرې د بیاپانګه اچولو او ودې لپاره راپورته کوي، د ۳،۱ الف شکل په ښکتني چپ ډیاګرام کې ښودل شویده.دلته مونږ د عصري-سکتور د حاشوي مزدور د تولید منحنی خطونه لرو چې د پورتني ډیاګرام له $TP_M$ منحني څخه مو راخیستي دي. د بشپړه سیاله مزدور-بازار د فرضیې له مخې د مزدور د منحني دغه حاشوي تولید د مزدورانو لپاره د حقیقي تقاضا منحني خطونه دي یانې راښیي چې د مزدور لپاره څومره ضرورت دې. لاندې بیانوو چې څنګه دغه سیستم کار کوي او څنګه پر مخ ځي.



۶ ب شکل: په کلیو کې مزدونه او په موډرن سکتور(ښارونو) کې مزدونه،چې د یوه په ښه کیدو سره بل متاثر کیږی، خو ورو ورو دواړه مخ په ترقی دي.
د ۶الف او ب شکلونو په ښکتنیو ډیاګرامونو کې $W_A$د زراعتي سکتور د حقیقي پایښتي عاید میانه (اوسط) اندازه راپه ګوته کوي. په ۳،۱ الف شکل کې $W_M$ د عصري-سکتور د Real wage اندازه ده. د wage په دې اندزاې سره د اطرافي مزدور عرضه زیاته او یا بشپړه ارتجاعي ده کومه چې د مزدور د عرضې د افقي منحني $W_MS_L$ پواسطه ښودل شوېده. لیوس فرض کوي چې په ښهري $wageW_M$سره کومه چې د میانه اطرافي عاید $W_A$ څخه لوړه ده، د عصري-سکتور کارګمارونکي کولای شي چې بغېر له دې وېرې چې wage به لوړه شي، اضافي اطرافي مزدوران ولري.( باید په یاد ولرئ چې د ۳،۱ ب شکل د زراعتي سکتور د مزدور اندازه په ملیون خو د ۳،۱ ب شکل د عصري سکتور د مزدور اندازه په زرګون سره ښودل شوېده.) د عصري سکتور د اساسي ودې په مرحله کې د $K_{M1}$ د پانګې د ثابتې عرضې په درلودلو سره د مزدود لپاره د تقاضا منحني د مزدور د کمېدونکي تولید لخوا اندازه کېږي چې د ښکتني ډیاګرام د منفي مېل لرونکي منحني $D_1(K_{M1})$ پواسطه ښودل شویدی. ځکه چې د عصري-سکتور کارګمارونکي تر هغې اندازې پورې(نقطې) پورې کارګر نیسي تر څو چې د هغوی حاشوي فریکي تولید د هغوی له حقیقي مزدورۍ سره مساوي شي ( دا نقطه د F نقطه ده چې د مزدور د تقاضا او عرضې د منحني د خطونو د تقاطع نقطه ده) ،او د عصري سکتور ګمارنه به له$L_1$ سره مساوي شي. د عصري سکتور محصول $TP_{M1}$ ته لوړېږي چې د $OD_1FL_1$ د ساحې پواسطه ښودل شوی دی او له دغه مجموعي محصول څخه مزدورانو ته په مساوي اندازه مزدوري ورکول کېږي چې د $OW_MFL_1$ پواسطه ښودل شویده.د محصول هغه اندازه چې د $W_MD_1F$ د ساحې پواسطه ښودل شویده د مجموعي ګټو هغه اندازه ده چې سرمایه داران یې تر لاسه کوي او لیوس داسې هم فرض کړېده چې سرمایه داران له دغو ګټو څخه بیرته پانګه اچوي نو لدې امله د

عصري سکتور پانګه له $K_{M1}$ څخه $K_{M2}$ ته لوړېږي. د پانګې دغه زياتوالې د عصري سکتور د مجموعي توليد منحني $TP_M(K_{M2})$ ته لوړوي کوم چې په خپل وار سره د مزدور لپاره د حاشوي توليد د تقاضا په منحني کې لوړوالې راولي.

د مزدور د منحني دغه پورته لوړېدنه د ۳،۱الف شکل په نيمه پای کې د $D_2(K_{M2})$ پواسطه ښودل شويده. د G په نقطه کې د L2 د نوي ګمارل شويو مزدورانو په شمول به د عصري سکتور يوه نوې تعادل لرونکي کارګمارنه رامينځته شي. مجموعي محصول $TP_{M2}$ يا $OD_2GL_2$ ته او مجموعي ګټې $W_MD_2G$ ته لوړېږي. له دغو مجموعي ګټو $W_MD_2G$ څخه بيا پانګې اچول کېږي چې په پای کې مجموعي پانګه $KM_3$ ته لوړېږي او د مجموعي توليد او د مزدور د تقاضا منحني خطونه په پرله پسې توګه $TP_M(K_{M3})$ او $D_3(K_{M3})$ ته پورته کېږي چې په پای کې د عصري سکتور د ګمارنې اندازه L3 ته لوړېږي.

د عصري سکتور دغه د ګمارنې او ځان-پايونکې ودې مرحله تر هغه وخته په مخ بيول کېږي تر څو چې ټول اضافي اطرافي مزدور په نوي صنعتي سکتور کې په کار وګمارل شي. له زراعتي سکتور څخه اضافي مزدوران د توليد په لوړ قيمت سره راويستلای شو ځکه چې د ځمکې په نسبت د مزدور کمېدل دا راپه ګوته کوي چې د اطرافي مزدور حاشوي توليد د مځکې په څېر صفر ندې. له دې امله د مزدور د عرضې منحني مثبت ميل پيداکوي ځکه چې د عصري سکتور مزدورۍ او ګمارنه مخ په لوړېدو دي. نو په پای کې ويلای شو چې اقتصاد له اطرافي زراعتي بنې څخه عصري صنعتي بنې ته اوړي.

د ليوس د موډل په اړه نيوکې:
اګر که د ليوس د پرمختګ دوه سکتور موډل ډېر ساده دې او تقريباُ د غربي نړۍ د اقتصادي ودې د تاريخ څرګندوی هم دې خو بيا هم ددې موډل درې فرضيې د ډېرو اوسنيو پرمختلونکو هيوادونو د اقتصادي ودې له حقيقتونو سره په ټکر کې دي.

اول: دغه موډل په غېره مستقيمه توګه وايي چې په عصري سکتور کې د مزودر د انتقال او کارګمارنې اندازه د عصري سکتور د پانګې د راټولېدو سره متناسبه ده. دا په دې مانا چې هرڅومره پانګه زياتېږي په همغه اندازه اقتصادي وده زياتېږي او ډېرې وظيفې مينځته راځي. مګر که چېرته سرمايه داران خپله سرمايه په مزدور ساتونکې توليدي وسايلو کې بنده کړي او د فرض کړې شوي پانګه اچونې په څېر په زيات مزدور غوښتونکي توليدي وسايلو کې پانګه اچونه ونکړي نو پورتنې فرضيه د عمل وړ نده.(دلته مونږ بې شکه دا فرض کوو چې له سرمايو څخه بيرته په محلي يا کورني اقتصاد کې پانګونې کېږي او د سرمايې-د پرواز په څېر بهر ته نه ليږدول کېږي چې د غربي بانکونو په امانتونو بدلې شي).
۳،۲ شکل د ۳،۱الف شکل لاندينی ډياګرام بيا راښيې او راپه ګوته کوي چې يواځې دا وار د مزدور د تقاضا منحني خطونه د مځکې په څېر په يو ډول پورته کېدونکي ندي بلکه له يو بل څخه تيرېدونکي (قاطع) دي. د تقاضا دوهم منحني $D_2(K_{M2})$ د $D_2(K_{M1})$ په نسبت ډېر

منفي مېل لري او دا حقيقت راپه ګوته کوي چې د پانګې زياتوالي د مزدور ساتونکې تخنيکي ودې رامينځته کونکې دې او وايو چې $KM_2$ تکنالوژي د $KM_1$ د تکنالوژي په نسبت د توليد د واحد لپاره کم مزدور ته ضرورت لري.
که څه هم دلته مونږ وينو چې مجموعي محصول په زياته اندازه (له $OD_1EL_1$ څخه $OD_2EL_2$ ته) لوړ شوی دی خو مجموعي مزدوري ($OW_MEL_1$) او ګمارنه L1 ثابت پاتې شوي او کوم تغير يې ندی کړی نو لدی امله ټول اضافي محصول د اضافي ګټو Excess Profits په بڼه سرمايه دارانو ته ځي. د ۳،۲ شکل يو مثال راپه ګوته کوي چې ځينې خلک يې د" پرمختګ ضد" هم بولي. دا مثال راښيي چې د عايد او محصول وده د څو سرمايه دارانو تر مينځ ويشل کيږي خو د مزدور لپاره د ګمارنې او عايد اندازه ثابته او نه لوړېدونکې پاتې کيږي. ناخالص محموعي توليد لوړيږي خو په ټوليزه ټولنيزه هوساينه کې کوم د پام وړ پرمختګ يا ښه والې نه رامينځته کيږي ځکه چې عايد د ټولنې تر ډېرو وګړو پورې ځان نه رسوي.

دوهم: د ليوس هغه فرضيه چې وايي " په اطرافي سيمو کې مزدور ډېر دې او په ښاري سيمو کې بشپړه ګمارنه ده" د سوال لاندې راځي، بلکه د ډېرو اوسنيو څېړنو له مخې ويلای شوچې په ډېرو پرمختلونکو هيوادونوکې نن سبا د پورتنۍ فرضيې برعکس خبره ده يانې په ښارونو کې د کارموندنې کمښت دی او په ډېرو اطرافي سيمو کې د مزدور عمومي ډيرښت کم دی. سمه ده چې دغه فرضيه جغرافياوي او موسمي استثناوې لري خو بيا هم د پرمختګ ډېر اقتصاديوهان په دې اند دي چې د ليوس د اطرافي مزدور د عمومي ډېرښت د فرضيې په پرتله د ښاري مزدور د عمومي ډېرښت فرضيه د منلو وړ ده.

دريم: د ليوس د عصري-سکتور د مزدور د بازار هغه غېر حقيقي فرضيه ده چې وايې ښهري حقيقي مزدوري تر هغه وخته پورې ثابته ده تر څو چې د اطرافي مزدور ډېرښت عرضه له مينځه ولاړه شي.

## هيګنس او نظريات يې

د پرمختيايي اقتصاد او پرمختيايي هيوادونو په برخه کې يو بل نامتو مولف او نظريه ورکوونکی هيګنس (Higgins ) دی. نوموړی د پرمختيايي هيوادو او پرمختيايی اقتصاد په هکله ژورې څېړنې کړی دی. بنيامين هېګنس نامتوه اقتصاد پوه او تيوريسن په ۱۹۱۲ م. کې نړۍ ته سترګې پرانېستې او په ۲۰۰۱ م. کې يې له نړۍ څخه سترګې پټې کړې. د اقتصاد او ټولنپوهنې په برخه کې يې منځنۍ زده کړې وکړې او بيا د لوړو زده کړو څخه وروسته د آستراليا د ملبورن پوهنتون کې د استاد په توګه په دنده بوخت شو. د خپلو څېړنو په ترڅ کې يې د لومړي ځل لپاره په وروسته پاتي هيوادو کې د بيکارۍ په هکله ليکنه وکړه. هغه وويل چې پرمختيايي هيوادونه او وروسته پاتي هيوادونه دوه ډوله اقتصاد لري: يو يې عصري او مدرن اقتصاد دی او بل يې عنعنوي. نوموړی د دې دواړو اړيکې يو بل سره تشريح کړې،

په تېره بیا نوموړي په عصري صنعت کې د تولید تابع د یوې شیما په بڼه وښوده او دغه تولید یې د کار د پانګې په اړه توضیح کړ. همدارنګه نوموړی د کرنې په عنعنوي سکتور کې د تولید تابع تشریح او بیا یې دواړه مقایسه کړل.
د هیګنس ډېر کره او نامتوه نظریات د اقتصادي پرمختیا، پرمختیایي پالیسي او پرمختیایي هیوادونو په هکله دی. هغه په ناسیده توګه په پرمختیایي هیوادونو باندې د ښکیلاک ناوړه اغېزې وشمېرلې. د ده نظریات د پرمختیایي هیوادونو لپاره ډېر ګټور دي او د دغو هیوادو شرایط او وضیعت یې ډېر ښه تحلیل کړی دی. هغه د خپل مهال او د پخوانیو یو شمیر پوهانو هغه نظریات چې د پرمختیا په هکله لیکل شوي وو، په ژوره توګه وڅېړل.هغه د ۱۹۴۰ م. کلونو په ترڅ کې د ملبورن د پوهنتون استاد وو چې د استرلیا اقتصاد پوهان او ګڼ شمیر ځوانان یې د خپلو نظریاتو او شخصیت تر اغېزې لاندې راوستل. وروسته تر ځلوېښتمې لسیزې یې بیلابیل نور آثار د ۱۹۸۹، ۱۹۹۰ او ۱۹۹۲ م. کلونو په ترڅ کې خپاره شول چې د متوازنې ودې، دوامداره او ثبات لرونکي ودې او نورو مهمو مسایلو په هکله یې لیکلي وو. هیګنس د امریکې متحده ایالاتو، کاناډا، یو شمیر اروپایي هیوادونو او انګلستان ته بیلابیل علمي سفرونه وکړل. هغه د وروسته پاتې هیوادونو(Under Developing Countries) په هکله ځانګړې څېړنې وکړې، همدارنګه د پرمختیایي تیوري او دوه ګونې اقتصاد (Dualistic Economics)په هکله یې څېړنې وکړې.
دوه ګونی اقتصاد هغه حالت او وضیعت دی چې ګڼ شمیر پرمختیایي هیوادونو کې لیدل کیږي، یعنې ښاري سکتور څه نا څه پرمخ تللي دی، خو کلي په بشپړ ډول وروسته پاتې حالت لري. د کلیو او ښارونو ترمنځ د ژوند د کچې ډېر توپیر دی. په ښارونو کې عامه خدمات لکه روغتیا، ښوونه او روزنه، مخابرات، ترانسپورت، او نور. تر یوې اندازې پورې شته، خو په کلیوالي سیمو کې دغه ډول عامه خدمات پرمخ نه دي تللي. په همدې ډول سره د کلتور په ډګر کې هم توپیرونه شته. کله چې په ۱۹۱۰م. کې Boeke د اندونیزیا او یو شمیر نورو هیوادو د دوه ګونې اقتصاد په هکله لیکنې کړې وې، دیرش کاله وروسته هیګنس هغه تر کره کتنې لاندې ونیوې او ویې ویل چې د Boeke په تیوري کې ځینې ټکي په تناقض کې دي. د بیلګې په توګه: یو ځای کې لیکي چې: په اندونیزیا کې په عنعنوي سکتور کې کار غیر متحرک دی او بل ځای بیا وایي چې کله چې یوه د اوبو لګولو پروژه، یوه ودانۍ یا فابریکه جوړیږي، نو کارګران ورته له لرې ځایونو څخه راټولیږي. E.J.Berg یو بل اقتصاد پوه و. هغه هم د هیګنس نظریه تأید کړه. په دې توګه د هیګنس او د نورو پوهانو د نظریاتو ترمنځ توپیر دا دی چې په تېره بیا هغه د پرمختیایي اقتصاد په هکله څېړنې وکړې، نو د هغه د کار ارزښت پرمختیایي هیوادو ته او د دغو هیوادونو خلکو ته ډېر اوچت دی. د ده دغه نظریات وروسته پاتې هیوادو ته که له زړه سوي ډک نه دی، علمي او لارښوونکي خو دی. په دې توګه د وروسته پاتې او پرمختیایي هیوادونو اقتصاد پوهان او پالیسي جوړونکي دغه نظریات خپلو پلانو او کړنلارو کې په کار اچوي.

## شومپټر، جوزوفSchumpeter, Jasepha



جوزف شومپټر په ۱۸۸۳ م کال کې د اتریش د امپراتورۍ د مجارستان د سیمې په ترین ښار کې د یو نظامي افسر په کور کې نړۍ ته سترګې پرانیستې ، په ۱۹۰٤ کال کې د ویانا د پوهنتون څخه فارغ شو، د چرنو ویتس په پوهنتون کې یې تدریس پیل کړ ( دغه پوهنتون یو مهال د پخواني شوروي یونامتو پوهنتون و) وروسته بیا اتریش ته ولاړ په ۱۹۱۹ م. کې د اتریش د مالیې وزیر وټاکل شو ، یو کال وروسته ( په ۱۹۲۰ م کې ) په المان کې د یوه کوچني بانک رئیس شو ، تر ۱۹۲۲ م .پورې په همدې نده کې پاتې و، خو په ۱۹۲٤ م .کې یې د امریکې متحده ایالتو ته مهاجرت وکړ، یو کال وروسته بېرته اروپا ته راستون شو ، او د بن په پوهنتون کې استاد شو او د عمومي مالیې د مضمون په تدریس بوخت شو. کله چې په ۱۹۳۲ م .کال کې په المان کې هټلر اود هغه فاشیستي ګوند راڅرګند شو ، شومپټر له اروپا څخه ووت اود امریکې د متحده ایالاتو د هارو ارډ پوهنتون کې په تدریس بوخت شو او تر ۱۹۵۰ م کلونو پورې همالته بوخت و. هغه په امریکا کې د امریکا د اقتصاد د سنجولو ټولنه جوړه کړه چې په ۱۹۳۸ م. کې د همدې ټولنې مشر شو . وروسته تر د وهمې نړیوالې جګړې څخه په ۱۹٤۸ م. کال کې د امریکې د اقتصاد پوهانو د ټولنې رئیس شو. د هغه لومړنۍ مقاله په ۱۹۱۸ م. کال کې ( په مالیاتو ولاړ دولت کې کړکیچ ) عنوان لاندې نشر شوه، په ۱۹۱۹ م کې یې د ( امپریالېزم او ټولنېزې طبقې ) کتاب خپور شو .د هغه مقالې په هغه کتاب کې هم راغلي دي چې نوم یې ( لس ستر اقتصاد پوهان )و. دغه کتاب په ۱۹۱۵ م . کال کې خپور شوی و .

په دې توګه شو مپټر د شلمې پېړۍ یو ستر اقتصاد پوه وپېژندل شو، چې له ادم سمېټ او کارل مارکس سره یې یادونه کېدای شي. هغه وکولای شول چې په ۲۸ کلنۍ کې په ۱۹۱۲ م. کې د اقتصادي پرمختیا (Economic Development) تر عنوان لاندې نامتو کتاب تالیف کړ. په دغه کتاب کې یې دمارکس (دپانګوالۍ د وینه څښونکي حرص) نظر یې څخه هم کار اخیستی و، خو ویې ویل چې پانګوالۍ د لویو پانګو د راټولولو تر څنګ فني او تکنالوژیکي پرمختګونه هم له ځانه سره لري. شومپټرپه اقتصاد کې د متشبث رول ډېر جوت کړ، هغه دا هم وښودله چې په څه ډول سره نوي اختراعات د خلکو په پام ځانته راواړوي اودغه اختراعات د نویو اجناسو په توګه نوی تولیدي لارې چارې او نوی صنعتي او مالي تشکیلات نور هم پراخوي او د نوي عرضي لامل ګرځي، هغه دا هم تشریح کړه چې دکار په وړاندې ورکړه مز دی، چې کارګر یې ترلاسه کوي، او پانګې ګټه ( ربح) ده چې د پانګوال جیب ته ځي ، د هغه د کار ډېره ښه دوره د هاروارد په پوهنتون کې وه او د دغه پوهنتون د یو تکړه استاد په توګه وپېژندل شو، ۱۹۳۰ م کال ک یې ( د سوداګرۍ دورې ) کتاب په دوو ټوکونو کې تالیف کړ، خو دغه کتاب ډېر بریالی نه و ، په ۱۹٤۲ م کې یې د ( پانګوالي ، سوسیالېزم او ولسواکۍ ) په نوم کتاب خپور شو، چې د ډېرو لوستونکو خوښ و ، په دغه کتاب کې شومپټر د پانګوالي نظام د بیخي ړنګېدو نظریه چې

مارکس ورکړې وه، رد کړه ، خو ویې ویل چې سوسیالېزم به د لویدیزې نړۍ د ظلم او خیانتونو له امله راڅرګند شي، په دغه کتاب کې یې وویل پانګوالي نظام به وار په وار خوار شي، خو نه د دغه نظام د دښمنانو له خوا بلکې ، په خپله د هغه د دوستانو له خوا تراوسه دده دغه اټکلونه دي رښتیا شوي، خو د ده د کتاب له خپرېدو څخه څلوېښت کاله وروسته د پانګوالۍ د ضعف یو شمېر ټکي وا ر په وار را څرګند شول، د ژوند په پای کې یې خپل وروستی کتاب ( د اقتصاد او تحلیل تاریخ ) تالیف کړ، خو دغه کتاپ څلور کاله وروسته د ده تر مړینې په ۱۹۵٤ م کې خپور او بازار ته راووت .



## تینبرګن ، جانTinbergen, Jan

په ۱۹۰۳ م کال کې یې نړۍ ته سترګې پرانیستې له دویمې نړیوالې جګړې څخه مخکې په ۱۹۳۱ م کې د امستردام په پوهنتون کې استاد و ، څو پرله پسې کلونه یې دهالېنډ په پوهنتونونو کې خدمت وکړ، ( ۱۹۳٦ - ۱۹۳۸ ) پورې یې د ملتونو په ټولنه کې کار وکړ، وروسته د دویمې نړیوالې جګړې له پای ته رسېدلو څخه د ملتونو ټولنه ړنګه او د ملګرو ملتونو سازمان یې پرځای جوړ شو ، د ا مهال تینبرګن ( په ۱۹٤٥ م کې ) د هالنډ د مرکزي پلان جوړونې په دفتر کې په کار بوخت شو او د پالیسۍ کې د تمرکز په چارو بوخت شو په ۱۹۵۲ کال کې یې د اقتصادي سیاست کتاب چاپ شو او په ۱۹۵٤ م کال کې یې په اقتصادي پالیسۍ کې د تمرکز او نه تمرکز په موضوع یو کتاب خپور شو ، په ۱۹۵٦ م کې یې د پلان جوړونې په هکله یو اثر وکېښ ، د ه وویل چې یو دولت تر هغه وخته پورې خپلو کمی اهدافو ته نشي رسېدلای ترڅو چې اقتصادي متحولین ( لکه بشپړ استخدام د بیو ثابت ساتل او د بهرنیو ورکړو بیلانس ) ترلاسه نه کړي د دې موخې لپاره باید دکمي پالیسي وسایل ( لکه د دولت لګښتونه ، د مالیاتو اندازه او د پیسو د عرضې زیاتول ) په کار واچوي، ده د هالېنډ په اقتصاد کې همدغه نظریه تجربه شوه، په دې توګه د تنبرګین د ( اقتصاد ي سیاست ) کتاب یو ډېر نامتو کتاب شو چې د قاصتادي پالیسي جوړولو په برخه کې یو غوره لاربښود و، په ۱۹۵۵ م کې تنبرګین د مرکزي پلان جوړونې دفتر پرېښود او د هالېنډ په پوهنتون کې د اقتصاد استاد په توګه په کار بوخت شو ، نوموړي د دریمې نړۍ ( پرمختیایي هېوادونه ) اقتصاد کې هم ډېرې څېړنې وکړې نوموړی د وروسته پاتې او پرمختیایي هېوادونو د یوه دوست په توګه پېژندل کېدای شي، نو ځکه یې د یو شمېر پرممختیایي هېوادونو د اقتصادي سلا کار په توګه کار کړی او د ملګرو ملتونو د سازمان په یو شمېر موسساتو کې یې هم د پرمختیایي هېوادونو په پروګرامونو کې برخه اخیستې ده ، له همدې املهد اقتصادي د پوهنځیو محصلین د ده له نوم سره اقتصادي پرمختیا د تیورۍ په مضمون کې ا شنا کېږي، او د پرمختیا نظریاتو په لړ کې یې څو څو ځله نوم راځي، نوموړی له ۱۹٦٦ م څخه تر ۱۹۷۵ م کال پورې د ملګرو ملتونو د سازمان د پرمختیا اوپلان جوړونې د کمېټې رئیس و چې په دغو کلونو کې یې بېلابېلو هېوادونو ته ډېر سفرونه ک وکړل او ډېرو ځایونو کې یې ویناوې وکړې او د نړیوالې

پرمختیا لپاره یې د ډېرو هېوادونو ته ډېر سفرونه وکړل او ډېرو ځایونو کې یې ویناوې وکړې اود نړیوالې پرمختیا لپاره یې د ډېرو اوریدونکو او څېړونکو پام راواړو، ده د پرمختللو یا بډایو او پرمختیایي یا بیوزلو هېوادونو ترمنځ د موجود واټن د له منځه وړلو لپاره د پاملرنې هیله کوله او دې برخه کې یې یو شمېر فعالیتونه وښودل، ده د همدې موخې لپاره په ۱۹۵۸ م کې ( دپرمختیا طراحي ) په کتاب کې په ۱۹۶۲ کې د اقتصادي ودې ریاضیکي موالونو کتاب کې په ۱۹۶۵ م کې د اموزشي یا روزنیز اقتصاد جوړونې ماډل کې او په ۱۹۶۷ کې یې د پرمختیا د پلان جوړونې او په ۱۹۷۶ م کې یې نړیوال نظام جوړونې په لیکنه کې دغه موخې وښودلې په ۱۹۷۳ م کال کې یې م ، م ، کې د نده پرېښودل او د لیدنې په پوهنتون کې استاد په توګه په کار بوخت شو . په ۱۹۷۵ م کې یې ( د عاید د وېش ارزونه او پالیسي ) کتاب خپور شو چې د عایداتو د عادلانه وېش او هم د اشخاصو د عوایدو د وېش په هکله یو غوره لارښود دی.

**له دوهمې نړیوالې جګړې څخه وروسته د اقتصادي پرمختیا څانګه کې څلور نورې لویې او مهمې نظریې یا فکري لړۍ رامنځته شوې چې هغه دا دي:**

1. د ودې د خطي مرحلو موډل،
2. د جوړښتي (ساختاری)تغییراتو نظریه ،
3. د نړیوالې اتکا (خارجی عواملو پورې تړلتیا یا د بهرنیو اغیزو څخه متاثر کیدل) او
4. نوې-کلاسیک نظریه، چې د ازاد بازار مخالفه او ددولت د مداخلې پلوۍ نظریه ده.

پر دې برسېره د تېرو څو کلونو په جریان کې یوه بله نظریه یانې پینځمه نظریه هم راپورته شوې ده، چې هغه د اقتصادي ودې د نوې نظریې په نوم سره یادېږي.
د ۱۹۵۰ او ۱۹۶۰مو میلادي کلونو لیکوالو دا ویلي چې اقتصادي پرمختګ د اقتصادي ودې څو پړله پسې ګامونو او مرحلې دي چې ټول هیوادونه یې باید تعقیب کړي. دا په اساسي ډول د اقتصادي پرمختګ هغه نظریه وه چې په هغه کې سپما کول، پانګه اچول او بهرنۍ مرستې موجودې وې چې دا ټول نظریات د پرمختیایی هیوادونو د اقتصادي ودې لپاره ډېر مهم دي، چې اوسنیو پرمختللیو هیوادونو پخوا تعقیب کړي وو. په دې اساس پرمختګ له اقتصادی او ټولنیزې ودې سره مترادف او هم معنې وبلل شو.
یوه بله نظریه د ودې خطی موډل دی. دغه د خطي-مرحلو موډل په ۱۹۷۰م. کلونو کې د دوو سیال اقتصادي فکري مکتبونو له خوا بشپړ شو او بدلون پکې راغی. هغه لومړنی فکري مکتب چې د جوړښتي یاساختاری تغییر په نمونو او نظریو یې فکر کاوه، د عصري اقتصادي نظریو او د احصایوي څېړنو څخه یې کار اخیستل غوره وګڼل او غوښتل یې چې د جوړښتي بدلون په اړه داسې څه لاسته راوړي چې د پرمختللو هیواد ونو د پرمختګ د پروسې په دوام او پایداره کولو کې مرسته وکړي چې دا نظریه(تیوری) د جوړښتي تغییر د موډل په نوم یاده او مشهوره شوه. په دې وروستیو کې بل درېیم فکري مکتب چې ډېر سیاسي او تغییربلونکې دی، د نړیوالې اتکا په نوم یادېږی. دغې تیوری د نړیوالی اتکا د تکامل په اړه یې فکر او خبرې کړې دي. دې فکري مکتب ، وروسته پاتیوالی د کورنیو او نړیوالو اړیکو، جوړښتي

او اداري اقتصادي فشارونو او د هيواد د ننه او بهر کې د دوه ګونی اقتصاد او ټولنو د شمېر د زياتوالي له خوا وبلله. د اتکا نظريو هڅه وکړه چې د اقتصادي پرمختګ په کورنيو او بهرنيو سياسي او اداري محدوديتونو او قيوداتوپورې تړلتيا باندې تاکيد وکړي. او همدارنګه يې د نويو تګلارو په غوره کولو باندې تاکيد زيات کړ تر څو بيوزلی(غريبي، فقر) له مينځه يوسي، خلکو ته د کارموندنې موقع پيدا کړي او د عايد نامساويانه ويش او په ټولنه کې نابرابری کمه کړي. د پرمختيايی اقتصاد لپاره يې دغه او د دې په څېر نور مساوات غوښتونکي هدفونه غوره کړل، خو پخپله اقتصادي پرمختګ ته دومره لوړ اهميت نه وه ورکړل شوې څومره چې د خطي-مرحلو او د جوړښتي تغيراتو د موډلونو لخوا ورکړل شوې و. د دوهم فکري مکتب دغه نظريه د اتکا د موډل په نوم يادېږي، چې لږ وروسته به رڼا ورباندې واچول شي.
په ۱۹۸۰مو کلونو کې يوه بله تيوری يا نظريه رامينځته شوه چې د نوې-کلاسيک د انقلاب ضد نظريې په نوم يادېږي. دوی په اقتصاد کې د دولت دمداخلې طرفداری کوی، يعنی که خصوصی سکتور سرغړونې پيل کوی اوپه اقتصاد کې ستونزی واقع شی، بايد دولت په خپل ارشادی رول سره مداخله وکړي او دسمون لاری – چارې دی وښيي. دغې نظريې د ازاد بازار، ازاد اقتصاد، او د پروژو د شخصي کولو د اهميت په اړه ډېر څه بيان کړل، خو هغه يې ددولت د رهنمايی محتاج وګڼل. ددې نظريې د نه بريالي کيدا علتونه د اتکا د نظريې په څېر د کورنيو او بهرنيو خلکو او نورڅه څخه ناوړه ګټه نه، بلکه د دولت لخوا د اقتصاد تنظيمول او په اقتصادي چارو کې ډېره مداخله وه.
په پای کې په ۱۹۸۰ او ۱۹۹۰مو ميلادي کلونو کې يو شمېر نوي-کلاسيک او اداري اقتصاد پوهانو هڅه وکړه چې د اقتصادي ودې نوې نظريه رامينځته کړي. دا نظريه هڅه کوي چې د ودې په لرغونو نظريو کې تغيير راوړي، تر څو له مونږ سره مرسته وکړي او پوه شو چې ولې ځينې اقتصادونه (هيوادونه) په چټکۍ سره پرمختګ کوي، خو ځينې نور يې په ډېرې سستۍ سره، او ولې په اوسني دور کې چې د شخصي (خصوصي) بازارونو دور دې ، د اقتصادي پرمختګ په رامينځته کولو کې د دولت ونډه مهمه ده.
اوس غواړو دغه نظريې په نفصيل سره وړاندې کړو.

## د خطي- مرحلو نظريه:

کله چې له دوهمې نړيوالې جګړې څخه وروسته اوسنيو پرمختيايی (غريبو) هيوادونو دپرمختيا مفکورې ته د عمل د جامو په اغوستلو پيل وکړ، نو د صنعتي هيوادونو اقتصاد پوهان غلي پاته شول. اګر که دغو هيوادونو د هغو سيمو د اقتصادي ودې د مرحلې د څېړنې لپاره کوم اسانه فکري جوړښت Conceptual Apparatus نه درلوده چې هغه پراخه کرهنيزې سيمې وې کومو چې ښه اقتصادي جوړښتونه هم نه درلودل، خو دوی د مارشال دپلان تجربه درلوده د کوم لاندې چې د امريکا په ډېرې مالي او تخنيکي مرستې سره د اروپا د جنګ ځپلو هيوادونو اقتصادي حالت په کمو کلونو کې د صعنت له لارې بيرته په پښو ودريد. د اروپا هيوادونو د اوسنيو پرمختيايی هيوادوسره فرق درلود، فرق يا توپير داو چې

هغوی صنعت ته ملا وتړله، خو اوسنی ګڼ شمیر پرمختیایی هیوادونه په کرنه متکی دی، یعنی د کرنی سکتوريې مسلط اقتصادی سکتور دی. بیا هم پوښتلای شو چې ایا اروپایی پرمختللي او صنعتي هیوادونه هم یو وخت وروسته پاته کرهنیزې ټولنې نه وې؟ په ښکاره ویلای شو چې د دوی پرمختګ له شاته پاته کرهنیزو ټولنو څخه د صنعتي ټولنو په لوري د اسیا، افریقا او شمالي امریکا د شاته پاته هیوادونو لپاره غوره او مهم درس دی.
یو بحث دا دی چې د متحده ایالاتو مرستو(دمارشال پلان) اروپایی هیوادو ته پانګه په واک کی ورکړه، نوځکه دپانګې ارزښت ته باید توجه وشی. هغه اقتصادي میکانیزم چې د هغه په واسطه زیاته پانګه اچونه د زیاتې ودې لامل ګرځي د هاروډ-ډومر د ودې په موډل کې تر څېړنې لاندې نیسو.

# د هاروډ-ډومر د ودې موډل

## The Harrod-Domar Growth model

ددې لپاره چې په خپلو زړو او معیوب شویو پانګه ییز اجناسو (جوړښتونه، دکار وسایلو اسبابونو او نورو موادو) کې تغییر او سمون راوړو، نو یوه اقتصاد (هیواد) ته ضرور ده چې د خپل ملي عاید یو څه اندازه ذخیره کړي خو که غواړي چې وده وکړي نو باید نوې پانګه اچونې وکړي تر څو د پانګې په ذخیره کې زیاتوالې رامینځته شي. یعنی دلته سپما او پانګونی ته اهمیت ورکول شوی دی.

که چیرته مونږ داسې فرض کړو چې د پانګې د ذخیرې K او د ناخالص ملي تولید Y تر مینځ کومه مستقیمه اقتصادي اړیکه وجود لري، د مثال په ډول وایو چې د یوه ډالر په اندازه د ملي تولید د زیاتوالي لپاره د درې ډالره په اندازه د پانګه ییزې ذخیرې زیاتوالې ضرور دې، نو ویلای شو چې هره نوې پانګه اچونه د ملي تولید یا ملي محصول د زیاتوالي سبب ګرځي.

فرض کوو چې دغه اړیکه چې په اقتصاد کې د پانګې-محصول د نسبت په نوم یادیږي، ۳ نسبت ۱ ته ده.که چیرته د پانګې-محصول نسبت په کوچنۍ کې k سره وښایو او فرض کړو چې د ملي ذخیرې نسبت چې په کوچني ایس( s ) ښودل کیږي د ملي محصول یو ثابت تناسب یا اندازه ده(د مثال په ډول ۶٪) او همدارنګه ووایو چې نوې پانګه اچونې د ذخیره کولو(سپما) له اندازې څخه معلومیږي، نو د اقتصادي ودې موډل په لاندې بڼه لیکلای شو:
۱.ذخیره کول S د ملي عایدY یو څه اندازه (s) ده.

$$S=sY \qquad (.1)$$

۲.پانګه اچول( I) د پانګې د ذخیرې د تغییر په څیر تعریف شوې دې چې په ΔK سره یې ښودلای شو.

$$I = \Delta K \qquad (2)$$

خو ځنګه چې د پانګې مجموعي دخيره K د مجموعي ملي عايد Y سره مستقيمه اړيکه لري کوم چې د پانګې-محصول د نسبت لخوا په کوچنی k سره ښودل شوې ده لرو چې:

$$\frac{K}{Y} = k$$

يا

$$\frac{\Delta K}{\Delta Y} = k$$

او يا هم په پای کې لرو چې:

$$\Delta K = k\Delta Y \qquad (.3)$$

په پای کې وايو چې له دې کبله چې بايد مجموعي ملي ذخيره کول total national savings له مجموعي پانګه اچونې I سره مساوي وي، ليکلای شو چې:

$$S = I$$

له ۱ معادلې څخه پوهيږو چې S=sY ده او له ۳،۲ او ۳،۳ معادلو څخه پوهيږو چې :

$$I = \Delta K = k\Delta Y$$

د ذخيره کولو او د پانګه اچولو د مساواتونو ورته والې په لاندې ډول ليکلای شو:

$$S = sY = k\Delta Y = \Delta K = I \qquad (.5)$$

او يا په ډېر ساده ډول سره ليکلای شو چې:

$$sY = k\Delta Y \qquad (.6)$$

د ۶ معادلې دواړه خواوې په Y او k باندې له تقسيمولو څخه په لاس راځي چې:

$$\frac{\Delta Y}{Y} = \frac{s}{k} \qquad (7)$$

باید په یاد ولرو چې د پورتنۍ معادلې چپ لورې چې $\frac{\Delta Y}{Y}$ ده د ناخالص ملي تولید GNP د تغیر یا ودې اندازه راښیي چې د ملي تولید د تغیراتو سلنه راپه ګوته کوي.

د ۷ معادله راښیي چې د ناخالص ملي تولید د ودې اندازه چې Δ Y/Y ده د ملي دخیرې د نسبت s او د پانګې-محصول د نسبتk له مخې په ګډه لاسته راځي. په ډیره ساده توګه ویلای شو چې د دولت د نه مداخلت په وخت کې د ملي تولید د ودې اندازه په مستقیمه یا مثبته توګه د ملي ذخیره کولو د نسبت سره تړاو لري (یعنې ویلای شو چې په څومره اندازه چې یو هیواد د یوه معین ملي عاید څخه ذخیره او بیا پانګونه وکړي نو په همغه اندازه به یې وده زیاته شي)، او په معکوسه توګه د هیواد د پانګې-محصول د نسبت سره تړاو لري( یعنې څومره چې د پانګې-محصول نسبت k لوړیږي په همغه اندازه به د هیواد وده کمیږي).

د ۷ معادلې اقتصادي منطق ډېر ساده دی. که چیرته یو هیواد غواړي چې وده وکړي نو ورته په کار ده چې د ملي عاید یو څه اندازه ذخیره کړي او له دغو ذخیرو څخه پانګه اچونه وکړي . هر څومره ډیره چې دغه هیواد پانګه اچونه کوي په همغه اندازه وده کوي. مګرد ودې هغه حقیقي اندازه چې د سپما کولو او پانګه اچولو په مختلفو وختونو کې یې یو هیواد لري (چې راښیي چې د اضافي پانګه اچونې څخه څومره اضافي محصول په لاس راځي) د پانګې-محصول د نسبت له معکوس 1/kڅخه په لاس راځي. له دې څخه دا معلومیږي چې د نوې پانګه اچونې s=I/Y د دې په ګټه یا حاصلخیزي 1/k کې له ضربولو څخه د ملي تولید د ودې اندازه په لاس راځي.

ځنډونه او خنډونه:

د مرحلو نظریې ته په بیرته راګرځېدو او د هارود ډومر موډل د ۷ معادلې په نظر کې نیولو سره ویلای شو چې د اقتصادي ودې د لوړاوي د تخنیکونو څخه یو یې د سپما شوي ملي عاید د اندازې لوړول دي. که چېرته مونږ په ۷، معادله کې s لوړ کړو نو ΔY/Y کوم چې د ملي تولید د ودې اندازه ده، لوړیږي. د بیلګې په توګه وایو چې په ځینې وروسته پاته هیوادونو کې د پانګې-محصول نسبت اندازه ۳٪ ده او د ټولیز ذخیره کولو اندازه یې د ملي تولید ۶٪ ده نو دغه هیوادونه په کال کې ۲٪ وده کوي چې له لاندیني فورمول څخه په لاس راځي چې:

$$\frac{\Delta Y}{Y} = \frac{s}{k} = \frac{6\%}{3} = 2\% \qquad (8)$$

اوس فرض کوو چې که چیرته د ملي ذخیره کولو اندازه له ۶٪ څخه ۱۵٪ ته د مالیاتو، بهرنۍ مرستې او یا نور څه له کبله لوړه شي نو د دغو هیوادونو وده به له ۲٪ څخه ۵٪ ته لوړه شي ځکه چې:

$$\frac{\Delta Y}{Y} = \frac{s}{k} = \frac{15\%}{3} = 5\% \quad (9)$$

روستو او نورو اقتصاد پوهانو د ټوپ وهلو مرحله په دې ډول مختصره بیان کړه چې: "هغه هیوادونه چې د ملي عاید له ۱۵ څخه تر ٪۲۰ پورې ذخیره کولای شي د هغو هیوادونو په پرتله چې له دې اندازې څخه کمه اندازه سپما(ذخیره) کوي، تیزه او ګړندۍ وده کوي. او ډیر ځله دغه وده ځان-پایونکې ده.نو له دې امله د ودې چلونه او مهارتونه یواځې د ذخیره کولو او پانګه اچولو اندازه لوړول دي" .
د دې نظریې له پلوه د پرمختګ اساسي خنډ په ډیرو غریبو هیوادونو کې د نوې پانګې اچونې نه جوړېدل او یا کم جوړېدل و. مګر که یوه هیواد غوښتي وای چې د مثال په ډول د ٪۷ په اندازه وده وکړی خو دې هیواد د ٪۲۱ په اندازه ذخیره کول او پانګه اچول نشو کولای خو یواځې ٪۱۵ ذخیره او پانګه اچول یې کولای شو، نو دې هیواد کولای شول چې د ذخیره کولو دخلا دغه ٪۶ د بهرنۍ مرستې او یا شخصي بهرنۍ پانګه اچونې له پلوه ډکه کړي.
له دې امله د پانګې د محدودیت دغه مرحله د نړۍ له پرمختللیو هیوادونو څخه د نړۍ شاته پاته هیوادونو ته د سرمایې او تخنیکي مرستې د لیږد او بربرۍ اساسي سبب شو. دا بیا د مارشال پلان په څېر وه خو داځل دا مارشال پلان د غریبو هیوادونو یا دریمې نړۍ د ګټې لپاره و.
مهم او بسیا شرطونه: د ودې د مرحلو د موډل په اړه نیوکې
د پرمختیا هغه لارې –چارې چې د ودې د خطي-مرحلو په نظریه کې نغښتي ، د تل لپاره ګټور ثابت نشول. ددې اساسي علت دا نه و چې د ګړندۍ ودې لپاره سپما کول او پانګه اچول مهم شرطونه نه و، بلکه اساسي علت دا و چې دغه لارې –چارې د ګړندۍ ودې لپاره کافي شرطونه نه و.
دلته یو ځل بیا د هغه څه په اړه چې په لومړي څپرکي کې مو وویل وضاحت ورکوو چې هغه د پرمختیایی هیوادونو د حقیقي شرطونو په اړه د غربي اقتصادي نظریې د ضمني فرضونو نابربرۍ دی.مارشال پلان د اروپایي نړۍ د هیوادونو لپاره کار وکړ ځکه چې اروپایي هیوادونو د نوې پانګې د په کار اچولو لپاره غوره تګلارې او غوره جوړښتي او اداري شرایط درلودل چې د اجناسو او پیسو ښه بازارونه، د تګ راتګ ښه او اسوده وسایل، روزل شوی کارګر او داسې نور دي. د روستو او هاروډ ډومر موډلونه هم دغه شرایط د پرمختیایی هیوادونو د پرمختګ لپاره لازم ګڼي، خو په پرمختیایی هیوادونو کې په موثره توګه سرته ندي رسیدلي.
له بلې خوا په ډیره اساسي توګه د مرحلو نظریې دا په بر کې ندي نیولي چې د اوسني دور پرمختیایی هیوادونه د هغه پیچیده او مغلق نړیوال سیسټم یوه برخه ده په کوم کې چې د بهرنیو ځواکونو(پانګه، کارګر...) لخوا د ودې د پرمختګ اساسي او غوره تګلارې فاسدیدای شي.

## د جوړښتي تغيراتو موډل:

د جوړښتي تغيراتو نظريه په هغه ميکانيزم باندې متمرکزه ده چې د هغه پواسطه يو وروسته پاتې هيواد خپل داخلي اقتصادي جوړښت له عنعنوي کرنې څخه عصري، ښاري، صنعتي، مختلف جوړونکي او خدماتي اقتصادي جوړښت ته بدل کړي.دا موډل د جوړښتي تغيراتو د مرحلې د تشريح کولو لپاره د بيو او سرچينو د اختصاص د نوې کلاسيک نظريې او د اقتصاد سنجونې له لوازمو څخه کار اخلي. د جوړښتي تغيراتو د لاسرسي دوه مهم مثالونه د ارتهر ليوس د " دوه سکتوره-اضافی مزدور" تيوريکي موډل او د هوليس چينري د " پرمختګ نمونې" عملي څېړنې دي.

## د ليوس د پرمختګ تيوري:

## نړيواله اتکا:

د نړيوالې اتکا موډلونو د ۱۹۷۰م کلونو په شاوخوا کې ډېر اهميت ترلاسه کړ په ځانګړې توګه د درېمې نړۍ د مفکرينو او عالمانو لخوا ځوک چې د مرحليز او جوړښتي تغيراتو له موډلونو څخه نه وه خوشاله. د نړيوالې اتکا موډل د دريمې نړۍ هيوادونه د کورنيو او بهرنيو سياسي، اداري او اقتصادي ستونزو ښکار او له مالداره هيوادونو سره د اتکا او اختيار په اړيکو ښکېل بولي. د نړيوالې اتکا په موډل کې درې فکري لړۍ وجود لري چې د نوي مستعمراتي اتکا موډل، false paradigm او د دوه اړخيزې ودې فرضيې له لړيو څخه عبارت دي.

## د اتکا نوی استعماري موډل:

هغه فکري لړۍ چې مونږ يې نوې مستعمراتي اتکا بولو د کارل مارکس د فکر يو غير مستقيم اظهار دی.دا لړۍ د شاته پاتې کېدلو سبب د مالداره-غريب هيواد د اړيکو نا مساوي نړيوال سرمايه داري سيستم بولي. که مالداره هيوادونه يا پرمختللي هيوادونه په خپلې خوښې سره له غريبو هيوادونو څخه ناوړه استفاده کونکي دي او يا که په خپلې خوښې سره ندي خو بيا هم په نړيوال سيستم کې د شاته پاته هيوادونو د هغو هڅو مانع ګرځي چې هغه يې د ځان د پاييښت لپاره او ياهم د ځان د اتکا لپاره کوي. په پرمختلونکو هيوادونو کې ځينې ډلې (لکه د ځمکو مالکان، نظاميان، لوړ معاش لرونکې، د تجارتي اتحاديو مشران او نور) په دې پرمختلونکو هيوادونو کې د ممتازه يا چارواکو خلکو د ډلې په نوم يوه ډله يا طبقه رامينځته کوي چې دغه ډله لوړې ګټې، ښه ټولينيز حالت او نظامي طاقت لري او او اساسي هدف يې د دغو ګټو د ساتلو لپاره د نړۍ د سرمايه دارۍ د نامساوي سيستم پايداره کول دي.دوی په مستقيمه يا غير مستقيمه توګه د نړيوالې خاصې طاقت لرونکې ډلې حمايت کونکي او همدارنګه په هغوی باندې متکي دي چې دغه ډلې له نړيوالو ادارو، د ملي دوه اړخيزه مرستې ادارې، او د څواړخيزه مرستو نړيوالې ادارې لکه نړيوال بانک او د پيسو له نړيوال صندوق څخه عبارت دي چې دوی په خپل وار د حمايت لپاره په مالداره سرمايه داره هيوادونو پورې تړلې دي. د چارواکو کارونه او د هغوی نظريې هيڅ کله داسې څه نه حمايت کوي چې هغه

دې د نفوس د ډېرې اندازې لپاره ګټور وي او ډېر وخت داسې کار کوي چې د هغه له کبله د خلکو د ژوند کچه ټيټه شي او غريبي او شاته پاته کېدنه نور هم ډېر شي. په لنډ ډول ويلای شو چې دغه نوې-مارکسي او يا نوې-مستعمراتي نظريه د درېمې نړۍ د ډېرو هيوادونو د غريبۍ موجوديت او شدت سبب د شمالي کرې د صنعتي هيوادونو موجوديت او په شاته پاته هيوادونو کې د دې هيوادونو لخوا د چپاوکو او نجيبانو خلکو ويشل بولي. نو له دې امله شاته پاته کېدنه يوه له بهر څخه وارد شوې پېښه ده. په پای کې وايو چې انقلابي هڅې او يا هم د نړۍ د سرمايه دارۍ سيستم ته په کار دي چې ډېر څه وکړی تر څو د درېمې نړۍ هيوادونه د لمړۍ نړۍ د هيوادونو له مستقيمې او غېر مستقيمې اقتصادي اتکا او داخلي ظالمانو څخه خلاص کړي.

## د انقلاب ضد نوي-کلاسيک عمليات

## ازاد بازار، عامه خوښه او بازار پلوه رسيدنې:

په امريکا، کاناډا، برتانيه او غربي جرمني کې د محافظه کارو د حکمراني تسلط په ۱۹۸۰م کلونو کې په اقتصادي نظريو او تګلارو کې نوې کلاسيک د انقلاب ضد عمليات رامينځته کړل. په پرمختلليو هيوادونو کې دغه د انقلاب ضد عملياتو د لوی اقتصاد د عرضې-پلوه تګلارو، د منطقي توقعاتو د نظريې او د عامه شرکتونو د شخصي کولو په پرمختګ او خوښۍ کې مرسته وکړه خو په پرمختلونکو هيوادونو کې د د ازاد بازار رامينځته کولو، د عامه مالکيت د کمولو، د ساکن پلان کولو او د دولت لخوا د اقتصادي فعاليتونو د برابرولو غوښتونکي شو.نوی کلاسيک پلوه خلکو د دوه مهمو نړيوالو مالي ادارو (نړيوال بانک او د پېسو نړيوال صندوق) د بورډ څخه مثبتې او کنټرول کونکې رايې تر لاسه کړې. د نړيوالو ادارو لکه د مزدور نړيواله اداره، د ملګرو ملتونو د پرمختګ د پروګرام او په سوداګرۍ او پرمختګ باندې د ملګرو ملتونو د کنفرانس او داسې نورو ادارو د نفوذ او اثر د تدريجې کمښت له کبله د اتکا د نظريې د پلويانو د مداخلې د دليل په ضد د نوې محافظه کاره ازاد بازار چلينج ډېر اهميت ترلاسه کړ او ورو په ورو يې وده کوله.

د نوي کلاسيک انقلاب ضد عملياتو د بحث اساسي نقطه داده چې وايي ''چې شاته پاتې کېدنه د بيو د ناوړه تګلارو له کبله د سرچينو د ناوړه اختصاص او د درېمې نړۍ د دولتونو لخوا د ډېرې مداخلې له کبله ده''. د انقلاب ضد عملياتو د مکتب ډېر بانفوذه ليکوالان لکه لورډ پيټر، ديپک لال، يان ليټل، هاري جونسن، جوليان سايمن، جګديش بګوتي او داسې نور وايې چې شاته پاتې کېدنه په اقتصادي چارو کې د دولت لخوا د ډېرې مداخلې له کبله ده. نوي ازادپاله خلک وايي چې د سيال ازاد بازار په وړاندې کولو سره به اقتصادي وده او اقتصادي اغېزمنتيا مخ په لوړېدو شي ځکه چې ازاد بازار د عامه مالکيت د کمېدو، د دولت لخوا د اقتصادي چارو د کنټرول د کمېدو، د سوداګرۍ او صادراتي توسعې سبب ګرځي. د اتکا د نظريې د پلويانو په برعکس د نوي کلاسيک انقلاب ضد عملياتو پلويان وايي چې د درېمې نړۍ شاته پاته کېدنه د لومړۍ نړۍ د هيوادونو د داړونکو او ځناورې فعاليتونو او د نړيوالو ادارو له کبله نده بلکه دا ټول د دريمې نړۍ د دولتونو د فساد او نااغېزمنتوب ډېرښت او د اقتصادي محرکينو(هغه څه چې د اقتصادي پرمختګ سبب ګرځي) د کمښت له کبله ده چې

دا ټول د يوه هيواد د اقتصادي شاته پاتې کېدنې لاملونه ګرځي. هغه څه چې د شاته پاتې کېدنې د مخنيوي لپاره ضرور دي، د نړيوال اقتصادي سيستم تعديل او سمون ، د شاته پاته هيوادونو د دوه اړخيزه اقتصادي سيستم بيا جوړونه، د بهرنۍ مرستې زياتوالي، د نفوس د ودې کنټرول او د مرکزي پلان کولو سيستم بدلون ندي بلکه د ازاد بازار او د -laissez faire اقتصاد رامينځته کول دي تر څو ازاد بازار او د ازاد بازار بيې د سرچينو په ښه اختصاص کې مهم رول ولوبوي او په اقتصادي پرمختګ او وده کې مرسته وکړي. دلته دوی مختلفو هيوادونو ته اشاره کړېده لکه څنګه چې سوېلي کوريا، تايوان او سينګاپور د نوي محافظه کار laissez-faire اقتصاد څخه لېرې دي نو دوی د دې هيوادونو پرمختګ په ازاد بازار پورې تړلي بولي او همدارنګه د افريقا او لاتين امريکا د عامه-مداخلت د اقتصادونو ناکامي ته يې هم اشاره کړېده. د پرمختګ په وړاندې دغه نوې کلاسيک چلينج درې مهمو ونډو ته ويشل کېږي چې له ازاد بازار، عامه خوښه(نوې سياسي اقتصاد) او له بازار پلوه Market Friendly ونډو څخه عبارت دي.
د ازاد بازار څېړنه وايي چې يواځې بازارونه اغيزناک دي- په دې مانا چې د توليد بازارونه په نوي فعاليتونو کې د پانګې اچونې سبب کېږي، د مزدور د بازار به برکته دغو نويو صنعتونو ته کافي اندازه مزدور پيدا کيږي، توليدونکي ښه پوهېږي چې څه او په څومره اندازه سره يې توليد کړي او د توليد او فکتورونو بازار د اجناسو او سرچينو نادرتوب (کمی) او د هغوی د بيو په غوره ټاکلو کې مرسته کوي. په دې حالت کې سيالي وجود لري او سيالي اغيزناکه ده اګر که هغه بشپړه سيالي هم نه وي او بازارونه او همدارنګه هيوادونه کولای شي چې ټکنالوژي په اسانۍ سره تر لاسه کړي او همدارنګه د بازارونو، توليد، بيو او نورو په اړه مالومات وجود لري او په اسانۍ سره يې ترلاسه کولای شي. په دغو حالاتو کې په اقتصاد ي فعاليتونو کې د دولت لخوا مداخله انحرافي او د توليد او په پای کې د ودې خلاف ده. د ازاد بازار پرمختګ پلوه اقتصاد پوهانو ويلي دي چې د درېمې نړۍ بازارونه سم او اغېزناک دي او هغه ناخوالې چې وجود لري او يا مينځته راځي، دومره د اندېښنې وړندي.
د عامه خوښې نظريه کومه چې د نوې سياسي اقتصاد د نظريې په نوم هم يادېږي، لادېره مخته ځي او وايي چې دولت هيڅ برابر او صحيح ګامونه نه پورته کوي او د پرمختګ لپاره کوم غوره کار نشي کوي. دا ځکه چې د عامه خوښې نظريه دا ګڼي او وايي چې سياستمداران، تابعين او اداري مامورين د خپلو ځاني ګټو لپاره کار کوي او دوی د خپلو ګټو د لاسته راوړلو او برقرار ساتلو لپاره خپل ځواک او قدرت استعمالوي. تابعين د خپل ساسي نفوذ په استعمالولو سره د دولت له تګلارو (لکه د صادراتو جوازنامه) څخه ځانګړې ګټې لاسته راوړي چې د "کرايې" په نوم يادېږي او د دې ګټو د لاسته راوړنې له کبله مونږ نشو کولای چې د نړۍ مهمو سرچينو او منابعو ته لاسرسی پيداکړو. ددې تر څنګه سياستمداران د خپل مقام او خپلو ګټو د ساتلو لپاره دولتي سرچينې استعمالوي. پر دې برسېره دولتي او ورته نور مامورين له خلکو څخه رشوت اخلي او په همدغه رشوت باندې ځانته پايداره کار يا تجارت روانوي. نو ويلای شو چې دولت د خپل قدرت په استعمال سره له خلکو څخه د هغوی شخصي سرمايه ضبطوي. ددې پايله يواځې د سرچينو ناوړه اختصاص نه بلکه همدارنګه د خلکو د ازادۍ له مينځه وړل هم دي. لدې امله دې نتيجه داده چې کم دولت ښه دولت دی.

بازار-پلوه رسېدنه یا نظریه په نوي کلاسیک انقلاب ضد عملیاتو باندې یو نوی تغیر دې او له پورته دوه نظریو سره مخالفت او توپیر لري. دا د نړیوال بانک له لیکنو او د هغه له اقتصاد پوهانو پورې (د کومو ډېری چې په ۱۹۸۰مو کې د ازاد بازار او د عامه خوښې د کمپونو غړي وه) تړلې ده. بازارپلوه نظریه وایي چې د شاته پاته هیوادونو د فکتور او تولید په بازارونو کې ډېرې ستونزې شته او د دې ستونزو د هوارې لپاره باید دولت غوره رول ولوبوي او په دې بازارونو کې مداخله وکړي خو دا مداخله باید د کومې ځانګړې ډلې او یا ځانګړي ځای په ګټه نه بلکه په عمومي ګټه وي. که دولت غواړي چې بازارونه دې ښه رول ولوبوي نو باید دولت د نامنتخبو مداخلو له پلوه په بازارونو کې مداخله وکړي او بازارونو ته د بریا ښه چاپېریال برابر کړي او باید په ټولنیزه جوړښتونو، روغتیایي مرکزونو او تعلیمي ادارو کې پانګه اچونه وکړي او له شخصي شرکتونو څخه ساتنه وکړي. بازار-پلوه نظریه د ازاد بازار او د عامه خوښې د فکري مکتبونو څخه هم توپیر کوي ځکه چې دا وایي چې په پرمختللونکو هیوادونو کې بازاري ناخوالې ډېرې دي چې په ځانګړې توګه د پانګې او چاپېریال له حالاتو څخه رامالومېږي. ډېرې ناخوالې او پېښې لکه د مالوماتو نابشپړتیا، د بهرنیو له خوا د مهارتونو او زده کړو لوړول او Economies of scale in production په شاته پاته هیوادونو پورې تړلې دي. د ودې نوې فکري مکتب د دې درې ناخوالو او پېښو له درک کولو څخه رامینځته شوې کوم چې به یو څه وروسته تر څېړنې لاندې اونیسو.

## د اقتصادي ودې زړه یا لرغونې نوې کلاسیکه نظریه:

د نوي کلاسیک ازاد بازار وړتیا له دې څخه هم مالومېده چې د ملي بازارونو ازادول د زیاتې کورنۍ او بهرنۍ پانګه اچونې د راتولولو سبب کېږي چې په پای کې د دغې پانګې اچونې د زیاتوالي له کبله د پانګې د راټولولو اندازه زیاتېږي. د ناخالص ملي تولید له مخې ویلای شو چې دغه د پانګې زیاتېدنه د کورنۍ ذخیرو د زیاتولو په څېر ده کوم چې په هغو هیوادونو کې چې کمه پانګه لري، د سرې سر عاید او د پانګې-مزدور نسبت لوړوي. د اقتصادي ودې لرغوني موډلونه په ساده ډول د هاروډ-ډومر او د سولو د موډلونو وده ده کوم چې ذخیره کولو ته ډېر اهمیت ورکوي.
د سولو د اقتصادي ودې نوی کلاسیک موډل د اقتصادي ودې د نوي کلاسیک نظریې د ملاتړ او وړتیا لپاره مهم رول ولوباوه او څه وروسته سولو په اقتصاد کې د نوبل جایزه تر لاسه کړه.دي موډل د هاروډ-ډومر موډل ته یو څه پراختیا او غزونه ورکړه چې د ودې معادلې ته یې دوهم فکتور'مزدور' او دریم خپلواکه متحول'ټکنالوژي' اضافه کړه. د سولو موډل د مزدور او پانګې کمېدونکې ګټه په جدا او د دې دواړو فکتورونو ثابتې ګټې په ګډه یا یوځای و ښودې.هاردوډ ډومر په خپل موډل کې ثابت ضریب او ثابتې ګټې فرض کړې دي. د ټکنالوژي وده یواځېنی فکتور پاتې شو چې د اوږد مهاله ودې نماینده ګي او ښودنه کوي او سولو او د ودې نورو اقتصادپوهانو او ویل چې د ټکنالوژي د ودې اندازه دې په مستقله توګه وټاکل شي یانې د ټکنالوژي د ودې اندازه دې د نورو فکتورونو له مخې ونه ټاکل شي.

که چېرته زیات دقیق شو نو سولو د تولیزې ودې معیاري تابع استعمال کړېده چې د لیوس د عصري سکتور د معادلې سره ورته ده په کوم کې چې ($Y = Ae^{\mu t}K^{\alpha}L^{1-\alpha}$)، $Y$ کورنی تولید دې، $K$ د بشري او فزیکي پانګې اندازه ده، $L$ د بې مهارته مزدور اندازه ده، $A$ ثابته ده کوم چې د ټکنالوژی اساسي اندازه راښیي، او $e^{\mu}$ د $t$ په وخت سره د تکنالوژیکې ودې ثابته خپلواکه اندازه راښیي او $\alpha$ د د پانګې په وړاندې د محصول ارتجاعیت دی(د بشري او فزیکې پانګې د ۱٪ زیاتوالي له امله په ناخالص ملي تولید کې کې زیاتوالي دی). څنګه چې $\alpha$ له یوه څخه کمه فرض کړې شوېده او دا هم فرض شوېده چې شخصي پانګو ته به د هغوی لمنوال تولید ورکول کېږي نو د اقتصادي ودې د نظریې دغه تدوین مزدور او پانګې ته کمېدونکې ګټې رامینځته کوي.
د اقتصادي ودې لرغونې نوې کلاسیکه نظریه وایې چې د محصول وده د لاندنیو درې فکتورونو څخه له یوه او یا هم زیاتو پورې اړونده ده.

۱.د مزدور د مقدار زیاتوالې او د کیفیت لوړوالې ( د نفوس د ودې او د زده کړې له مخې).
۲.د پانګې زیاتوالې ( د پانګې اچونې او ذخیره کولو له مخې)
۳.د تکنالوژي وده
د اقتصادي ودې لرغونې نظریه بند او ازاد اقتصادونه د بیلګې لپاره وړاندې کوي. هغه بند اقتصادونه (چې کومې بهرنۍ اقتصادي اړیکې نلري) چې نور یې هر څه سره یو شان وي خو یو یې د بل په نسبت د ذخیره کولو کمه اندازه او توان لري او بل یې زیاته توانایي او اندازه لري. نو هغه چې د ذخیره کولو کمه اندازه لري د بل په نسبت کمه وده کوي او په پای کې د کم سړي سر عاید په لور تقرب کوي. په بل عبارت  په ازاد اقتصاد کې (هغه چې له بهر سره اقتصادي اړیکې لکه سوداګري، بهرنۍ پانګې او نور لري) عاید لوړیږي ځکه چې له هغو هیوادونو څخه چې زیاته پانګه لري، پانګه نوموړي اقتصاد ته راماتیږي او د پانګې دغه راماتېدنه د ازاد اقتصاد د عاید د لوړېدو لامل کیږي. په پای کې ویلای شو چې که چېرته د شاته پاتې هیوادونو دولتونه په خپل هیوادو کې د بهرنۍ پانګې اچونې مخه ونیسي او ممانعت یې وکړي نو ښکاره ده چې دغه هیوادونه به د درېمې نړۍ د نورو هیوادونو په پرتله کمه وده وکړي.

پایلې :
د ۱۹۷۰مو کلونو د اتکا د انقلاب په څېر د ۱۹۸۰مو کلونو نوي-کلاسیک د انقلاب ضد عملیات هم د درېمې نړۍ له اقتصادي او آیډیالوژیکي نظر او د هغوی له ستونزو څخه خپله سرچینه اخیستې. د اتکا د نظریې پلویانو (زیاتره د چا چې د شاته پاتې هیوادونو اقتصادپوهان وه) ویل چې شاته پاته کېدنه یوه بهرنۍ پېښه ده او هیواد ته د بهرنیو هیوادونو له خوا راځي خو د نوي کلاسیک انقلاب ضد عملیاتو پلویان وایې چې شاته پاته کېدنه او غریبي هغه پېښه ده چې په یوه هیواد کې د ننه د هغه هیواد د دولت د زیاتې مداخلې او د ناوړه اقتصادي

تګلارو له کبله رامینځته کیږي. هر کله چې هغو موضوعګانې رامینځته شي چې د هغو پواسطه د مالدارو او غریبو هیوادونو تر مینځ توپیر کیږي نو دواړه ډلې یو بل ته ګوته نیسي. مګر د نوي کلاسیک انقلاب ضد عملیاتو په اړه څه وایئ چې وایي د درېمې نړۍ د ودې او پرمختګ لپاره د دولت کمه مداخله او ازاد بازارونه ډېر وړ دي؟ که چېرته د اغیزمنتوب په اړه جدي فکر وکړو نو ویلای شو چې د بازار د بیو اختصاص د دولتي مداخلې په پرتله په اقتصادي وده کې ښه رول لوبوي. ستونزه داده چې د ډېرو شاته پاتې هیوادونو اقتصادونه د خپلو غربي سیالانو په پرتله په جوړښت او تنظیم کې ډېر توپیر لري دا په دې مانا چې د ودې د نوې د نوي کلاسیک لرغوني نظریې فرضیې او تګلارې د پوښتنې وړ او ډېر ځله ناسمې دي. سیاله بازارونه وجود نلري او نه خو دغه هیوادونه د دوی د اداري، سیاسي او اقتصادي جوړښت له کبله له اوږد مهاله اقتصادي او ټولنیزو چارو څخه خوښ پاته کیږي. مصرف کونکي په زیاته اندازه سره ازادي او خپل خوښي نلري حتي دا خپلواکي نلري چې څه شی چاته په څه اندازه تولید کړي. مالومات ډېر محدود او کم دی، بازارونه ټوټې ټوټې دي او د اقتصاد ډېره برخه لا تراوسه بې پیسو ده. تولیدونکي که شخصی دي او که عامه خو د بازار د بیو او د خرڅ شویو اجناسو د مقدار په ټاکلو او مالوملو کې لاس لري.د سیالي خیال پواځې هغه خیال پاتې کیږي چې له حقیقت سره کوم ډېر تړاو نلري. د شاته پاتې هیوادونو ډېری بازارونه د نوې کلاسیک نظریې د خپل سري برابري او تعادل په نسبت د جوړښتي تغیراتو د موډل له خوا لا ښه تشریح کیدای شي. د سرچینو د اخیستلو او د تولید د خرڅلاو انحصار د دریمې نړۍ یوه نافذه او خپره پېښه ده او همدارنګه د انحصار نوې کلاسیکه لرغوني نظریه د شخصي او عامه شرکتونو د روزمره فعالیتونو په اړه لږ مالومات وړاندې کوي. د پرېکړې اصول د ټولنیز جوړښت سره تغیر کوي یانې وروسته وروسته به د ګټې لوړونه په ټولنه کې د نورو ډېرو موخو په پرتله (لکه د خلکو لپاره د وظیفو برابرول او د بهرنیو خلکو په ځای د ځایي خلکو ټاکل) دومره د اهمیت وړ نه وي یانې نورو ستونزو ته به ډېره توجه کیږي. نو په پای کې ویلای شو چې نه ښکارېدونکې لاس د هغو خلکو لپاره کار کوي چې د هغوی اقتصادي حالت لا د مخه ښه وه او د نفوس اکثریت یانې غریبان لا نور هم د غریبۍ کندې ته غورځوي. له نوې کلاسیکه نظریې څخه د ابتدائي عرضې او تقاضا په اړه (چې دغه ابتدائي عرضه او تقاضا د اغېزناکه تولید او د سرچینو د اختصاص لپاره مهمه ده) ډېر څه زده کولای شو. مګر هڅه کوئ چې ازاد بازار د سرچینو له اختصاص کولو سره مغشوش نکړئ. روښانه او ښه تدوین شوي دولتونه د بیو څخه مختلفې ګټې پورته کوي او بیې د سرچینو د ټولنیز غوره اختصاص لپاره د محرک په توګه استعمالوي. د نوي کلاسیک نظریې د مختلفو اړخونو او لوازمو اهمیت به د ډول ډول ستونزو په څېړلو سره تر نظر لاندې ونیسو چې دغه ډول ډول ستونزې د نفوس له ودې، کرهنیز رکود، بې کاري او کم کاري، چاپېریال، زده کړیزې تقاضاوې، د صادراتو وده او د وارداتو تعویض، ارزښت کمونه، پلان کول، پولیزې تګلارې او له اقتصادي ځانګړي کولو څخه عبارت دي. د درېمې نړۍ ډېر شمېر هیوادونه د دوی د اداری او سیاسي جوړښت له کبله غوره اقتصادي تګلارې که هغه په بازارونو او یا هم په دولتي مداخلې پورې اړوند وي، لاسته نشي راوړی. په هغه چاپېریال کې چې زیاته اداري سختي او شدید ټولنیز اقتصادي نامساوات وجود لري، بازار او دولت دواړه ناکامیږي

او د ودې او پرمختګ لپاره کوم خاص رول نشي لوبولای. دا یواځې او یواځې یوه پوښتنه نده چې په آیډیالوژیکی میل پورې مربوطه وي بلکه دلته د هر یوه هیواد حالات په جلا جلا توګه لاسته راوړل دي. د پرمختګ اقتصادپوهان باید په دې وتوانیږي چې د کتابونو د نوې کلاسیکي نظریې او د معاصرو شاته پاتې هیوادونو د اداري او سیاسي حقیقت تر منځ توپیر وکړای شي. نو بیا دوی کولای شي چې هغه نوي کلاسیکي فکرونه او موډلونه غوره کړي چې د ستونزو او غریبۍ په له منځه وړلو کې مرسته وکړي او هغه موډلونه له منځه یوسی چې د پرمختګ په پروسه کې کومه خاصه ونډه نشي اخیستلای.

## د نوې ودې نظریه:

## د ودې د نوې نظریې راپورته کېدنه:

د اوږد مهاله اقتصادي ودې د سرچینو په روښانه کولو کې نوې کلاسیکو نظریو کومه خاصه ونډه او رول ونه لوباوه او نه دومره کامیابې شوې نو له دې امله د ودې د لرغونې نظریې او د نوې کلاسیکو نظریو تر منځ عمومي اختلاف او نارضایت رامینځته شو. د ودې لرغونې نظریه وایې چې د یوه هیواد اقتصاد کوم ذاتي یا طبیعي خواص نلري چې د هغو پواسطه د اوږدو مودو لپاره وده او پرمختګ وکړي. اقتصادي ادبیات له بله پلوه په هغه ډاینامیک مرحلې پورې اړوند دي د کومې پواسطه چې د پانګې-مزدور نسبت د اوږد مهاله تعادل مرحلو ته رسیږي. د بهرنیو لږزو او د تکنالوژي د تغیراتو په نشتوالي سره د هیواد وده کمیږي او د صفر ودې په لور تقرب کوي. لدې امله د سړي سر ناخالص ملي تولید وده یوه موقتي پدیده ده چې د تکنالوژیکي تغیراتو او یا د هغې لنډ مهالې تعادل کونکې مرحلې څخه لاسته راځي چې د هغې پواسطه یو اقتصاد د هغه د اوږد مهالې مرحلې تعادل ته رسیږي. مګر که چېرته د نړۍ د ځینې اقتصادونو تاریخې ودې ته نظر وکړو نو د نظریې دا برخه د هغوې د ودې په اړه کوم د قناعت وړ مالومات نه وړاندې کوي.
کوم زیاتوالې چې په ناخالص ملي تولید کې رامینځته کیږي او دغه زیاتوالې د پانګې او مزدور د ذخیرو د بربروالي له پلوه نه وي، له یوې دریمې ډلې یا طبقې پورې اړوند بلل کیږي چې دغه دریمه طبقه د سولو د رسوب په نامه یادیږي. دغه رسوب د صنعتي هیوادونو ۵۰٪ وده د خپل برکت له مخې بولي. خو له بلې خوا د ودې نوې کلاسیکه نظریه د اقتصادي ودې زیاتوالې د تکنالوژي د مستقلې ودې له مخې بولي. دغه نوې کلاسیکه نظریه یا لاسرسی دوه نه حل کېدونکې ستونزې لري. اول، د نوي کلاسیک د تدوین په استعمالولو سره دا مشکله او ناممکنه ده چې د تکنالوژیکی پرمختګ فکتورونه تجزیه کړو او وڅیړو ځکه چې ټکنالوژي د اقتصادي نماینده ګانو له پریکړو پورې اړونده نه ده. دوهم، دا نظریه د هغو هیوادونو د رسوبونو د توپیرونو په اړه ،چې یوشان ټکنالوژي لري، کومه خاصه تشریح او څېړنه نشي ورکولای. له بلې خوا ویلای شو چې یواځې او یواځې باور بهرنۍ مرحلې ته پاته کیږي کومه چې د لږ عملي او نظري حمایت لري.

په ۱۹۸۰ او ۱۹۹۰مو میلادي کلونو کې د اقتصادي ودې نوې کلاسیک او لرغوني موډلونه د خلکو له پامه نور هم وغورځېدل ځکه چې د درېمې نړۍ د پورونو کړکېچ نور پورته ولاړ او د مخکې په نسبت شدید شو او دا واضح شوه چې د هیوادونو د اقتصادي توپیرونو د تشریح کولو او څرګندولو لپاره د لرغوني نظریې استعمالول وړاو مناسب نه بلکه تاوانی وه. نوې کلاسیکه نظریه وایي چې د پرمختلونکو هیوادونو د پانګې-مزدور د نسبتونه د پانګې اچونې څخه د زیات عاید لاسته راوړونکي دي یانې څومره چې د پانګې-مزدور نسبت کم وی په همغه اندازه به له پانګې اچونې څخه زیاته ګټه لاسته راځي. که چېرته داسې وای نو اوس به هغه د ازاد بازار اصلاحات چې د نړیوال بانک او د پېسو د نړیوال صندوق لخوا د قرضدارو هیوادونو په بازارونو لګېدلي وه، د زیاتې پانګې اچونې، د حاصلخېزي د لوړوالي او د ژوندکولو د کچې د لوړوالي سبب شوي وه. تر اوسه که څه هم کورني بازارونه او سوداګرۍ ازاده شوه خو بیا هم زیاتو شاته پاتې هیوادونو کمه او یا هیڅ وده هم نده کړې او همدارنګه دې شاته پاتې هیوادونو ونکړای شول چې بهرنۍ پانګې لاسته راوړي او یا هم خپلې پانګې له بهر ته ماتېدو څخه وژغوري. د شاته پاتې هیوادونو د پانګې دغې نه تشبیه کېدونکې بهر ته ماتېدنې(له غریبو هیوادونو څخه مالداره هیوادونو ته پانګه ورماته شوه) دې ته لاره هواره کړه چې د ودې او پرمختګ د اقتصاد په علم کې یوه نوې نظریه رامینځته کړي چې دغه نظریه د داخلي ودې او یا هم په ډېره ساده توګه د نوې ودې د نظریې په نوم یادېږي. که څه هم چې دې نظریې له نورو نظریو څخه غوره فکتورونه یا موډلونه راټول کړي (یانې دا نظریه غورچانه نظریه ده) او هم د تېرو څلورو نظریو په څېر په مستقله توګه رامینځته نشوه خو بیا هم دا نظریه د راپورته کېدونکي پرمختګ د نظریې لپاره ښه او برابره لاره هواروي.

## داخلي وده:

د نوې ودې نظریه د داخلي ودې او د ناخالص ملي تولید د پایدارې ودې د څېړلو لپاره تیوریکي اډانه وړاندې کوي چې هغه د یوه داسې سیستم پواسطه تعین شوې چې د تولید مرحله څاري. له لرغوني نوې کلاسیکه نظریې څخه په توپیر سره دا نظریه د ناخالص ملي تولید وده د اوږدمهاله تعادل یوه طبیعي پایله بولي. د نوې ودې د نظریې د راپورته کیدا لاملونه دا وه چې د مختلفو هیوادونو د ودې د اندازې توپیرونه او لاسته راوړل شوې ودې تر څېړنې لاندې ونیسي. که چېرته نقطې ته نور هم نژدې ونښلو او په لنډه توګه یې څرګند کړو نو وایو چې د داخلي ودې یا نوې ودې د نظریې پلویان هڅه کوي چې هغه فکتورونه مالوم کړي چې هغه د $\mu$ اندازه معلوموي او همدارنګه د ناخالص کورني تولید د ودې اندازه تعین کړي کومه چې په پورتنیو څلورو نظریو کې نده څېړل شوې او د سولو د ودې په نوې کلاسیکي معادلې کې په مستقله توګه ټاکل شوېده.
د داخلي ودې یا نوې ودې موډلونه د نوې کلاسیکه موډلونو سره یو څه جوړښتي ورته والی لري خو له دغو نوي کلاسیکه موډلونو سره په فرضیو او پایلو کې ډېر توپیر لري. د دوی تر مینځ ډېر مهم تیوریکي توپیر له دریو فکتورونو څخه راپورته کېږي : د داخلي ودې موډلونه د نوې کلاسیکې ودې د نظریې د په پانګونې باندې د لمنوال عاید د کمېدلو فرضیه

ردکوي؛ وايي چې په تولیز تولید کې عاید زیاتېږي او همدارنګه د پانګونې څخه د لاسته راتلونکې عاید د اندازې د مالومولو لپاره په externality باندې تمرکز کوي. که چېرته فرض کړو چې د کارګرو په پانګه کې شخصي او عامه پانګونې د external economies د رامینځته کېدو او د حاصلخېزي د زیاتوالي سبب ګرځی کوم چې په خپل وار سره دکمېدونکو ګټو اثر کموي نو د داخلي ودې نظريه هڅه کوي چې د هیوادونو زیاتېدونکې ګټې او د اوږدمهاله ودو نمونې ترڅېړنې لاندې ونیسي. او لکه څنګه چې په دغو موډلونو کې ټکنالوژي لوی لاس او مهمه ونډه لري نو ضرور نده چې دلته دې اوږد مهاله وده وڅېړل شي.

## پرمختیايي هیوادونه د پرمختیايي تیوری په رڼا کې

له۱۹۵۰م. لسيزی وروسته پرمختايی هيوادونو خپل اقتصادته پاملرنه وکړه، دا هغه مهال و چی دامريکی متحده ايالاتو دمارشال د پلان ترچتر لاندی جنګ ځپلی اروپاسره مرستې پيل کړی، پخوانی شوروی اتحاد ګڼ شمير نويو آزادو شويو او ښکيلاک ځپلو هيواو سره اقتصادی مرستی پيل کړی. دا وخت دغه هيوادونه د لږپرمختيايی هيوادو( LDCs) په نوم وپيژندل شول. ګڼ شمير دغو هيوادو د شوروی اتحاد په شان پمځه کلن پلانونه رواج کړل او دهغوپه طرح،تطبيق او ارزيابی يی خپل اقتصاد ته لوری- لودن ورکړ. د دغوهيوادو اجتماعی او اقتصادی وضعيت وښوده چې ستونزی يې تر هغو اټکلونو ډيرې دی ، چې دوی يې فکر کاو، دا ځکه يو خو دوی ګڼ شمير اجتماعی ستونزی لکه بيسوادی، ټولنيزاختلافات اوتعصبات لرل، له بلې خوا يی د استعمار درنه ځپيړه خوړلی وه او د ښکيلاک اثار او آن دپخوانيو استعماری قوتونو لاسوهنو لا هم دوام درلود. د دغو ترخو حقايقو په درک او پوهيدو سره دوی په سياسی جبهه او دوه قطبه شوی نړۍ کې ځانته د ناپیيلو يا غيرمنسلک هيوادو ګروپ جوړ کړ.

د پرمختيايي اقتصاد عمومي څېره دا راښيي چې سره له دې چې دغو هيوادونو د ۱۹۵۰ کال څخه راپه دې خوا ځينې اقتصادي (يو کلن، پنځه کلن، اوه کلن او د اوږدې مودې) پلانونه کار لاندې نيولي، خو د فني کدر، د موثقو احصايو نشتوالي او دمالي ناتوانی له امله دغو پلانونو د دوی ستونزې حل نشوې کړای. په دغو هېوادو کې د عربو متحده جمهوريت کې دغو پلانونو غوره نتايج ورکړل. ان دا چې ځينو هېوادو کې د سړي سر ملي عايد يوازې د ۱۰۰ ډالرو شاوخوا و. له همدغه کلونو وروسته ډېر پرمختيايي او پرمختللو هېوادو ترمنځ سوداګري په تېره بيا کرنيزو محصولاتو سوداګري په سلو کې پنځوس لوړه شوه او پرمختللو پرمختيايي هېوادو ته بالمقابل د استهلاکي اجناسو لېږل زيات کړل په دې ډول د دوی اسعار په استهلاکي اجناسو لګېدل. لکه چې ارقام ښکاره کوي د پرمختيايي هېوادو د وارداتي نوږيو نرخ ورځ په ورځ لوړوالی وموند او دوی يې د نورو ستونزو سربېره چې پخوا مو ذکر کړې، د اسعاري ستونزو سره هم مخامخ کړل. خو په دې برخه کې ځينو ډېر سنجيده او مناسب اقدامات وکړل د بېلګې په ډول دوی يو شمېر د خپلو اقتصادي حالاتو د ښه کېدو لپاره د لوکسو اجناسو، غير ضروري اجناسو تورید کم کړ. بالمقابل يې خپلو ملي صنايعو ته پاملرنه وکړه او ګمرکي حمايوي محصولات يې ټيټ کړل. د حمايوي قوانينو وضع کولو ته

یې پام وکړ. یو شمېر دغه هېوادو د پانګې اچونې د هڅونې لپاره مالیات او محصولات ټیټ کړل. د دې بنه بېلګه د اسیا د جنوب ختیځ هېوادو د صنعت پرمختګ بلل کېدای شي. متحده عربو او لاتیني امریکې کې هم د صنعت وده بده نه وه خو نور ګڼ شمېر هېوادونه یوازې د خامو موادو صادروونکي او سړي سر ۱۰۰ ډالرو شاوخوا د ملي عاید لرونکو پاتې شول. پانګوالي پرمختللو صنعتي هېوادو کې د ځو بحرانونو پېښېدو د هغوی اقتصاد دومره ټکنی نه کړ لکه چې انفلاسیون د پرمختیایي هېوادو لپاره خنډ او ډب پېښ کړ.
اوس هم لا د اقتصاد د علم په ډګر کې ځینې پوښتنې شته چې باید غور او څېړنې لاندې ونیول شي او ترممکنه حده د هغو لپاره ځواب وموندل شي. دغه دنده داقتصادي پرمختیا څانګې پورې اړه لري. دا څانګه په سکتورونو کې هم خپله ځانګړې دنده لري، د بېلګې په توګه همدا اوس د کرنې اقتصادي پرمختیا د صنعت اقتصادي پرمختیا او د سوداګري اقتصادي پرمختیا ډسپلینونه اکاډمیکو مرکزونو کې شته. همدا اوس د المان د بوخم پوهنتون د اقتصادي پرمختیا او اقتصادي سیاست د پرمختیا انستیوت اودپرمختیا دمدیریت څانګه لري. د اقتصادي پرمختیا څانګه تر ډېره حده د اقتصاد د علم د تیوریکي او متیودیکي وسایلو څخه ګټه اخلي، خو داړتیا په وخت کې له نورو علومو لکه اروپوهنې، سوسیولوژي، تاریخ، د سیاست علم، اقتصادي جغرافیا او نورو څخه هم د خپلو مطالعاتواومطالبو د تشریح او توضیح لپاره کار اخېستلای شي. په دې ډول د اقتصادي پرمختیا د علم دغه (بین البیني) ځانګړنه ځینې مسلکي پوهان په شک کې اچولي چې هغه د ځانګړې څانګې په توګه نه پېژني. خو دا لکه د مایکرو او مکرو اکانومیک په شان یا لکه د احصایې، یا لکه د اقتصادي پروژو د تحلیل او نورو په شان یوه مشخصه موضوع لري.
د اقتصادي پرمختیا علم یوه پراخه ساحه لري. موږ پورته ولېدل چې د اقتصادي پرمختیا څانګې څومره پراخه وي، هغو کې ټولنیز شاخصونه، اقتصادي شاخصونه، سیاسي، کلتوري او حتی تاریخي شاخصونه شامل وو. دغه څانګه نه یوازې د یوې اوږدې مودې په ترڅ کې د اقتصادي پرمختیا لپاره کمیابو او محدودو سرچینو بېلونکې او ټاکونې څانګه وه، بلکې فقیرو یا وروسته پاتې ټولنو د اجتماعي او مؤسساتي (حکومتي او خصوصي) اقتصادي میکانیزمونو او فلاکتباره حالت د له منځه وړلو هڅې کوي. په دې ډول د اقتصادي پرمختیا مضمون نظر نورو اقتصادي مضامینو ته دې ته ډېره متوجه ده چې د پراخو وګړو د چوپړ لپاره مؤسساتي او ساختماني چېکه ټولنیزه او اقتصادي پروسه رامنځ ته کړي او وګړي د اقتصادي پرمختیا په ګټو او پړاوونو او د هغو په ګټورو پایلو کې راګډ کړي. په داسې توګه چې د حکومت او پلان جوړونې رول په ملي او نړېوالو اقتصادي سیاستونو کې مهم ګڼي. یا په بله وینا د اقتصادي پرمختیا د کورنی محتویات دې ته اړم دي چې تولیدي سرچینې په ډېره ښه توګه تخصیص شي.
سیاسي او ټولنیزې مؤسسې دغو تخصیص کولو او بېلولو کې برخمنې کړي او پالیسې ګانې توصیه کوي ترڅو د اقتصادي ودې پایلې ټولو وګړو ته ورسېږي.
په لنډ ډول باید ووایو چې:
د اقتصادی پرمختیا تیوری د افغانستان په شان هیوادو ته ډیره مهمه ده ترڅو وکولای شی دهغې په رڼا کی د پرمختیا امکانات او لارې-چارې ومومی. په اکثرو هغو انکشافي تیوري

ګانو کې چې پخوا توضيح شوي، اقتصادي رشد يا اقتصادي وده (Economic Growth) د انکشافي اقتصاد له مهمو اهدامو څخه شمېرل کېږي. داقتصادی پرمختيا په هکله نامتو پوهانو لکه روستو، لويس او زيات شمير نورو علماوو نظريات ورکړی دی او د پرمختيا دلارو- چارو ترڅنګ يې پاليسی هم ښودلی دی. پرمختيايي هېوادونه په مجموع کې په تېرو وختونو کې په نسبي توګه د چټکې ودې مراحل تېر کړي دي، په هغو پرمختيايي هېوادو کې چې هلته فقر يا بېوزلي ليدل کېږي، د انکشافي سياست د اهدافو په چوکاټ کې په عمومي توګه په اقتصادي ټولنيزو او سياسي برخو کې د پرمختيا يا انکشاف د کچې لوړوالی ددې هدف لپاره دی، چې له فقر څخه خلاص شي او له پرمختللو صنعتي هېوادو سره يې فاصله کمه شي. پرمختيايي اقتصاد او وروسته پاتې اقتصاد؛ هغه دوه مفاهيم دي، چې د وروسته پاتې ټولنو او د ودې په حال کې ټولنو توپير بايدپرې وشي، دلته موږ Advanced Economy او Back Down Economy نومونه هم اخيستلی شو، دلته مهمه خبره دا ده، چې د وروسته پاتې اقتصاد لرونکي هېوادونه دانکشافی تيوری په رڼا کې ځانونه پرمختللي اقتصاد ته ورسوي، ياني خپل هېواد کې مثبت کيفي او کمي بدلونونه راولي، اقتصاد پوهانو د پرمختللو هېوادو د تجربې له مخې د پرمختيا عوامل دوه ډوله ښودلي دي:

1. اقتصادي عوامل Economic Factors.
2. غير اقتصادي عوامل Non Economic Factors.

پروفيسـور ام. ايـل. جهنګـان M.L.Jhingan، چـې دېـرش کالـه يـې د هندوسـتان نـامتو پوهنتونونـو کـې تـدريس کـړی دی او پـه خپلـه د اقتصـاد پـوهنځي ريـيس او د څـانګې مشـر پـاتې شـوی، خپـل هغـه کتـاب کـې چـې The Economic of Development & Planing نـومېږي او ۳۰ ځلـې چـاپ شـوي دي، پـه څلـورم څپرکي کې يې دپرمختيا لپاره لاندی عوامل ډير ضرور بللی دی:

1. طبيعي سرچينې Natural Resources.
2. د پانګې تجمع Capital Accumulation.
3. Organization.
4. تکنالوژيکي ترقي Technological Progress.
5. د توليـدي برخـو او کـار وېـش Division of Laborer & Scale of Production.
6. په اقتصادي جوړښت کې بدلون Structural Change.

نومـوړی وايـي چـې دا هريـوېې خپـل ځـانګړي ارزښـتونه لـري، د بېلګـې پـه توګـه طبيعـي بډايـه شتمني پـه خپلـه د استخدام لامـل ګرځـي، چـې د کـار نېرو پـه هغـوی کـار کـوي او پـه ټولنـه کـې د توليـد کچـه لـوړېږي. د هندوسـتان دهيـواد تحليلونـه د افغانسـتان لـه شـرايطو سـره ډيـر نژديـوالی لـری، نوځکـه زمـوږ د پـاملرنی وړ ګرځي.

هغه يو بل نامتو اقتصادی تيوريسن چې ټولو ته د درناوی وړ دی، هغه فريدمن دی. فريدمن، ميلټون (Milton Friedman)په ۱۹۱۲ م .کال کې په نيويارک کې وزېږېد، ده وکولای

شول د رانګرز له پوهنتون څخه په شل کلنۍ عمر د لسانس په درجه فارغ شي ، وروسته یی د شیکاګو په پوهنتون کې له لسانس څخه پورته زده کړې وکړې او په ۱۹٤٦ م ، کال کې یې د کولمبیا له پوهنتون څخه دوکتورا سند ترلاسه کړ، په ۱۹٤۸ م کال کې د کولمبیا په پوهنتون د عملي هئیت غړی شو او په تدریس یې پیل وکړ، نوموړی په ۱۹۷٦ م کال کې د اقتصاد په برخه کې د نوبل جایزه وګټله ، دغه اقتصاد پوه د پرمخیتا تیوری تشریح کړی ده او د هیوادونو د ژوند د کچی د اوچتولو لاری چاری یی ښودلی او د اقتصاد ډیر مسایل یی څیړلی دی.
همدارنګه د (James M. Buchanan)بوکانان، جیمز نوم د هغو علماوو په سر کی راځی چی د اقتصادی ترقی او د ټولنیزی پرمختیا په برخه کی یی بشریت ته بیساری خدمات ترسره کړی دی. بو کانان په ۱۹۱۹ م . کال کې د امریکې د متحده ایالتود تنس Tennessee ایالت د مور فریز بورو په ښارکې نړۍ ته سترګې پرانیستی دی، په ۱۹٤۰ کال کې یې د تېنس له پوهنتون څخه لسانس او په ۱۹٤۸ م ، کال کې یې د شیکاګو له پوهنتون څخه دوکتورا ترلاسه کړه، وروسته بیا په ۱۹٥٤ م کال کې د ویر جینیا په پوهنتون کې د اقتصاد استاد شو ، او ورسره په سیاسي اقتصاد کې د توماس جفرسون د مرکز مدیر هم و، په ۱۹٦۲ م ، کال کې یې د اختیار یا واک ورکولو د محاسباتو د اثر په لیکلو سره د عمومي انتخاب نظریه رامنځته کړه او د عمومي انتخاب تر عنوان لاندې یې یوه مجله هم خپره کړه، هغه په ۱۹٦۳ م کال کې د جنوب د اقتصاد د ټولنې رییس او په ۱۹۷۲ کې د امریکې د اقتصاد پوهانو د ټولنې مرستیال شو او په ۱۹۸۰ م کې د مونت پلرین د موسسې د اجرائیه کمېټې غړی هم و. ده د ګڼ شمیر وروسته پاتی هیوادو وضعیت څیړلی دی .
یو بل نامتو عالم چې د پرمختیایی هیوادونو وضعیت یې ډیر ښه تحلیل کړی دی او کیدای شی له نظریاتو څخه یې په ډیرو مواردو کی کار واخلو، هغه ګری دی.
بکر، ګری په ۱۹۳۰ م کال کې د امریکې د متحده ایالتو د پنسلوانیا د ایالت په پریستاون کې نړۍ ته سترګې پرانیستې په ۱۹۱٥ م کې یې لسانس له پرنستون پوهنتون څخه او خپله د کتورا یې په ۱۹٥٥ م کې د له شیکاګو پوهنتون څخه ترلاسه کړه، په ۱۹٦۰ م کې د کولمبیا د پوهنتون د استاد په توګه ومنل شو او له۱۹۷۰ م څخه وروسته د شیکا ګو د پوهنتون استاد و، په ۱۹٦۷ م کې یې د جان ببېس کلارک مډال د امریکې د اقتصاد پوهانو له ټولنې څخه ترلاسه کړ، بکر په ۱۹۷٤ م کال کې د امریکې د اقتصاد پوهانو د ټولنې مرستیال شو اوپه ۱۹۹۲ م کال کې یې د نو بل جایزه ترلاسه کړه، ده د اقتصاد دومره پراخه قلم وچلاوه چې د ټولنپوهنې ، وګړپېژندنې او ارواپوهنې مسایل یې پکې ورګډ او پر اقتصاد یې د دغو کارونو اغېزه وښوده ، یعنې د اقتصاد د علم پولې یې پراخه کړې. د پرمختیا او دبیوزلی د له منځه وړلو لاری- چاری یی وښودی او د ټولنیزی رفاه مسایل یی بیان کړل.
همدا رنګه هیګنس دپرمختیا په برخه کې غوره نظریات ورکړی دی. همدا رنګه ضرور ده چی د لنډیز په دی برخه کې په ډیر لنډول د واسیلی لیونتیف نوم هم یاد شی:
Wassily W.leontiefلیونتیف ، واسیلی په ۱۹۰٦ م .کال کې د روسیې د پترزبورګ په ښار کې نړۍ ته راغلی ، پلار یې د سن پترز بورګ په پوهنتون کې د کار د اقتصاد استاد و ، لئیو نتیف په ۱۹۲٥ م کې د سنت پترز بورګ پوهنتون څخه فارغ او د دوکتورا دترلاسه

کولو په خاطر د برلین پوهنتون ته ولاړ، په ۱۹۳٦ م کال کیې د امریکا د اقصتاد ي وضعیت یوه څېړنه پېل کړه چې د عامل – حاصل جدول یې بشپړ کړی ، دده د عامل - حاصل جدول د اقتصادی وضعیت د ښه کیدو، اقتصادی ودی او له فقر څخه دوتلو یو ډیر ښه موډل کیدای شی. په اوسنی وخت کې دپرمختیا په هکله د شومپتر نظریات بیلابیلیوپوهنتونو کې د درسی کتابونو لویه برخه جوړوی، چی موږ هم پورته برخو کې ورڅخه لنډه یادونه کړی ده. همدا رنګه جان تنبرګن په خپلو لیکنو کې لازمی لاربښوونی کړی دی. په دې توګه له تیوری څخه خبرتیا او په هغو باندې پوهیدل یوه کلیدی چاره ده.

لنډیز

دکتاب پنځم څپرکی په حقیقت کې ددی کتاب اصلی موضوع په تفصیل بیانوی، دغه څبرکی د کتاب لویه برخه هم نیولی ده چی په ترڅ کې یې تیوری پیژندل شوی ده، دا ټکی هم روښانه شو چی یوه اقتصادی تیوری څنګه رامنځته کیږی. موږ د یو شمیر هغونامتو اقتصاد پوهانو نظریات ولوستل چی خاصتاً یې د پرمختیا او پرمختیایی هیوادونو په هکله لیکنی کړی دي. د دوی لنډ ژوند لیک او آثار هم معرفی شول . د پروفیسورلویس. میردال، روستوو الفردمارشال، نیوکلاسیکانو، جوزف شومپترو جان تنبرګن، جیمزبوکانان او هاروډ- ډومر نظریات او موډولونه مو بیان کړل. په دوی کی ګڼ شمیر هغه کسان او نظریات دی چې د پرمختیایی هیوادو لپاره په ریښتنی معنا سره ګټور دی، دوی د پرمختیایی هیواو وضعیت ډیر ښه تحلیل کړی دی، دوی خپل تجارب بیان کړی او د اوسنیو پرمختللو صنعتی او پانګوالو هیوادو د پرمختیا حرنګوالی یی زموږ مخی ته ایښی دی. دتیوری ترځنګ موډلونه خپل ارزښت لری. دغه پوهه ځوان متخصص کادرونه په دی باندی توانمند کوی چې له دغوو علمی لاسته راوړونو څخه د خپلو هیوادونو د پرمختیا لپاره ښه ګټه اوچته کړی.

تمرينات

۱.په اقتصاد کې يوه تيوری کوم خلورشرايط لری؟
۲.دشومپتر د تيوری اصلی ټکی څه دی، يعنی نوموړی دڅه شی داقتصادی پرمختيا عامل بولي؟
۳.روستو څوک و اوڅه يی کړی دی؟
۴.دکارل مارکس او روستو د پرمختيا مراحل يو بل سره څه توپير لري؟
۵.آيا دا سمه ده چې افغانستان په۱۳۸۱ل. کال کې دټوپ وهلو پړاو ته ورسيد؟
۶.جاپان وايی موږ اوس شپږمه مرحله کی ياستو، منظور يی څه دی؟
۷.ارتور لويس څوک و؟
۸.د دوه ګونی اقتصاد نظريه چا ورکړی ده؟
۹.هغه معيارونه او علايم چې دپرمختياپه پايله کې راڅرګنديږی کوم دي؟
۱۰.د اقتصاد د يوه محصل په توګه، ستاپه نظر اقتصادی پرمختيا ته درسيدو لپاره کومو لومړيتوبونو ته اړتيا ده؟

## شپږم څپرکی
## پرمختیایی تیوری او بهرنۍ مرستې او پورونه

### بهرنی مرستی(Foreign aid) او دهغو طرز

بهرنی مرستی(Foreign aid)په اقتصاد کی یو بحث او ددولتی عوایدو یا ددولت د مالی وسایلو یوه منبع او عامل دی. دولتونه دغه مالی وسایل د عامه خدماتو او اقتصادی پرمختیا په لاره کې مصرفوی. ځینو هیوادو کی یی حجم زیات، خو په یو شمیر نورو کی صرف د اړتیا پر مهال لیدل شــوی دی. پر مختیایی هیوادونه بالعموم بهرنیو مرســتو ته اړدی، او ددوی دولتونو قانونا بهرنی مرستی او بلا عوضــه کمکونه په قانونی شـکل منلی دی. دغه مرستی باید رسما دولت(دمالیی وزارت) ته انتقال ، ددوی په ملی محاسباتو کی شاملی او بیا د کلنی بودجی له طریقه په عامه خدماتو، د انکشـــافی پروګرامونو په تمویل او ددولتی دندو په اجرا کی مصـرف شی. مخکی تر دی چی په افغانستان کی د بهرنیو مرستو حالت ته کتنه وشـی، بنـه به وی له بیلابیلو اړخونو بهرنیو مرستو او دهغو تاریخی پس منظر ته یوه کتنه وکړو.

د بهرنیو مرستو تعریف او پیژندنه:

د وروســـته پاتی هیوادونو په مالی منابعو کی یو یی بهرنی پورونه او مرســـتی دی. البته پورونه وروسته بیا په بیلابیلو قسطونو سره ادا کیږی او کله هم د پور ورکوونکو له خوا په بشپړ ډول ببنل شوی هم دی. افغانستان هم له بیلابیلو هیوادونو څخه پورونه اخیستی دی چی یو شمیر یی ادا او یو شمیر یی ببنل شوی دی مثلا روسیی په ۲۰۰۶ کال کی د پخوانی شوروی اتحاد له خوا ټول ورکړل شوی پورونه وببنل. همدا رنګه بلغاریا هم د فرانسی په غونډه کی خپل پورونه وببنـل، اما بهرنۍ مرستې او بلاعوضــه پورونه وروسته پاتی او اړو هیوادونو ته په وړیا ډول ورکول کیږی ، تر څو خپلی اړتیاوی وربandی پوره او ملی پروژی وربandی تطبیق کړی. دلته دا خبره ذهن ته راځی چی بهرنی کمکونه، ګرانتونه او پرمختیایی رسمی مرستی باید څرنګه وپیژندل شی.

په تیرو وختونو کی ګڼ شمیر ننیو پرمختللو صنعتی هیوادونو د(grants) تر عنوان لاندی همدا ډول مرستی تر لاسه اود خپلی اقتصادی پرمختیا لپاره یی ورڅخه کار اخیستی او نن ورځ هر یو یی په خپل ځان متکی هیوادونه دی. هغو هیوادونو هم دا ډول مرستی تر لاسه کړی دی چی یو مهال له ناوړه ناڅاپی پیښو څخه متاثره شوی او د جګړو له امله یی اقتصاد ځپل شوی و. په دی توګه ثابته شوه که دغه بهرنی مرستی په بنه ډول ولګول شی د پرمختیا لامل کیدای شی، خو د بی کفایته برنامه ریزی په اثر کیدای شی دغه منابع سمی ونه لګول شـــی. په تیره بیا بهرنی مرســـتی هغه وخت په موثرډول نشـــی لګول کیدای چی ددولت په مالی پلان کی شـامل نشـی، بلکی به تیت او پاشـان ډول مصـرف شـی. یو شـمیر بهرنی هیوادونه مرســـته اخیســـتونکو هیوادوکی مرســـتی د غیر حکومتی نهادونو په لاس

مصـــرفوی، خو یو شــمیر نور یی د مالیی وزارتونو له طریقه انتقالوی دغه دوهم شــکل یی مناسب او غوره دی.
په افغانســتان کی بهرنی مرسـتی او دهغو د لګولو طرز تقریبا نیمه پیړی تاریخ لری چی په لنډ ډول به لړ. وروسته بیان شی.

<u>په نړی کی د بهرنیو مرستو څرنګوالی:</u>

داقتصــاد د علم او د مالی جریان له نظره بهرنی مرســتی هغه حکومتی منبع ده، چی له یوه هیواد څخه بل هیواد ته لیږدول کیږی، یعنی له پر مختللو هیوادونو څخه بل د مرســــتی وړ پرمختیایی، وروســـته پاتی یا جګړه ځپلی یا د طبیعی نا څاپی پیښــو له امله زیانمن شـــوی هیوادو ته رسـما لیږدول کیږی. یعنی بهرنی مرسـتی د منابعو ا ونقدی جریان هغه بهیر دی چی موخه ورڅخه د وروسته پاتی هیوادونو په پښو درول وی، کیدای شی دغه مرستی له وروسته پاتی هیوادونو سره په ناڅاپی ، سختو او بحرانی شرایطو کی وشی او یاهم کیدای شی هر وخت او په پرله پسی توګه وشی. یو شمیر پرمختیایی هیوادونه په خپل اقتصاد کی د صادراتو د حجم د ورځ په ورځ زیاتوالی د هیلی تر څنګ بهرنی پانګی اچونی او بهرنیو مرســتو ته د توقع په ســترګه ګوری. دلته باید دغه هره توقع بهرنی مرســته ونه ګڼل شــی. بلکی یوه یی پانګه اچونه او بله یی بهرنی مرسته ده. په عمومی توګه بهرنی مرسـتی په دو ډولونو ویشل کیږی:

1. ر سـمی عامه مرسـتی(Public aid): دا حکومتی منبع لری او دوروسـته پاتی هیوادونو د اقتصادی ودی په منظور ورکول کیږی. دی ته (Official Development Assistance) ویل کیږی. کلونه کلونه کیږی چی د متحده ایالاتو، اروپایی هیوادونو، جاپان، روســـیی، کاناډا او اســترالیا له خوا ګڼ شــمیر افریقایی، آسـیایی او دلاتینی امریکی هیوادوته دغه ډول مرستی رسول کیږی. دا مرستی په لنډیز سره ( ODA) بلل کیږی.
2. غیر رسـمی مرسـتی: دا دیو شـمیر اعانو، خیراتونو، وصـیتونو او دځینو خپلواکو ادارو د سـوغاتونو ا وهدیو څخه عبارت دی چی اکثرا په بیړنیو حالاتو کی د بشـری مرسـتو په بڼه تر سره کیږی. دا د نا حکومتی مؤسسو(Non-government organizations یا NGOs) مرستی او فعالیتونه دی، چی په هغو زیانمنو شویو سیمو کی د بشری مرستی په بڼه ورکول کیږی چی هلته حکومتونه رسیده ګی نشی کولای.

لومړی او دوهم ډول دواړه مرستی د بهرینو کمکونو(F.A) په نامه یادیږی، خو په اقتصـاد کی زیاتره له بهرنیو مرســـتو څخه منظور هماغه رســـمی کمکونه(ODA) دی چی مونږ. مخکی ورڅخه یادونه وکړه او هغه په رسمی توګه ثبت او په رسـمی احصـاییه کی شـمیرل کیږی.

په خارجی کمکونو کی ډیر مسایل شته چی باید پاملرنه ورته وشی، دا ځکه چی په عمومی تعریف کی بهرنی مرستی له پرمختللو هیوادو څخه وروسته پاتی هیوادوته د منابعو لیږدول دی، خو باید په یاد ولرو چی ځینی وختونه وروســـته پاتی هیوادو ته د پرمختللو صــــنعتی هیوادونو له خوا په ټیټه بیه د تعرفی وضــع کول او په ټیټه بیه د صـنعتی تولیداتو پلورل هم یو ډول مرســـته ده، خو په دی مرســـتو کی هیڅ هم نه لیږدول کیږی. همدارنګه ځینی وختونه پرمختللی هیوادونه وروسـته پاتی هیوادو ته داســی اجازه پاڼی ورکوی چی دهغو له

مخی د وروســـته پاتی هیوادونو صـــادراتی توکی د پرمختللو هیوادونو په مارکیټونو کی په لوړه بیه و پلورل شـــی. په دغه دوهمه بیلګه کی هم کوم څیز نه لیږدول کیږی، بلکی دغه ډول اجازه پاڼه وروسـته پاتی هیوادو ته یو ډول نقده او خالصــه ګټه بلل کیدای شـی. کیدای شـی ظاهرا د ګټی کولو لپاره د بهرنی پانګی لیږدول هم مرسـته و بلل شـی، خو دا دتجارت او ګټی لپاره ده، نه د سـیده مرســتی په خاطر او نه هم د انکشــافی اهدافو لپاره. دلته باید پوره پاملرنه وشـــی چی وروســـته پاتی هیوادو ته له پر مختلو هیوادونو څخه د یو شـــمیر انتقالاتو بڼه د ګټی لپاره ده. دلته باید پوره پاملرنه وشـــی چی وروســـته پاتی هیوادته له پرمختللو هیوادونو څخه د ګټی په موخه د خصــوصـــی پانګی یا شــخصـــی پانګی لیږدول مرسته نه ده، یعنی هر بهرنی هیواد هرومرو مرسته کوونکی نه دی ، بلکی بهرنی مرسته باید اعلان شوی او رسما منل شوی وی او وروسته تر هغه انتقال ومومی. نو ددی لپاره چی پورتنی ټکی ټول ښه روښانه شی، د بهرنی مرستی لپاره یو بل تعریف هم راوړو:

وروسته پاتی هیوادو ته د پانګی هر هغه ډول جریان چی د وروسته پاتی هیواد د اقتصادی پرمختیا لپاره وی، بهرنی مرســـتو کی شـــمیرل کیږی، چی دا بـایـد هرومرو لانـدنی ځانګړتیاوی ولری:

الف): ددغه جریان موندلو هدف باید ډونر یا مرســـته کوونکی هیواد ته تجارتی شـــکل ونه لری

ب): دغه جریان باید د ژمنو او په سپارښتنی بنو باندی وی، چی دا له تجارت او ګټی کولو سره توپیر لری. یعنی دا د پرمختیا لپاره د منابعو متعهدانه سپارل دی.

دلته ګورو چی په دغه وروستی تعریف کی هم یوه پوښتنه پیدا کیږی چی آیا نظامی مرستی چی پورتنی یوه ځانګړنه هم نه لری، په مرستو کی راځی؟ ددی ځواب لپاره باید وویل شی چی:

له یوه وروسته پاتی هیواد سره ددوی د ستونزو د حل لپاره هر ډول لاسنیوی بهرنی مرسته ده. کیدای شـی ځینی د اجناسـو په بڼه وی، ځینی د نقده جریان په بڼه او د عاید د ښــه ویش لپاراو یا هم د ملی اقتصاد دجوړښت د بدلون په خاطر وی. په عمومی توګه بهرنی مرستی د وروسته پاتی او اړ هیواد لپاره لاندی ګټی لری:

- دفقر په کمښت کی مثبت رول
- د اقتصادی زیر بنایی پروژو فعاله کیدل
- د جګړی، وچکالی یا بل ناخاپي عامل د تاثیراتو مخنیوی
- کلیوالی انکشاف
- د استخدام د فرصتونو ایجاد
- ددوی دداخی منابعو په کار اچول تر څو دوی ته د اقتصــادی فعالیتونو امکان برابرشـی او داسی نور مقاصد.

<u>ولی پرمختللی هیوادونه وروسته پاتی هیوادو سره مرسته کوی؟</u>

بیلابیل عوامل شـته چی یو شـتمن او ځواکمن هیواد له یوه بل اړ کوچنی یا ضـعیف هیواد سره مرسته وکړی، لکه : سیاسی عامل، په مرسته کیدونکی هیواد اغیزه غورځول، بشری

انګیزه، تکنالوژیکی تړلتیا، په خپل حکومت اود هغه په غښتلتیا باندی د خپلو خلکو باوری کول او هغوی ته د یو ډول غرور ور په برخه کول او داسی نور، خو بیا هم دغه لاملونه په لاندی ګروپونو ویشلای شو:
1 . مرسته ورکول د پرمختللو صنعتی هیوادونو او لویو ځواکونو له خوا ددوی په سیاسی ستراتیژی کی شامله خبره وی.
2 . دوی ځکه هم خوارو ملکونو سره مرسته کوی چی هغوی له روانی پلوه ځانته متمایل او لیوال وساتی
3 . خپلو تولیداتو ته د خرڅلاو مارکیټ پراخ کړی.
4 . نړیوالی اقتصادی اړیکی هم ددی ډول مرستو غوښتنه کوی او ورسره موافقه خبره ده.
5 . بشری عواطف او انسانی انګیزه او د پرمختللو هیوادونو او وروسته پاتی هیوادونو تر منځ د ډیر زیات توپیر او واټن راکمول
په تیره بیا افغانستان سره د بهرنیو مرستو مهم لامل دادی چی زمونږ هیواد اصلا د نړیوال کړکیچ او د سړی جګړی د عواملو له کبله ویجاړ شو او عوامل یی زیادتره بهرنی عاملین وو، نو ځکه اوس بشری احساس دا حکم کوی چی ددغو بهرنیو منفی عواملو دبیرته جبران په خاطر باید همدا بهرنی عوامل رغوونکی او مثبته برخه واخلی. له دی پرته په بهرنیو مرستو سره به د افغانستل کړکیچ او بحران خارج ته له سرایت کولو مخ واړوی او همدلته به حل شی او د تروریزم ریښه به وچه شی. یعنی په حقیقت کی د پرمختللو صنعتی هیوادونو له خوا مرسته، بیرته په خپله دوی سره هم یو ډول مرسته ده.
دبهرنیو مرستو رسول په حقیقت کی په خپله د دوی دامنیت، سرمایګذاری او سوداګری په ګټه هم دی، نو ځکه دوی په تیرو وختونو کی ګڼ شمیر هیوادونو سره مستی کړی او دا لړی همداسی جریان لری.
ګڼ شمیر هیوادنو په تیرو دولسو کلونو کی افغانستان سره پراخه مرستی وکړی. خو دا هم باید وویل شی چی په نړی کی همدا اوس هم ګڼ شمیر نور داسی هیوادونه شته چی بهرنی مرستی ورسره کیږی مثلا مصرسره له دی چی زیات شمیر طبیعی منابع لری، خو بیا هم د نړی د زیاتو بهرنیو مرستو اخیستونکی هیواد دی. پاکستان د بهرنیو مرستو د اخیستو له پلوه له افغانستان څخه هم مخکی دی. ایتوپیا، سوډان اوګڼ شمیر نورهیوادونه.
باید دا هم ووایو چی په اول قدم کی امریکا، آسترالیا، انګلستان او نور اروپایی هیوادونه له پاکستا ن سره راز راز مرستی کوی. بیا هم لکه هغومره چی پاکستان له بهرنیو هیوادونو سره تړلی پاتی دی له نیکه مرغه افغانستان دومره نه دی تړلی. افغانستان کولای شی د بهرنیو مرستو په کمک د خپلی اقتصادی زیربنا په جوړولو کاملا په خپلو پښو ودریږی او وروسته به په مستقلانه توګه د خپلو داخلی ریزرفونو او امکاناتو په کارولو سره به دترقی او پرمختیا په لاره قدم اوچت کړی او ښه پرمختګونه به یی په نصیب شی. یعنی اوسنی ګڼ شمیربهرنی مرستی ، دسیاسی نظام او جوړښت د استحکام او د امنیت د تامین لپاره دی. مونږ کولای شو د پانګی اچونی او د خپلو امکاناتو په کارولو خپل ملی اقتصاد پرمخ بوځو، خصوصا زمونږ کانی سرچینی او جغرافیاوی موقعیت هم ډیر مساعد دی چی اقتصادی پرمختیا مو ور باندی تضمین کیدای شی.

پرمختیایی هیوادو ته د بهرنیو مرستو منفی اړخونه:

- دعیاشی او لټی د روحیې خپریدل،
- د بیعدالتۍ زیاتیدل،
- پر خپل ځان د بسیاوالی روحیی ضعیفه کیدل،
- د تور او جرمی اقتصادی پراختیا،
- د مرسته اخیستونکی هیواد ملی غرور ته زیان رسیدل،
- دمرسته اخیستونکی له خوا په پټه د یو شمیر (نه ښکاره کیدونکو) شرایطو تحمیل ته غاړه اینودل

<u>په نړی کی د بهرنیو مرستو تاریخچه:</u>

تر ډیره بریده پوری د بهرنیو مرستو ښه مثال د امریکی د متحده ایالاتو هغه مرستی دی چی وروسته ددوهمی نړیوالی جګړی له پای ته رسیدلو څخه یی جنګ ځپلی اروپا او جاپان سره وکړی. د امریکی متحده ایالاتو ددوهمی نړیوالی جګړی له پای ته رسیدلو وروسته، چی په هغی کی اروپا ته ډیر زیات زیان رسیدلی و، سمدستی د مارشال د پلان تر چتر لاندی مرستی پیل کړی چی ټولی دغه مرستی د لویدیزی اروپا جګړه ځپلو سیمو ته متوجه وی. وروسته بیا د ۱۹۵۰ م. لسیزی په ترڅ کی یو شمیر نورو پرمختیایی هیوادونو ته هم وغځیدلی ترڅو دوی د سوسیالیستی هیوادونو بلاک ته میلان پیدا نکړی، یعنی دغه بهرنی مرستی د امریکا او روسیی تر منځ د سړی جګړی یوه برخه شوه. امریکی د اندیوالی د ملاتړ(Support for friendly) د روحیی له مخی په سیاسی- اقتصادی او نظامی ډګرونو کی دا ډول مرستی لاپسی زیاتی کړی او ځان ته یی د نړی په ګوټ ګوټ کی نوی متحدین وموندل، تر څو چی دغه مرستی په ۱۹۶۰م.کال کی له جنوبی آسیا څخه نیولی تر لاتینی امریکا او افریقایی هیوادونو پوری پراخه شوی، خصوصا هغو هیوادونو ته زیات ارزښت ورکړل شو چی د جغرافیایی ستراتیژی له مخی یی ډیر اهمیت درلورد. په ۱۹۷۰م. کلونو کی د امریکی د متحده ایالاتو بهرنی مرستی د فارس د خلیج او کارابین پوری او تر ۱۹۸۰م. لسیزی پوری د مرکزی امریکی هیوادونو ته هم ورسیدی. پخوانی شوروی هم ګڼ شمیر آسیایی هیوادونو، افریقایی، لاتینی امریکی او داروپا د ختیز هیوادونو ته مرستی ورکولی او دهغوی ملی، پرمختیایی پروژی یی پیاوړی کولی. جرمنی، انګلستان او فرانسی هم د support for friendly د روحیی له مخی یو شمیر هیوادونو سره مرستی پیل کړی. په ۱۹۹۰ م. کی د پخوانی شوروی په رنګیدو سره دغه مرستی د امریکی پخوانی لوی سیال فدراتیفی روسیی او او کراین ته هم ورسیدی. په ۱۹۹۱م. کی بوسنیا، رواندا او چین ته هم پاملرنه وشوه، خو له ۱۹۹۰م. کال وروسته په منځنی ختیځ کی د اقتصادی اړتیا او تحلیل پرځای د سیاسی دلایلو له مخی په بهرنیو مرستو کی ډیر بدلون رامنځته شو، خو د جاپان د هیواد مرستی بیا زیاتره د سیاسی انګیزی پرځای اقتصادی انګیزی لری. جاپان خصوصا په آسیا کی خپلو ګاونډیو هیوادو ته د اقتصادی مقاصدو او د سوداګری د پراختیا په موخه مرستی ورکوی، تر څو هلته خصوصی سکتور او شخصی پانګه اچونه وده ومومی او په تجارت کی پراختیا راشی. که چیری په عمومی

توګه یو تحلیل ترسره شی له ۱۹۴۰م. کال څخه تر اتیایمی لسیزی پوری د پرمختللو هیوادو له خوا وروسته پاتی هیوادو ته د انکشافی کمکونو په چوکاټ کی ۴,۴ بیلیون ډالره مرسته شوی وه. یوائحی په ۱۹۸۵م. کال ددغو مرستو اندازه ۴,۲۹ بیلیون ډالره شوه چی په ۱۹۹۹ کی تر ۴,۵۴ بیلیونو ډالرو ورسیده او په ۱۹۹۹م. کی د ډونرانو شمیر ۲۱ او د مرستو اخیستونکو پرمختیایی او وروسته پاتی هیوادونو شمیر له ۳۸ څخه زیات و. که چیری د مشخصو هیوادونو له مرستو تیر شو، ګڼ شمیر موسسات او بانکونه هم شته چی وروسته پاتی هیوادونو ســـره د پرمختیا په برخه کی کمکونه کوی. لکه د آســـیای پرمختیا بانک ، اســـلامی بانک او نړیوال بانک. دلته به د بیلګی په توګه د نړیوال بانک ( WB) د فعالتیونو د طرز او د هیواد نو د اقتصادی پرمختیا په برخه کی دهغه د رول په هکله خبری وشی.

نړیوال بانک اوپرمختیایی هیوادو سره یی مرستی:

د نړیوال بانک او د پیسونړیوال صندوق جوړښت ترډېره سره ورته دی. دواړه ۱۸۱ غړي هیوادونه لري، د غړو هیوادونو د رایو څواک د دوی په کلنی ګډونونډې پوري اړه لري. کلني ګډونونډه د غړیو هیوادونو اقصادي حالت ته په پام سره توپیر کوي. یانې ګډونونډه او د رایې کارونې څواک د هیوادونو د اقتصادونو د کچې په تناسب یو له بل سره توپیر کوی. بانک او صندوق دواړه د پورورکونې سرچینې دي. پر دې سربېره، دوی د بهرنۍ پانګې راجلبولو لپاره هڅونکی رول لوبوي او رغنده مشورې او تخنیکي مرستې برابروي. د دوی دکار طرز او موخوله توپیر سره سره، د دوی مرستندو یی پروسې یو له بل سره ډیر لږ توپیر هم توپیرلري. د پیسو نړیوال صندوق اره موخه د اسعارو د ادلون بدلون د مارکیټونو په کړنو باندي څار او دهغوی کنترول کول ؤ، خو د هیوادونو کورنۍ رغونه او بیا رغونه د نړیوال بانک لومړۍ موخه ده. د نړیوال بانک له موخو څخه یوه یی داده چې په یو هیواد کې په اړینو ساحاتو کې د پانګونې لپاره شرایط مساعد کړي او هڅه وکړي چې اقتصادي وده چټکه او د ژوندانه کچه لوړه شي. د تخنیکي مرستو او مشورو په ورکولو سره پرمختیایي هیوادونه په ځان دبسیا اقتصادي ودې پرلور روان کړي، بنستیز جوړښتونه په ښو ودروي او په هیوادونو کې د پرمختګ او ودې رامینځته کوونکې اداري جوړښتونه جوړ او خوندي کړي.

د وخت په تېرېدو سره د نړیوال بانک سازماني جوړښت زیات توپیر کړی دی. په لومړیو وختونو کې د بانک ټول پورونه د بانک د یوې اداري له خوا ورکول کېدل. دغه اداره د بیارغونې او پرمختګ نړیوال بانک نومېده. د بیارغونې او پرمختګ نړیوالې ادارې اره موخه د هغو اقتصادونو بیا په ښو درول ول، چې د دویمې نړیوالې جګړې په پایله کې له ښو غورځېدلي ول. سره له دې چې د دغې اداري د پور ورکولو موخو توپیر کړی دی؛ خو بیا هم په مجموع کی د دغې اداري په پور ورکولو کې له پیله تر اوسه لوی توپیر نه تر سترګو کېږي.

د ۱۹۶۰ مو کلونو په وروستیو کې د مارشال پلان د بریالیتوب له امله د اورپا بیا رغونه نژدې پوره شوې وه. نور نو بانک اړ نه ؤ چې د اروپا د بیا رغونې لپاره زیاتې هڅې وکړي. نړیوال بانک خپل پام بیوزلو او وروسته پاتې هیوادونو په لور واړاوه. په ۱۹۶۰م. کال کې

د پرمختګ نړیواله اداره جوړه شوه. د دغې ادارې د جوړولو لویه موخه په وروسته پاتې هیوادونو کې پرمختګ ته کار کول ول. د پرمختګ نړیوالې ادارې او نړیوال بانک په موخو کې لوی توپیر نه ترسترګو کیږي. توپیر په دې کې دی چې د پرمختګ د نړیوالې ادارې مالي مرستې او پورونه په خوار ارزانه او له تخفیف څخه په ډکه توګه ترسره کیږي. دغه پورونه هغو هیوادونو ته ورکول کیږي چې د سړي سر عاید کچه یې تر یوې مالومې کچې ټیټه وي. د دغې ادارې پورونه د خورا اوږده مهال لپاره دي. یعنی د پور ورکولو تر ټولو آسانه اوساده شرایط ! د دغو پورونو مهال د نړیوال بانک د پورونو له مهال څخه څو برابره زیات دی. پردې سربېره، د پرمختګ د نړیوالې ادارې پورونه بی له کمی ربح څخه دي. د دغې ادارې ماموریت داده چې خوار او وروسته پاتې هیوادونه له اقتصادي بې ثباتۍ سره مخامخ دي او نه شی کولی چې سوداګریز پورونه واخلي، نو ځکه باید هغوی له دغی بی ثباتۍ څخه وژغورل شی. د دې ترڅنګ، په دغو هیوادونو کې له پانګونې څخه ژر عاید نه شي ترلاسه کېدای. همدا لامل دي چې دوی د پور په وړاندی ربح، تکتانه او نور شرایط نه شی پوره کولی.
د بیارغونې او پرمختګ نړیوال بانک او د پرمختګ نړیواله اداره په ګډه د نړیوال بانک جوړونکي دي. یانې نړیوال بانک له دؤو ادارو څخه جوړ شوی دی، چې : یوه یې د بیاروغونې او پرمختګ نړیوال بانک او بله یې د پرمختګ نړیواله اداره ده. د دغو ادارو ترڅنګ یوه دریېمه او تړلې اداره کار کوي چې نړیواله مالي اداره نومېږي. د نړیوالې مالي ادارې کارکوونکي د پرمختګ او بیارغونی نړیوال بانک او د پرمختګ نړیوالې ادارې کارکوونکي دي. خو د دغې اداري قانوني او مالي حیثیت ځانته او بېل دی. نړیواله مالي اداره په ۱۹۶۵ م. کال کې رامینځته شوه. د ادارې موخې هماغه د نړیوال بانک موخې دي، خو د پور ورکولو ډول او د ربح کچه یی توپیر لري. دغه اداره کولی شي چې خصوصی سکتور سره هم مرستې وکړي او د نړیوال بانک د پانګونې لپاره لاره هواره کړي. په بیوزلوهیوادونو کې د خصوصی سکتور(شخصي سوداګرۍ )په رامینځته کولو سره اداره هڅه کوي چې اقتصادي بنیرازي راوستل شي او د دریېمي نړۍ هیوادونه د پرمختګ په لور وخوځېږي.

د نړیوال بانک اصلی موخه:
د نړیوال بانک اره موخه له جګړې وروسته د اقتصادونو بیا په پښو درول ؤ . تمه کېده چې د نړیوال بانک هڅې به په لویو هیوادونو کې مالی ثبات رامینځته کړي. خو بیا هم نړیوال بانک تر ۱۹۷۹ مو کلونو پوري وړوکې اقتصادي تګلارې لرلې. له جګړې ورسته په لومړۍ او دویمه لسیزه کې بانک هڅه وکړه چې بیارغونه وشي او بنسټیزجوړښتونه په پښو ودرول شي. د مارشال پلان له بریالیتوب سره سم د بانک پام هم د وروسته پاتې هیوادونو په لور شو. په پرمختیایی او وروسته پاتي هیوادونو کې د بانک هڅې تردېره په اروپا کې د بیارغونې له هڅو سره ورته وې. د بانک لپاره لومړۍ موخه د بنسټیزو جوړښتونو بیا په پښو درول وو، ترڅو وروسته پاتي هیوادونه د په ځان بسیا اقتصادونو لرونکي شي.

خو له بده مرغه د بانک هڅې په پرمختیایی هیوادونو کی هومره اغیزناکې نه وې څومره چې په اروپا کې وې. د دې کار لوی لامل په پرمختیایی او وروسته پاتې هیوادونو کې د اداري جوړښتونو کمی او د په کارپوه کارګرو نه شتون ؤ(ظرفیتونه ټیټ او د مدیریت بحران موجودو). بانک دې پایلې ته ورسېد چې باید په لومړیتوبونو باندي یوځل بیا کتنه وشي. د دې اړتیا پیښه شوه چې د لویو پروژو ترڅنګ وړې پروژې هم پیل شي؛ داسې پروژې چې بیوزلو عامو کورنیو ته یې ګټه ورسېږي. اړتیا پیښه شوه چې په وروسته پاتې هیوادونو کې بانک خپلې تګلارې ته بدلون ورکړي.
د نړیوال بانک پورونه د کرکیلي په برخه کې خورا ډېر شوي دي. بانک د کرونده ګرو مالي ملاتړ کوي او د اړینو خوراکي توکو په برخه کې پور ورکولو ته ډېره لیوالتیا لري. د بانک دلیل دادی چې د اړینو خوراکي توکو په برخه کې د کرونده ګرو ملاتړ کول ددې مانا لري چې د خوراکي توکو صادرات و هڅول شي. په دې توګه به هیواد ته بهرنۍ پیسې راماتي شي او د بیوزلو کرونده ګرو عاید به لوړ شي. داچې د کرکیلي په برخه کې په پور ورکولو سره د بیوزلو کورنیو لړ او ډېره توښه کېږي، د نړیوال بانک پانګونې په دغه برخه کې زیاتی شوې دی، ځینې نورې برخې یې هم پوښلې دي چې ځینې بیلګې یې ښوونه او روزنه، پاکې اوبه برابرول، روغتیاپالنه د کوچنیو شخصي کاروبارونو وده او نور دی. د نړیوال بانک په نورو دندو کې هم زیاتوالی راغلی دی. تخنیکي مرستې، څېړنیزې هڅې، خلکو ته د معلوماتو او احصایو برابرول، د شخصي کاروبارونو ملاتړ، دولتي موسسو ته مرسته او نور هغه برخې دي چې نړیوال بانک پکې فعاله ونډه اخلي.
د ۱۹۷۰ مو کلونو له وروستیو څخه د نړیوال بانک د پیسو ډېری لګښت په بنسټیزو جوړښتي بدلونونو ترسره کېږي. بنسټیزجوړښتي بدلونونه په هغو هیوادونو کې ترسره کېږي چې زیاتې اقتصادي ستونزې ولري او اړتیا وي چې په اقتصادي جوړښت کې یې بدلون رامینځته شي.
یو شمیر انتقاد کوونکی په دې اند دي چې د نړیوال بانک موخه، څنګه چې له لومړی سره یا د پیل په وخت کې وه، هغسی تر سره نه شوه، یعنی بیوزلی لا هم شته. د غریبو او بې وزلو د ژوندانه په کچه کې د لوړاوي راوستل نه دي تر سترګو شوی، خو داچې نړیوال بانک خپلې زیاتې پیسې اوس په بنسټیزو بدلونونو لګوي نو غریبو ته یې مخامخ ګټه لږ یا هیڅ نه رسېږي. بل پلو دا بدلونونه د شتمنو او غریبو ترمینځ واټن لا اوږدوي او فقر زیاتوي. ددی ځواب هم ویل شوی دی. د انتقادنو ځواب دادی چی بانک خپله مرسته کوی، دا چی د لږ پرمختیا امکان برابر شی هم لویه خبره ده، د دوامداره ثبات او پرمختګ او ټولینز عدالت رعایتول په خپله د مرسته اخیستونکو هیوادونو د حکومتنو دنده ده، دوی باید دی برخه کی خپل مسولیت ادا کړی، دا ددودی خپله پالیسی ده.

د پیسو نړیوال صندوق او نړیوال بانک ترمینځ همکاري:
په لومړیو کې د نړیوال بانک او نړیوال صندوق د دندو ترمنیځ ښکاره توپیر شتون درلود. هریو یې خپلې ځانته او ځانګړې موخې پرمخ بېولې. تر ۱۹۷۰ مو کلونو وړاندي د تادیو د موازنې کمښت به د لنډمهالو بهرنیو پیسو په ور کولو سره له مینځه ولاړشی. څنګه چې د اسعارو د ادلون بدلون په کابو کې ساتلو ټول مسولیت په بریټن ووډز کنفرانس کې صندوق

ته سپارل شوی ؤ، نو بانک په دې اړوند ښکاره کومه هڅه نه کوله. صندوق د ادلون بدلون د مکانیزم او تادیو د موازنې روغ ساتلو ته ژمن پاتې شو. د دغو موخو لاسته روا ړلو لپاره صندوق لویې اقتصادي تګلارې کارولې. بل پلو د بانک موخه داوه چې د کوچنیو اقتصادي تګلارو پرمټ کورنی تولید زیات کړي، رغونه او بیا رغونه وشي او د خلکو د ژواندانه کچه لوړه شي. خو په راوروستو کې د کړنو او مسولیتونو دغه بېلوالی ورو ورو کم شو. د تیلو په نرخونو کې لوړوالی، سوداګریزې ستونزې، په صادراتو کې کمښت او نور هغه لاملونه ول چې ستونزې یې ژورې کړې او لویو بنسټیزو بدلونونو ته یې لاره هواره کړه. صندوق او بانک هڅه وکړه چې حالات په کابو کې وساتي او په دې توګه د دوی د کار ساحې هم سره نژدې او همغږی شوې.

صندوق و پتییله چې د پرمختیایی هیوادونو سوداګریز دریځ د پرمختللو هیوادونو په وړاندې ښه کړي. د دغې موخې لپاره صندوق وموندله چې د ادلون بدلون د میکانزیم ترڅنګ په نورو برخو کې هم باید کار وشي، د بېلګې په توګه، د کورنیو بازارونو وده، په دولتي لګښتونو کې د کمښت راوستل، ټیټ تورم او ځینې نورې لویې او کوچنۍ ساحې. په دې توګه صندوق په هغو برخو کې هم په لاسوهنې پیل وکړ چې د بانک د کار په دایرې کې پرتې وې. بانک دې پایلې ته ورسېد چې د کورني تولید په کچې کی اوچتوالی یاد ملی تولید د ډېرښت راوستلو لپاره باید ځینې بهرني فکتورونه هم په پام کې ونیول شي او بنسټیز بدلونونه راوستل شي. بانک په دې توګه په هغو ساحو کې ګام واخیست چې د صندوق د مسولیت په دایره کې پرتې وې.

څنګه چې د تادیو د موازنې تعادل یا د تادیاتوبیلانس د دې مانا نه لري چې په اوړده مهال کې یو هیواد کاملا په ځان بسیا دی، نو بس له اقتصادي پلوه سم،روغ او پیاوړی دی، بلکی دا یواځی یو شرط دی، مهم نور شرطونه دی لکه غیر مقداری معیارونه او د اتباعو د ژوند کیفیت، عامه خدمات اونور؛ بانک او صندوق په دې لټه کې دي چې په زیات شمیر ساحو کې کار وکړي او هرڅه خوندي کړي. د نړیوال بانک هغه پورونه او مرستي چې د بنسټیزو جوړښتي بدلونونو لپاره ورکول کېږي د صندوق له هغو مرستو سره چې په اوږدمهالو ورته ساحاتو کې کېږي، ډېر توپیر نه لري. له همدغه امله په ۱۹۸۰ مو او ۱۹۷۰ مو کلونو کې د نړیوال بانک او د پیسو نړیوال صندوق په کړنو او هڅه کې نژدې توب او همغږی راغله. اوس مهال دا هڅه کېږي چې د کورنیو او بهرنیو ستونزو د مخنیوي لپاره باید د لوی اقتصاد تګلاري او د کوچني هغه همغږې شي. له دې امله بانک او صندوق په خپلو کې ملګرتیا او همغږي ډېره کړې ده.

د نورو ادارو مخالف نظر:

د نړیوال بانک او نړیوال صندوق په هڅو کې همغږي پیدا شوې ده، خو د دې همغږۍ سره سره د دوی له کړنلارو او تګلارو سره نورې ادارې د نظر اختلاف لري. ګوتنیونکې ادارې په دې اند دي چې د نړیوال بانک او د پیسو نړیوال صندوق وروستیو هڅو بیوزلې کورنۍ له لا زیاتو ستونزو سره لاس او ګریوان کړې دي. د صندوق او بانک د تګلارو په پایله کې د دولتونو لګښتونه کم شوي دي او له امله یې په تنخواګانو کې کمی، د بې روزګاري لوړه کچه، د کوپون نشتوالی، په دولتي خدمتونو کې کمی او نور....ټول هغه څه رامینځته شوي

دي چې د بې وزلو خلکو ستونزې يې ځوبرابره کړې دي. د بانک او صندوق له مرستو او پوروونو څخه برخمن شوي هيوادونو کې د ماشوم مړينه او سو تغذی زياته شوې او په ښوونځيو کې د ماشومانو داخله کمه شوې ده. کره کتونکي دعوا لري چې ګواکي د نړيوال بانک او د پيسو نړيوال صندوق له خوا په پوراخيستونکو هيوادونو باندي لګيدونکي محدوديتونه د پرمختګ سره اړخ نه لګوي او د دې لامل کيږي چې بيوزلې خلک لا زيات له ستونزو سره لاس او ګرېوان شي

ډيری پرمختيايي مرسته کوونکی اداری په خپلو هڅو کې د بې روزګاری او فقر کمښت ته زياته پاملرنه کوي. دوی دا هم وايې چې په ځيني هيوادونو کې د خوارځواکی او فقر کچه لوړه شوې ده خو بيا هم بانک او صندوق دغو هيوادونو ته بريالي هيوادونه وايې او په خپلو لاسته راوړنو کې يې شمېري. د ملګرو ملتونو پراختيايي پروګرام(UNDP) په خپل ۱۹۹۰ کال راپور ( د انساني پرمختګ راپور) کې د انساني پرمختګ شاخص معرفي کړ او توصيه يې وکړه چې دا شاخص دي د پرمختګ د يوه بديل شاخص په توګه وکارول شي. د ملي عايد، منځنی عمر ، د ښوونې او روزنې کچې او د علمي څېړنوشاخصونه په ګډه د يوه هيواد د پرمختګ او د خلکو د هوساينې سم انځور وړاندي کولی شي او د دغو ټولو په اساس د بانک او صندوق د هڅو د برياليتوب څرنګوالی مالومېدلی شي. يونيسيف په خپله يوه څېړنه کې وموندله چې د دغه ډول محدوديتونو، لويو اقتصادي تګلارو او بنسټيزو بدلونو د ناسمو پايلو زيات اغيز به په ماشومانو باندي وي. څېړنه مني چې بنسټيز بدلونونه د يو هيواد د راتلونکې لپاره دي خو ټنيګار کوي چې دا ډول بدلونونه بايد په خورا احتياط رامينځته شي ترڅو په بيوزلو خلکو يې ناسم اغيز تر سترګو نشی.

## په دغو مرستو يوه کره کتنه

د نړيوال بانک او د پيسو نړيوال صندوق په تګلارو باندي د کره کتنو او ګوتنيونو شواهد شته، چې وايي دغه اداري په خپلو کړنو کې د بيوزلو خلکو له خوندې ساتلو څخه پاتې راغلي دي او د خپلو تګلارو په سمونه کې يې لازم ګام نه دی اوچت ګړی. کله نا کله دغه اداري د خپلو تګلارو او لګېدلو محدوديتونو څخه راولاړو شويو ستونزو ته د ځواب ويلو په موخه ځيني اضافي مرستي کوي خو په خپلو تګلارو کې اساسي بدلونونو ته يې زړه نه دی ښه کړی. په ۱۹۹۵ کال کې دنړی لويو اوو صنعتي هيوادونو په کاناډا کې غونډه وکړه. په دې غونډه کې د صندوق او بانک د کړنو د ښه کولو په موخه يو لړ وړانديزونه وشول. د دغو وړانديزونو موخه داوه چې په پرمختيايي او ورسته پاتې هيوادونو کې د بانک هڅو ته ښه والی و ببني او په هغوی باندي لګېدونکي محدوديتونه کم کاندي. په کار خو داوه چې دوی دې ته پام وکړي چې د بانک او صندوق د هڅو په پايله کې بايد د بې وزلې کورنيو ملاتړ وشي نه داچې هغوی له لا زياتو ستونزو سره مخامخ کړي؛ خو له بده مرغه چې دغه مهمه موضوع له پامه وغورځوله شوه. شنونکي په دې اند دي چې د بانک او صندوق انځور به د کره کتونکو ترمينځ تر هغه وخته تر تاوده بحث لاندی وی، ترڅو چې دا مهمه موضوع د بانک او صندوق له خوا مخامخ تر غورلاندي ونه نيوله شي. په افغانستان کی هم بهرنيو

مرستو د عمومو خلکو، په تیره بیا د کلیوالو په ژوند کی ډیر مثبت بدلون رانه وست. بیوزلی لا هم شته، دشتمنو او بیوزلو دژوند توپیر زیات شو، په ښارونو کی د عیاشی روحیه خوره شوه، د نورو لاس ته کتل او لټی عامه شوه، د غیر حکومتی موسساتو له خوا پیسی ډیری ولګول شوی، خو ټولنیزګټورتوب او مثمریت یی نه و. دغه موسسات چی ټول په بهرنیو مرستو چلیدل، له رسمی او قانونی دولت سره یو بل موازی دولت یا حکومت جوړ کړی و، هیواد په یوه مصرفی مملکت بدل او د لوکسو اجناسو واردیدل عام شوأ، سوداګری صرف د یوه دلالی تجارت بڼه نیولی، د پیسو ملاتړ ملی تولید نه بلکی د بهرنیو منابعو څخه د بانک د زیرمو لیلامول دی، د واقعی ثبات پرځای یو ډول کاذب ثبات تر سترګو کیږی، چی د بهرنیو منابعو په کمښت سره به نوسانات او د بحران نښی را څرګندی شی، د نادولتی موسساتویو شمیر قراردادیان او قراردادونه د حکومت ضد ځواکونو دپیاوړتیا سر چینی وګرځیدی، د ناحکومتی موسساتو له مصونیت او ملکیتونو ناوړه استفادی وشوی او داسی نور ځورونکی مثالونه وجود لری او کره کتوونکی وربااندی بحث کوی. په دی توګه د بهرنیو مرستو یوه لویه برخه تر کره کتنی لاندی ده، خو موږ به دلته د نوری نړی پر ځای اصلی تمرکز د افغانستان پر وضعیت او افغانستان سره په شویو مرستو باندی وکړو.

## افغانستان او بهرنی مرستی:

دا یواځی نه چی افغانستان سره وروسته تر ۲۰۰۱م. کال بهرنی مرستی پیل شوی، بلکی افغانستان مخکی تر کورنیو جګړو هم لکه د ګڼ شمیر نورو هیوادونو په شان یو شمیر مرستی له بیلابیلو هیوادونو څخه تر لاسه کړی دی، خو له ۲۰۰۱م. کال وروسته دغه هیواد سره د بهرنیو مرستو حجم زیاتوالی وموند. د بیلګی په توګه د میلادی پیړۍ له پنځوسمو کلونو وروسته افغانستان سره بهرنی مرستی زیاتی شوی، چی زموږ دوه- دری پینځه کلن پلانونه د هغو پرمټ تطبیق شول، خو هغه مهال په هیواد کی سیاسی وضعیت ثبات درلود افغانستان یو ناپییلی مثبت فعال سیاسی دریځ درلود او دناپیلیو هیوادنو یوفعال غړی و، په مجوع کی خپلواکی غوښتونکی غورځنګونه د ودی په حال کی و او دنړی توازن برابر و، یو خواته سوسیالیستی بلاک و اوبلی خواته غربی نړۍ وه چی دوی هر یوه په شکل د اشکالو د سیالی له مخی وروسته پاتی او پرمختیایی هیوادوسره مرستی کولی. خو وروسته د سړی جګړی له پای ته رسیدو څخه وضعیت ډیر بدل شو. د پرمختیایی ستراتیژی او اوسنی وضعیت په پرتله د افغانستان لومړنی پینځه کلن پلانونه ډیر ګټور او کامیاب وو. ددی موضوع د ښی توضیح په خاطر به د اوسنی وضعیت لنډ پس منظر له نظره تیر کړو:

د بن په کنفرانس (لومړی بن) کی او د توکیو په کنفرانس کی خاصتا د بشری وضعیت د ښه کیدو او دسیاسی پروسی د بشپړتیا لپاره زیاتی مرستی ومنل شوی، خو د ۱۳۸۴ ل. کال د کب په میاشت کی د لندن په کنفرانس کی د افغانستان د ملی پرمختیایی ستراتیژی Afghanistan national development strategy یا (ANDS) لپاره د مرستو یو لوی حجم ومنل شو، بیا د توکیو اود بن دوهم کنفرانس، همداسی پسی د پاریس ، لندن او لزبن

کنفرانسونو هم دافغانستان د پرمختیا په خاطر د مرستو ژمنی وکړی، په ۲۰۱۰م. کال کی په کابل کی یو بل کنفرانس دایر شو چی د بهرنیو مرستو یو مشروط کنفرانس و او مرستی یی دی پوری مشروط وبللی چی ریښتیا هم په ښه شکل د پرمختیا لپاره ولګول شی. دافغانستان دولت دا شرط کیښود چی د مرستو ډیره برخه باید د افغانستان دولت ته وسپارل شی، ځکه مخکی تر دی په سلو کی له اویا زیاته برخه مرستی اینجیو ګانو ته ورکول کیدی او ددولت له برنامو څخه بهر بی له کوم مسؤلیت څخه مصرف کیدی او کوم شفافیت یی نه درلود، له دی پرته د پروژو په تطبیق کی داخلی قراردادیانو د مسولیت پوره احساس نه کاو. دغه حقایق ورو، ورو د یو شمیر ارزیابیو او نظارت کولو په پایله کی څرګند او دولت ته پوره تجربه پیدا شوه، حال دا چی د هیواد د لومړنیوپینځه کلنو پلانونو د تطبیق پر مهال بهرنی مرستی او ګرانتونه ټول ددولت د برنامو له مخی تر لاسه او لګول کیدل. هغه وخت ډیر کار زیربنای برخو کی وشو. د کابل په همدی کنفرانس (۲۰۱۰م. کال)کی د لومړی ځل لپا ره دبهرنیو ځواکونو د وتلو او د امنیتی چارو د انتقال موضوع هم مطرح شوه. راسموسن د ناټو ملکی رییس ټینګار وکړ مرستی به ورروسته تردی هم د پرمختیا او هم ددفاعی ځواکونو روزنی ته ډیری شی. د کابل د کنفرانس یو توپیر له نورو کنفرانسونو سره داو، چی په هغه کی د عربی متحده اماراتو او دایران د بهرنیو چارړ وزیرانو هم د مرستو وعده وکړه. همدی کنفرانس کی د اداری فساد سره د مبارزی د سختولو ټینګار وشو، دغه تعهدات زیاتره زیربنایی برخو کی نه، بلکی نظامی چارو او دسیاسی پروسی په برخه کی وو. په دی لړ کی د هندوستان هیواد هم په یو شمیر مهمو پروژو کی مرستی ومنلی او د پاکستان اسلامی دولت دوست هیواد د سړکونو، په تیره بیا د تورخم ــــ کابل د سړک په جوړولو کی د مرستو وعده وکړه.
ددغو کنفرانسونو او مرستو په پایله کی له ۱۳۸۱ څخه تر ۱۳۸۷ پوری په تدریجی ډول سړی سر کالنی عاید له ۱۵۰ امریکایی ډالرو ۵۰۰ US $ ته اوچت شو( په منځنی توګه) او بهر ته د صادراتو ارزښت ۵۴۵ میلیونه دالرو ته اوچت شو چی په ۱۳۸۱ کال کی دغه صادرات په نشت حساب وو. واردات مو ۶۹۶ میلیون ډالرو پوری شول. په ۱۳۸۸ ل. کال کی د افغانستان صادرات ۴۰۳ میلیونو ډالرو پوری رسیدلی وو. په ۱۳۸۹ کی د صادراتو ارزښت ۳۶۵،۵ میلیون ډالره و او د وارداتو ارزښت ۳۴۰ میلیون ډالره و. ګڼ شمیر هغو ولایتونو ته د بریښنا مزی و غځیدل چی پخوا یی بریښنا نه لرله او آن دا چی ګڼ شمیر ولسوالی د بریښنا لرونکی شوی او د هیوا مهم حلقوی سړک هم بشپړ پوخ شو .
په پخوانیو کلونو کی هم بهرنیو مرستو زمونږ د ملی پروژو په اکمال کی مهم نقش درلود. دافغانستان لومړنیو پنځه کلونو پلانونو کی څه نا څه نیمایی مصارف له بهرنیو پورونو او بلاعوضه مرستو څخه پوره کیدل. د بیلګی په توګه: زمونږ لومړنی علمی پنځه کلن پلان چی په ۱۳۳۵ ل. کال کی جوړ او تطبیق یی پیل شو. او تر ۱۳۵۱ل. پوری مو دری پنځه کلن پلانو اجرا کړل، (په هغو کی د ګرانتونو ډیر ښه مثالونه تر سترګو کیږی )دغو پنځه کلنو انکشافی پلانونو کی د بهرنیو مرستو اندازی او د تمویل مدارک په لاندی توګه وو:
(۱)جدول: د افغانستان لومړی،دوهم، او دریيم انکشافی پلان کی د تمویل د منابعو سلنه

| گڼه | د تمویل مدارک | لومړنی پنځه کلن پرمختیایی پلان | دوهم پرمختیایی پلان | دریم پنځه کلن پرمختیایی پلان | کتنی |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | بهرنی انکشافی مرستی | ۶۳,۸ | ۸۳,۲ | ۷۰,۳ | |
| ۲ | ددولت دعدایدومدارک | ۳۶,۲ | ۷,۷ | ۱۷،۳ | |
| ۳ | خصوصی سکتور | ــــــ | ۰,۷ | ۴،۰ | |
| ۴ | مختلط سکتور | ــــــ | ۸,۸ | ۳،۷ | |
| ۵ | نور عواید | ــــــ | ۰۰ | ۰,۹ | |
| | مجموع | ۱۰۰ | ۱۰۰ | ۱۰۰ | |

ددغو پلانونو په نتیجه کی په ټول هیواد کی ډیری مهمی عمرانی اوانکشافی پروژی تطبیق او اجرا شـوی چی ګڼ شـمیر یی همدا اوس هم بیسـاری دی او زموږ د خلکو د اړتیاوو په پوره کولو کی یی ستر رول درلود.

په تیره نیمه پیړی کی، خصوصا د لومړنی اقتصادی پنځه کلن پلان(۱۳۳۵ل.)کال څخه را وروسـته افغانسـتان له بیلابیلو هیوادو مالی وسـایل او منابع تدارک کړی دی چی یوه برخه پورونه او یوه برخه یی بلاعوضــــه کمکونه وو. لومړی به د پنځه کلونو پلان په ترڅ کی ارقام وګورو بیا به له ۱۳۸۱ ل. راوروسته د مرستو اندازه وګورو.

۲):جدول: د افغانسـتان پرمختیا لپاره د پنځه کلونو پلانونو په تطبیق کی د بیلابیلو هیوادونو پورونه او مرستی (ارقام په میلیون ډالرو)

| گڼه | بهرنی هیوادونه او موسسات | په لومړنی پنځه کلن انکشافی پلان کی بهرنی مرستی | | په دوهم پنځه کلن پان کی انکشافی مرستی | | په دریيم پنځه کلن پلان کی انکشافی مرستی | | مجموع | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | کریدیت | گرانت | کریدیت | گرانت | کریدیت | گرانت | کریدیت | گرانت |
| ۱ | پخوانی شوروی اتحاد | 413.108 | 770.46 | 173.0 | 57.0 | 121.30 | 1.90 | 402.73 | 105.27 |
| ۲ | د امریکی متحده ایالات | 294.22 | 83.660 | 10.8 | 79.4 | 4.51 | 11.44 | 82.14 | 126.40 |
| ۳ | آلمان | - | 3.0 | 30.4 | 10 | 10.46 | 2.57 | 40.86 | 10.57 |
| ۴ | چکسلواکیا | 352.9 | - | 3.8 | - | - | - | 355.7 | - |
| ۵ | متفرقه | - | 11.721 | - | 5.0 | - | - | - | 16.721 |
| ۶ | چین | - | - | - | - | 13.17 | - | 13.17 | - |
| ۷ | ملګری ملتونه | - | - | - | - | - | 13.52 | - | 13.52 |

| ۸ | فرانسه | - | - | - | - | 0.34 | - | 0.34 |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۹ | هند | - | - | - | - | 0.40 | 0.40 | 0.40 | 0.40 |
| ۱۰ | نړیوال بانک | - | - | - | - | 0.35 | - | 0.35 | - |
| ۱۱ | آسیایی بانک | - | - | - | - | 0.50 | - | 0.50 | - |
| مجموع | | 459.184 | 759.124 | 0.208 | 4.134 | 88.149 | 69.44 | 38.56 4 | 79.29 7 |

له بده مرغه د کورنیو دیرش کلنو جګړو په ترڅ کی د پخوانیو پنځه کلنو پلانو او انکشـافی مرستو تولی پروژی (پرته له محدود شمیر) څخه یا له منځه ولاړی یا پوره زیانمنی شوی، نو ځکه کله چی وروسته تر ۱۳۸۴ل. کال څخه موقته اداره تشکیل شوه ، یوځل بیا د هیواد بیارغاونی او دیوشـمیر عمرانی پروژو په تطبیق پیل وشـو. په دی مرحله کی دافغانسـتان د بیارغاونی لپاره دمرستو په جلبولو کی ډیری هلی ځلی وشوی. په څو نړیوالو کنفرانسونو او له هغی جملی د کابل په کنفرانس کی چی په ۲۰۱۰ کی دایر شـو، د یو شـمیر هیوادونو تر ځنګ د یو شمیر نړیوالو موسسـاتو مرسـتو هم ونډه لرله. له همدغه کال څخه وروسته دامنیتی مســؤلیت د انتقال دروند کار هم په خپله افغانانو ته ورتر غاړی شـــو او مرســـته کوونکو و منله چی د خپلو مرسـتو ډیره برخه د نا دولتی موسـسـاتو ترڅنګ د افغانسـتان دولت ته وســپاری تر څو د مالیی وزارت له لوری د انکشـــافی بودجی په ترڅ کی په عام المنفه چارو او ملی انکشافی پروژو کی ولګول شی. همدغه ټکی د هغی اشتباه رفع کول و چی څو کاله یی دوام درلود. د ۲۰۱۰م.کال د کابل کنفرانس په حقیقت کی یو تحول و. دا تحول هم د امنیتی چارو برخه کی او هم د مرســـتو په لګولو کی په خپله افغانانو ته مسـولیت ور ترغاړی کړ. ضـرور ده چی دکابل کنفرانس څخه مخکی د مرسـتو جریان ته هم یو ځغلنده نظر وکړو.

د لته به تر ۱۳۷۸ل. کال پوری د یو شمیر نړیوالو موسساتو د مرستو اندازه او هغه پیسی چی دوی منلی وی او هغه یی چی په واقعی ډول ورکړی دی و ګورو.

*۵.جدول : د نړیوالو موســـاتو ژمنه شـوی او ورکړل شـویو پیسـو اندازه(ارقام په میلیون ډالرو)*

| پرله پسی کڼه | نړیوال سازمانونه او بنسټونه | لیکلی ژمنی | ریښتیانی ورکړی |
|---|---|---|---|
| ۱ | داروپا اتحادیه/کمیسیون | ۱،۹۷۳،۰۰ | ۱،۵۷۶،۰۰ |
| ۲ | نړیوال بانک | ۱،۸۸۳،۰۰ | ۱،۳۶۴،۰۰ |
| ۳ | د آسیايي پرمختیا بانک | ۱،۵۵۲،۰۰ | ۶۱۸،۰۰ |
| ۴ | دملګرو ملتونو مؤسسات | ۴۹۲،۰۰ | ۱۸۲،۰۰ |

| ۵ | د آغا خان پرمختیایی بنسټ | ۱۸۰،۰۰ | ۷۳،۰۰ |
|---|---|---|---|
| ۶ | اسلامی پرمختیایی بانک | ۶۱،۰۰ | ۵،۰۰ |
| مجموع | | ۶،۱۴۱،۰۰ | ۳،۸۱۸،۰۰ |

*سرچینه : د مالیې وزارت، د بودجې څانګه، ددونرانو داطلاعاتو بانک، ۱۳۸۷*

لکه څرنګه چې ښکاری یو شمیر موسساتو اوبانکونو هغومره پیسی نه دی ورکړی، لکه چې ژمنه یی کړی وه.

۱۷جدول: *له ۱۳۸۱ تر ۱۳۸۸ ل. کال پورې د لویو مرستندویو هیوادونو ژمنه شوی مرستی ( ارقام په میلیون ډالرو)*

| پرله پسی کڼه | لوی مرسته کوونکی هیوادونه | لیکلی ژمنی | ریښتیانی ورکړی |
|---|---|---|---|
| ۱ | دامریکا متحده آیالات | ۲۸،۳۶۶،۰۰ | ۲۳،۴۱۷،۰۰ |
| ۲ | بریتانیا | ۱،۸۱۰،۰۰ | ۱،۵۴۶،۰۰ |
| ۳ | جاپان | ۱،۳۷۸،۰۰ | ۹۹۰،۰۰ |
| ۴ | کاناډا | ۱،۲۰۶،۰۰ | ۸۹۸،۰۰ |
| ۵ | جرمني | ۱،۰۴۴،۰۰ | ۵۸۴،۰۰ |
| ۶ | هندوستان | ۱،۲۳۶،۰۰ | ۶۶۳،۰۰ |
| ۷ | ناروې | ۵۹۸،۰۰ | ۳۲۴،۰۰ |
| ۸ | هالنډ | ۹۰۲،۰۰ | ۷۱۵،۰۰ |
| ۹ | ایټالیا | ۴۲۴،۰۰ | ۲۶۸،۰۰ |
| ۱۰ | ایران | ۳۳۰،۰۰ | ۳۴۱،۰۰ |
| ۱۱ | ډنمارک | ۲۹۰،۰۰ | ۱۵۱،۰۰ |
| ۱۲ | سویډن | ۵۱۸،۰۰ | ۴۳۰،۰۰ |

| ۱۳ | استرالیا | ۲۰۲،۰۰ | ۱۳۰،۰۰ |
|---|---|---|---|
| مجموع عمـــــــــومي | | ۳۸،۴۰۴،۰۰ | ۳۰،۵۴۵،۰۰ |

*سرچینه : د مالیې وزارت، د مرستو دهمغږۍ څانګه ، ۱۳۸۷کال.*

پورتنی بیلګه ییز جدولونه دڅو کلونو په ترڅ کې د یو شــمیر هیوادونو د مرســتو جریان ښکاره کوي. د دغو مرستو ډیره برخه د لویو لارو جوړولو، دمعارف ودې، عامه روغتیا، دلوړوزده کړو، پرمختیا او دفاعی سکتور کې مصرف شوه. دغه مرستی هم د مشخصو هیوادونو اوهم د یو شمیر نړیوالوسازمانونو او لویو بانکونو له خوا شوی دی .

د ارقامو له مخې په ۱۳۸۱ل. کال کې په اصلی بودجه کې د بهرنیو مرستو اندازه په سلو کی ۸۲,۷ وه. د ۱۳۸۲ ل. کال په تولـه بودجه کې د بهرنیو مرستو سلنه ۹۱,۳ تمویل شوی وه او د ۱۳۸۳ل. کال په ټوله بودجه کی په ســـلو کی پنځوس یی له بهرنیو مرســـتو څخه تمویل شوی وه. د ۱۳۸۴ ل. کال د ټولی بودجې په سلو کی ۸۲,۲ له بهرنیو مرستو څخه تمویل شوه. د ۱۳۸۵ل. کال بودجه کی د بهرنیو مرستو ونډه په سلو کی ۷۷ وه او د ۱۳۸۶ کال په اصـلی بودجه کی د بهرنیو مرسـتو ونډه په سـلو کی ۷۲ اټکل شـوی وه. د ۱۳۸۷ل. کال په ټوله بودجه کی د بهرنیو مرستو ونډه په سلو کی ۶۶,۲ وه. همداسی هم تر ۱۳۹۲ل. کال پوری د انکشـافی بودجی لپاره بهرنیو مرستو څخه کار اخیستل کیده. په دی توګه لیدل کیږی چی بهرنیو مرستو د افغانستان ددولت د مالی تمویل مهمه وسیله وه . دغه مرستی په عمومی توګه له افغانسـتان سره په لاندی توګه د مرسـتو په نړیوالو بیلابیلو کنفرانسـونو کی ژمنه شوی وی :

- په ۲۰۰۶ م. کال کی د توکیو کنفرانس ۴,۵ میلیارده ډالره مرسته افغانستان سره و منله
- په ۲۰۰۴ م. کال کی د برلین کنفرانس ۸,۳ میلیارده مرسته ومنله
- په ۲۰۰۸ م. کال کی د لندن کنفرانس کی ۱۰۵ میلیارده ډالره او پاریس کنفرانس کی ۲۱,۴ میلیارده د مرستو وعده وشوه.
- په ۲۰۰۶ م. کال کی ددغو ټولو مرستو مجموعه ۲۳,۳ ملیارده ډالره شوه. د ۲۰۰۶ کال تر پای پوری افغانسـتان ته ۱۳ میلیارده ډالره راغلل. ددغو پیسـو په سلو کی ۲۲ یی ددولت له طریقه او په سـلو کی ۷۸ یی د نادولتی موســســاتو له خوا مصــرف او ولګول شــوی.البته ددولت د بودجی په واسطه اجرا شوی مرستی ډیری اغیزمنی ارزیابی کیږی، اما د نادولتی مؤسساتو د لګښت او د پروژو نتیجه او دهغو ګزارشات رسما ثبت نه دی او نه هم ددوام او کیفیت له پلوه ډیر مطلوب دی( البته ټولی تر یوه حکم لاندی نشــــی راتلای، ډیرو انجیوګانو او موسساتو خصوصا د ولایتی بیارغاونی ټیمونو په ډیر معقول لګښت سره ډیری ګټوری او مطمینی او منظمی پروژی تطبیق کړی چی د افغانســـتان ددولت او ټول ولس له خوا دمننی وړ دی).

- لـه ۲۰۰۲ م. کـال څخـه تر ۲۰۰۹ م. کـال پوری ټولی ۶۲,۳۵ میلیارده ډالره مرســـته افغانســتان ســره ژمنه شــوی ده چی له هغی جملی څخه ۳۵,۴۵ میلیارده ډالره په دغه موده کی افغانســـتان ته ورکړل شـــوه. د پورتنیو مرســـتو له جملی څخه د هغه زیاته برخه یی بلاعوض کمکونـه دی، لږ برخـه یی پورونـه دی. دغـه پورونـه پـه لانـدی ډول لـه بیلابیلو منابعو او په بیلابیلو شرطونو سره دی :

1. نړیوال بانک: بیلابیلو پروژو ته یی د ۶۱۱۹۱۱۲۰۳ ډالرو په اندازه پور ورکړی دی چی ددغه پور شرطونه دادی:
د پور تکتانه یی په سـلو کی ۰,۷۵ ژمنه شـوی یی په سـلو کی ۰,۳ او د ورکړی موده یی لس کلونه د پور ده پای ته رسیدو موده یی څلوېښت کلونه دی.
2. د آسیایی پرمختیا بانک: په بیلابیلو پروژو کی ټول ۷۸۷۲۹۰۰۰۲ ډالره پور ورکړی
شرایط: د پور تکتانه په سلو کی یو او ژمنه شوی تکتانه په سلو کی صفر، د بیاورکړی پیل لس کاله د پور د پای ته رسیدو معیاد څلوېښت کاله دی.
3. د اســـلامی پرمختیایی بانک: په دوو پروژو کی یی ټول ۲۹۷۸۳۶۰۰ ډالره پور ورکړی دی.
شرایط: د پور تکتانه په سلو کی صفر، د بیرته ورکولو مهلت یی اته کاله او د پور د پای ته رسیدلو معیاد دیرش کاله دی.
4. د سعودی پرمختیایی صندوق: د ټول پور اندازه ۵۱۹۹۸۷۰۰ ډالره
د پور شـرایط: تکتانه په سـلو کی صـفر، د بیا سـپارلو د مودی پیل اوه کاله، دپور د پای ته رسیدو مقیاد ۲۵ کاله.

له بلا عوضه کمکونو پرته د پورتنیو څلور ډوله ورکړل شویو پورونو څخه د هیواد د بیارغاونی بیلابیلو برخو کی لګول شوی دی. هغه پورونه چی په مجموع کی له ۱۳۸۱ څخه تر ۱۳۸۵ ل. پوری افغانستان ته ور کړی شوی دی. ټول یی ۱۴۸۰۹۸۹۰۵۵ ډالره کیدل.

پورتنی مثالونه په افغانستان کی د بهرنیو مرستو اندازه او طرز و، په تیره بیا د کابل په کنفرانس کی وروسته د افغانستان دولت ته د بهرنیو مرستو د لګولو په هکله پوره تجربه ترلاسه شوه. په دغه کنفرانس کی دی باندی ټینګار وشو چی ښه به وی د بهرنیو مرستو زیاته برخه په خپله ددولت له خوا تر لاسه او ولګول شی، یعنی وروسته تر ۲۰۱۰ م. څخه یی د بهرنیو مرستو په لګښت کی یو ریفورم ایجاد کړ. د موقتی اداری په رامنځته کیدو سره نه یوازی د بهرنیو مرستو د لګیدو په برخه کی بلکی په خپله ددولت دعایداتی منابعو په مصرف او راټولولو کی هم بیساری بی نظمی وه او ډیر مالی منابع حیف او میل کیدل، ګمرکی عواید مرکزی نه و او ټول عواید دمالیی وزارت ته نه راغونډیدل. وروسته تر یوشمیر اصلاحاتو، هغه بی نظمی چی له۱۳۸۱ څخه تر ۱۳۸۴ پوری موجوده وه ورو ورو له منځه یووړه او څه ناڅه عواید د مالیی وزارت ته په راټولیدو شول او د دولت شتمنی خوندی پاتی شوه. لاهم ډیر کارونه پاتی دی چی ددولت منظم او غیر منظم ټول عواید ښه سازماندهی شی. ددی علت دا و چی یو شمیر پخوانی قوماندانان چی په خپل سر یی ګمرکونه او مستوفیتونه ولکه کړی وو، د مرکز له خوا لری او متخصص کسان ورته د مرکز له خوا واستول شول، په دی توګه د چپاول ډیره برخه اصلاح شوه او مسلکی کسانو په کارونو کی

بهبود راوست. د ماليي وزارت په دی برخه کی په دی ورسوتيو ځو کلونو کی د پخوا په پرتله ښه کوټلی او بريالی ګامونه اوچت کړی دی او ددولت د عوايدو اندازه اوچته او ثبات څه ناڅه ټينګ شوی دی . دا حالت په خپله يوه غوره تجربه وه.
له نيکه مرغه افغانستان پراخه مالی سرچينی لری او ددولت د عوايدو لپاره مختلف منابع شته چی ورو ورو به يو يو تر استفادی لاندی راشی. يعنی افغانستان مجبور نه دی چی د اوږدو کلونو لپاره بهرنيو مرستو ته انتظار وباسی. د افغانستان ددولت مالی منظم عوايد لکه مالياتی عوايد، تشبثاتی عوايد او نور دی چی د هغه اټکل کول او راغونډول آسانه دی. ددی لپاره په کار ده چی اهل او مخلص متخصص کادرونه په ادراتو کی په کار وګومارل شی، دا تجربه ډيره د پام وړ ده. له بلی خوا داسی هيله شته چی بيلابيل ماليات ولرو، لکه : د جايدادونو، سرايونو، ځمکو، دمالداری سکتور، ونډی، د جوازونو اوحق الامتيازونو او داسی نورو له مدرکه. د مالی دورو او منابعو توپير په اقتصادی شرايطو کی د مثبت بدلون لامل کيږی. څومره چی ددولت منظم عوايد پياوړی شی يعنی له بالقوه امکاناتو استفاده کول زيات کړو، هومره به په بهرنيو مرستو زمونږ اتکا کمه شی. د ماليی دوزارت او د افغانستان دحکومت راتلونکی هڅی همدی ټکيو باندی متمرکزی دی .
ددولت غير منظم عوايد بهرنی مرستی، اعانی، د اړتيا پرمهال ددولتی ملکيتونو پلورل او ددولت پورونه دی. کله چی منظم عوايد ثبات ومومی او پياوړی شی، بيا نو د غير منظمو عوايدو ارزښت کميږی او اړتيا ورته نه ليدل کيږی. افغانستان او س همداسی يو ی مرحلی ته نزدی شوی دی.
دا يو واقعيت دی چی پرمختيايی هيوادونه بهرنيومرستو اوپورونو ته اړ دی. بهرنی پورونه ځينی بلاعوضه کمکونه او ځينی بيا د ربج لرونکی دلنډې او اوږدې مودې پورونه دی، چې پرمختيايی هيواد يې دبيرته ورکړو مسئول دی. دغه ډول پورونه د پروختيايی اړو هيوادونو دولتونه له پرمختللو هيوادو څخه ترلاسه کوي.دا چې نن ورځ پورونو او مرستو ته په څه نظر کتل کيږی، په دغه څپرکی کې ورباندې بحث کيږی.
له اويايمی لسيزی څخه مخکې د درېيمې نړۍ هېوادونو ته د مالي مرستو په توګه د بهرنيو مرســتو لويه برخه د رســمي مراجعو (دولتونو) له خوا ورکول کېدله، چې د دغو مرستو او پورونو هدف د پور اخيستونکي هېواد د ستونزو د حل په موخه لکه د خوراکي موادو کمښت، پوځي او امنيتي مرستې او همدارنګه د دغو هېوادونو د اقتصادي ودې لپاره وي. خو له 1970 ز کلونو وروسته دغه مرستې په هغه څه چې ويل کېده د هغه په نوم نه ورکول کېدلې، بلکې د پور ورکوونکو موسساتو لپاره يو مالي اقتصادي وته ييز فعاليت ګڼل کېده. په ځانګړي ډول د دغو پورونو په ورکړه کې د خصوصي موسساتو ونډه زياتېدله او طبيعي ده چې د دغو بانکونو فلسفي شتون د هغوی خصوصـي ګټې وي، چې په 1970 ز کال کې د درېيمې نړۍ هېوادونو ته د دغو بانکونو ونډه د پور په برخه کې 10% وه. په داسې حال کې چې دغه رقم په 180 کال کې 5,30% ته ورسېده، چې وروسته زياتوالd ومونده.
د دغو پورونو يوه بله ځانګړنه دا ده چې پور ورکوونکي د پور اخســـتونکي په انتخاب او د همدغو د پورونو د مصـــارفو په برخه کې غوراوي ټاکوونکي رول لوبوي. نو

پر دې اساس، پور ورکوونکي که خصوصي وي او که دولتي، خپلو سیاسي او اقتصادي ګټو ته په کتو ګټور اقدامات ترسره کوي. د مثال په توګه تقریباً ټول هغه پورونه چې په دې ورستیو لسیزو کې هغو هېوادونو ته ورکړل شوي دي چې د سیاسي او پوځي موقف پر اساس او یا هم د اقتصادي کړنو په چوکات کې د غربي هېوادونو په بلوک بندیو کې شامل وي. د دریېمې نړۍ هغه هېوادونه چې د غربي سیاسي ستراتیژیو او د پانګوالو پراختیایي موډلونو په منلو کې ژمن او پلي کوونکي وو، د دغو پورونو زیاته برخه یې خپله کړې وه.
که په 1975 - 1985 ز کلونو کې د بهرنیو پورونو له 50% څخه زیاته برخه د نړۍ 8 هېوادونو (ارجنټاین، برازیل، یونان، اسرائیل، جنوبي کوریا، پرتګال، یوګسلاویا، جنوبي أفریقا) ته ورکړل شوې ده، چې دغه لوری نیونه د نورو مالي موسساتو په پرتله د سوداګریزو بانکونو له خوا ډېر جدي تعقیب شوې ده.
دغه بانکونه چې یوازې د دغو پورونو سود ته پام کوي، هغه ډله هېوادونو ته پور ورکوي چې د دوی د اقتصـــــادي پراختیا کچه لوړه وي د پورونو بېرته ورګرځېدنه چې د ګټې نرخ یې هم لوړ دی په چټکۍ ســــره امکان لري، چې د دغو بانکونو ونډه په ورکړل شویو پورونو کې لاتیني امریکا ته 14%او په 1980 ز کال کې د ګټې نرخ 1,56% و.

## د دریېمې نړۍ د ورکړو حجم زیاتوالی او پر هغو مؤثر عوامل:

د دریېمې نړۍ د هېوادونو په خوله کې د پورونو د ترلاســــه کولو خوږوالی تر ډېرې مودې پاتې نه شــو. ځکه له 1980 ز کلونو څخه وروســته نه د پورونو له آســـانه شرایطو نه هم د ګټې نرخ له ټیټ قیمت څخه او نه هم د پورنو د بېرته ورکړې له امکاناتو څخه خوږوالي کډه وکړه او ســتونزمنې شــوې. ځکه د دغو هېوادونو پر اوږو د پورونو د بارونو دروندوالی او د دغو پورونو په شـــرایطو او تعهداتو کې د دغو هېوادونو ډوبېدل، د پور ورکوونکو مراجعو په سیاستونو کې د یو لړ بدلونو رامنځ ته کېدو لامل وګرځېدل، چې د دریېمې نړۍ یا پور اخیســـتونکو هېوادونو په زیان یې تغییر وموند. د پور ورکوونکو هېوادونو ګام اخیستل د ګټې د نرخ په تغییرولو کې او د امریکا په متحدو ایالاتو کې د پولي انقباضي سیاست پلي کول هغه اقدامات او سیاستونه وو، چې له 1915 ز کلونو وروسته د دریېمې نړۍ هېوادونو د ورکړو په زیاتوالي کې یې مهمه ونډه درلوده.

## د ګټې د نرخ تغییرېدل او د دریېمې نړۍ هېوادونو د ورکړو پر اندازې یې اغېزې:

تر 1975 ز کلونو پورې د پورونو د ګټې نرخ ثـابـت و او د دریېمې نړۍ د پورونو ډېره لږه فیصدي په متغیر نرخ محاسبه کېدله، خو له پورتنۍ نېټې نه وروسته د ګټې د متغیر نرخ پلي کولو د دغو هېوادونو په ترلاسه شویو پورونو کې په پراخه کچه زیاتوالی وموند چې لاندې جدول زمونږ د دې ادعا ښکارندوی دي.
له 1970 - 1980 ز کلونو پورې د دریېمې نړۍ هېوادونو په پورونو باندې د نرخونو متغیر حالات ښکاره کوي

«1- 7 جدول»

| هېوادونه | ټوله بهرنۍ ورکړه کال 1989(په میلیون ډالر) | له مجموعي برخي نه ترلاسه شویو پورونو نسبت د ګټي له متغیرو نرخونو سره | |
|---|---|---|---|
| - | - | 1970 | 1980 |
| ارجنټاین | 65,75 | 0 | 83,2 |
| برازیل | 111791 | 11,8 | 71 |
| مکسیکو | 95742 | 5,7 | 79,3 |
| مراکش | 20851 | 0 | 40,1 |
| اکواډور | 117111 | 0 | 64,3 |
| پیرو | 19875 | 0 | 32,2 |
| فلیپین | 28103 | 0 | 43 |
| نایجیریا | 32833 | 0,8 | 38,3 |

د دغه ډول خوځنده ګټې نرخ د درېیمي نړۍ د هېواونو د ورکړې د میزان په زیاتوالي باندې مهم رول درلود. ځکه د دغو پورونو مصارفو ته په بې ساري ډول لوړوالی ورکوي، ځکه په دغو کلونو کې د ګټې نرخ له 15% څخه 20% پورې لوړ شو، چې د دغه ډول نرخونو په تطبیق سره د پورتنیو اته هېوادونو د ورکړې اندازه 7,14 ملیارده ډالره او په 1982 ز کال کې 7,30 ملیارده ډالر محاسبه شوې وه. د دغه ډول ګټې د نرخونو په تطبیق سره د هغو تجارتي بانکونو بهره 1% زیاتوالی په کال 1980 ز او 1983 ز کال کې په ترتیب سره د 1 او 3 ملیارده ډالرو په حدودو کې په پورونو باندې ورزیاته شوه.

د درېيمي نړۍ د هېوادونو په ورکړې پورې اړوند د خدماتو او ګټې زياتوالى
«2- 7 شکل»

| کال | د خدماتو ماندازه | د ګټې نرخ | د ورکړې کلنۍ وده | د ورکړې استهلاک |
|---|---|---|---|---|
| 1975 | 2,26 | 9,5 | 19 | 16,7 |
| 1976 | 23,2 | 11,8 | 23 | 20,4 |
| 1977 | 41 | 14,3 | 27 | 26,7 |
| 1978 | 73,1 | 19,8 | 39 | 37,1 |
| 1979 | 73,3 | 26 | 29 | 47,6 |
| 1980 | 91,2 | 34,9 | 24 | 56,3 |
| 1981 | 111,7 | 49,5 | 22 | 65,2 |
| 1982 | 131,3 | - | 17,5 | - |

د امريکا د متحده ايالاتو پولي انقباضـي سياست او د هغه اغېزې د درېيمي نړۍ د ورکړو حجم په زياتوالي باندې د 1980 ز کلونو په پيل سـره د متحدو ايالاتونو سـياسـت پوهانو د دغه هېواد د اقتصادي بحران د مهار په موخه د شديدو پولي انقباضـي سياستونو په پلي کولو لاس پور کړی. دغه سـياسـت چې د نړۍ د پانګوال اقتصـاد په ټوله باندې خپل چټکې او شـديدې اغېزې پرې باسـي (د پوروونو د ګټې د نرخ د کريډيټ متغير پخواني سياست شدت سره) او حتی د هغه اړيکي له پخوا سره (پر ګټې د متغيرو نرخونو پلي کېدل پر هغو پورونو باندې چې د دغه سياست له اعلام څخه مخکې ترلاسه شوي وي) يو ځای په مجموع کې د درېيمي نړۍ او په خاص ډول د دغو هېوادونو د بهرنيو پورونو د ورکړې په اندازه باندې او د نړۍ په ټول اقتصاد باندې خپلې مهلکې اغېزې پرې باسي.

انقباضـي سياست د درېيمي نړۍ په نورو صـادراتي توکو او د خامو موادو لپاره د تقاضـاوو د کمېدو لامل وګرځېد. د 1981- 1982 ز کلونو په درشـل کې د درېيمي نړۍ د ټولو صـادراتو ارزښـت په سـلو کې 15 د تقاضـا د کموالي په اندازه، چې د دغو توکو د قېمتونو کموالی يې هم په خوا کې درلود محاسبه شوي وو. مثلاً په 1981- 1982 ز کلونو کې د زراعتي توکو قېمت په ترتيب سـره، په سـلو د 1215 او 5,10 په اندازې کموالی وموند، چې په دغه کموالي باندې د ډالرو نوسـاني قېمت تأثيرات هم بايد ورزيات شـي لکه چې د ترسـره شـوې محاسـبې له مخې د معدني او کرنيزو خامو موادو واقعي قېمتونه د 1981- 1982 ز. په متوسـط ډول د هغه دايمي کموالي دوه فيصـده و (د ډالر ثابت قېمت له مخې).

پوښتنې

۱.بهرنۍ مرستې تعريف کړئ.
۲.ولې پرمختيايي هيوادونه مرستو او پورونو ته اړ دي؟
۳.پرمختايي بانک په څه ډول پرمختيايي هيوادو سره مرسته کوي؟
۴.آيا افغانستان سره بهرنۍ مرستې شوي؟ که شوی يو څو مثالونه يې ووایاست.
۵.تيرو وختونو کی کومو هيوادو افغانستان سره مرستی او دپورنو ورکړی درلودې؟
۶.دمرسته کوونکو پرمختللو هيوادو موخی څه دی؟
۷.ځينی هيوادونه د نړيوال بانک د پورونو په هکله ولی مخالف نظر لری؟
۸.په افغانستان کی کمکونه او پورونه ښه مصرفيږی که نه؟ او ولی؟
۹.افغانستان بايد له پورونو څخه په کومو ځايونو کې کار واخلی؟
۱۰.له۲۰۰۱کال څخه وروسته افغانستان ته کوم کمکونه او پورونه راغلی او څومره وو؟

## اووم څپرکی

## دپرمختیایي هیوادونو پولی پالیسی او بهرنۍ پانګه اچونه

۱.وروسته پاتې هیوادو کې پولی سیاست(پالیسی)

پولی سیاست ( Monetary policy) د هر هیواد لپاره یوه غوره وسیله ده، په تیره بیا دپرمختیایی هیواو لپاره . دلته به لومړی پولی سیاست وپیژنو:
پولی سیاست ټول هغه تدابیر دی چې دهغو په واسطه مرکزی بانک دمالی او پولی وسیلو په کار اچولوسره دپرمختیایی هدفونو دترلاسه کولوپه لوری ګام اوچتوی.

پولي سیاست Monetary Policy د هر هېواد لپاره یوه غوره وسیله ده، په تېره بیا پرمختیایي هېوادو لپاره.
پولسي سیاست ټول هغه تدابیر دي چې د هغوی په واسطه مرکزي بانک د پیسو د کورنۍ او بهرني ارزښت د ساتنې په منظور د ملي اقتصاد په پروسه کې مداخله کوي، د اصلاح او بهبود لپاره دغه مداخله د پولي سیاست په نوم یادېږي.
له دې امله چې په پرمختیایي هېوادونو کې د خصوصي سکتور د لارښوونې، ملاتړ او رهبرۍ ترڅنګ د دولت تدابیرو ته هم شدیده اړتیا ده، نو ځکه باید د پولي سیاستونو په هکله دقت وشي.

### د پولي سیاست عمده وسایل

مرکزي بانکونه د خپلو اساسي دندو ( د پیسو نشرول او د ارزښت ساتل او دبانکي معاملاتې ستونزو اجرا کولو) د سرته رسولو لپاره د ځینو تدابیرو او وسایلو څخه استفاده کوي، چې له هغو څخه غوره وسایل په لاندې ډول دي:

۱. د بانکنوټونو د نشر امتیاز،
۲. د حد اقل سپما سیاست،
۳. د ازاد بازار سیاست،
٤. د مجدد تنزیل سیاست،
٥. د طلا او اسعارو سیاست،
٦. د کریډیټ سیاست،
۷. له پولي او مالي موسساتو شخصي غوښتنه (خواهش).

پورتني تدابیر، وسایل او پالیسیګانې د پرمختیایي هېوادونو او د پولي او مالي موسساتو د خصوصیاتو او ستونزو په پام کې نیولو سره تر کار لاندې نیول کېږي.

۱. د بانکنوټونو د نشر امتیاز
ددې لپاره چې دپرمختیایی هیواد د ملي اقتصاد په دوران کې د پیسو مقدار او د کالیو او خدماتو مقدار په متناسب ډول وساتل شي او د هغوی د غیر متناسبې ودې له کبله د پیسو ارزښت له خطر سره مخامخ نشي، نو مرکزي بانکونو ته قانوني صلاحیت ورکول کېږي، چې د بانکنوټونو د نشر امتیاز په خپل انحصار کې وساتي.
مرکزي بانکونه مجبور دي، چې یوازې هغه بانکنوټونه چاپ او دوران کې واچوي، چې په کومه اندازه په ملي اقتصاد کې دمجموعي عرضي دوران ته ضرور وي او که کله ناکله مرکزي بانکونه د ځینو عواملو په اساس دې ته مجبورېږي، چې د مجموعي عرضې په تناسب ډېر کم بانکنوټونه نشر کړي، نو د پیسو کورنی او بهرنی ارزښت د یو شمېر ستونزو سره مخامخ کېږي، چې په دې اساس د اجناسو په بازار کې د انفلاسیون او دیفلاسیون نښې ځرګندېږي، په داسې یو حالت کې مرکزي بانکونه صلاحیت لري، چې یو شمېر نورو پولي تدابیرو څخه د انفلاسیون او دیفلاسیون د مخنیوي لپاره استفاده وکړي.

۲. د حد اقل سپما سیاست
د یو ملي اقتصاد په بانکي سیستم کې ټول معاملاتي بانکونه قانوناً دې ته مجبور دي، چې د ټولو هغو پیسو څخه چې د خلکو یا موسسو لخوا د سپما یا اماناتو په شکل په دې بانکونو کې ساتل کېږي، یوه معینه اندازه فیصدي د امانت په توګه پرته د کوم مفاد څخه په مرکزي بانک کې وساتي. د حد ا قل سپما د اندازې فیصدي تعینول د هر مملکت بانکي سیستم او اقتصادي وضعیت پورې ارتباط لري، خو په هر صورت مرکزي بانکونه د دې صلاحیت لري، چې د خپل پولي سیاست دعملي کولو لپاره د حد اقل سپما د فیصدی اندازې په صورت کې وخت په وخت بدلون راولي، مثلاً د انفلاسیون حالت کې کله چې مرکزي بانکونه دې ته مجبور شي چې د حد اقل سپما څخه په استفادې یو انقباضي سیاست عملي کړي، نو په دې صورت کې ضرور ده، چې د حد اقل سپما فیصدي د مرکزي بانک له خوا لوړه شي، چې په دې صورت کې یوه اندازه پېشکي د معاملاتي بانکونو د استفادې څخه وځي او په مرکزي بانک کې ذخیره کېږي، چې د دې سره سم مرکزي بانکونه کولی شي د معاملاتي بانکونو په کریډټي قوت کې کموالی راولي.
برعکس د دیفلاسیون په حالت کې مرکزي بانک د انبساطي سیاست څخه په استفادې د حد اقل سپما فیصدي اندازه کموي، په نتیجه کې یې په معاملاتي بانکونو کې د استفادې وړ پیسو مقدار زیاتېږي. دلته د معاملاتي بانکونو په کریډیټي قوت کې زیاتوالی راځي، په دې توګه د ملي اقتصاد په دوران کې د پیسو د دوران زیاتوالی واقع کېږي.

۳. د ازاد بازار سیاست
د ازاد بازار سیاست هغه تدابیر دي، چې مرکزي بانکونه یې د پیسو د مقدار د کنترول په منظور په مالي بازارونو کې د بیه لرونکو اسنادو د پلورلو او پېرېدلو په واسطه عملی کوي. کله چې د پیسو اندازه د ملي اقتصاد په دوران کې نسبت مجموعي عرضې ته زیاته شي او مرکزي بانک دې ته اړ شي، چې د انفلاسیوني ستونزو څخه د مخنیوي په منظور یوه اندازه

پیسې د ملي اقتصاد له دوران څخه وباسي، نو دولت په مالي بازارونو کې د حقیقي بیه لرونکو اسنادو (د خزانې اسناد، دولتي قرضې او نورو...) په پلورلو لاس پورې کوي، چې په نتیجه کې هغه مقدار پیسې چې مرکزي بانک یې د بیه لرونکو اسنادو د پلورلو په مقابل کې ترلاسه کوي، د ملي اقتصاد دوران څخه وځي او دا عمل د پیسو په حجم تاثیر کوی ، یعنې په دې توګه د پیسو حجم د ملي اقتصاد په دوران کې کمیږي او بله دا چې د بیه لرونکو اسنادو ربح نسبت بانکي ربح ته لوړه وي، نو هغو خلکو چې پیسې د سپما په توګه معاملاتي بانکونو کې ایښې دي، کوښش کوي چې خپلې پیسې د بانکونو څخه وباسي او د هغې په عوض هغه په ارزښت لرونکو اسنادو تبدیلې کړي، چې په دې توګه معاملاتي بانکونو کې د سپما مقدار کمیږي، چې هغه بیا د معاملاتي بانکونو په کریډیټي قوت باندې منفي اغېزې لري.
برعکس په دیفلاسیوني حالت کې مرکزي بانکونه کولای شي په مالي بازارونو کې د ارزښت لرونکو اسنادو په پېرودلو سره یوه اندازه نوې پیسې د ملي اقتصاد په دوران کې واچوي. د مرکزي بانک لخوا په مالي بازارونو کې د ارزښت لرونکو اسنادو رانیول، په ملي اقتصاد کې د پیسو حجم زیاتوي.
دارنګه چې کله مرکزي بانک اسناد رانیسي، نو د اسنادو د ارزش په اندازه پیسې مستقیما په ملي اقتصاد کې زیاتیږي او بله دا چې هغه پیسې چې د مرکزي بانک څخه د اسنادو پلورونکي ترلاسه کوي، څه ناڅه د اماناتو په توګه په معاملاتي بانکونو کې یې ږدي، چې په دې توګه د معاملاتي بانکونو کریډیټي طاقت زیاتیږي، چې د دې کریډیټي طاقت زیاتوالی د پیسو مقدار د ملي اقتصاد په دوران کې زیاتوي، چې دا بیا په خپل وار سره په ملي اقتصاد کې د انفلاسیون د ستونزو سبب ګرځي، د ازاد بازار سیاست د پولي سیاست په چوکاټ کې د انفلاسیوني ستونزو ضد مجادلې لپاره تر ټولو غوره لاره ده، چې مرکزي بانک په بشپړه توګه د دولت تر نفوذ لاندې نه وي او په ازاده توګه وکولای شي د پیسو د کنترول لپاره د ارزښت لرونکو اسنادو پلور او پېرودل ترسره کړي، ځکه کله داسې هم کېدای شي چې دا سیاست د انفلاسیوني ستونزو لپاره بې نتیجې او حتی منفي تاثیرات ولري.
مثلاً د دولت د جاري لګښتونو لپاره د اسنادو نشر د مرکزي بانک لخوا په مالي بازارونو کې چې په دې ډول د مرکزي بانک لخوا د ارزښتناکو اسنادو پلورل د انفلاسیون ضد تاثیرات نه لري.

٤. د مجدد تنزیل سیاست
ټول هغه تدابیر چې د مرکزي بانک د ارزښتناکو اسنادو د تنزیل د بیو د ټاکنې لپاره نیول کیږي، د مجدد تنزیل د سیاست په نوم یادیږي.
کله ناکله چې معاملاتي بانکونه د یو شمېر لنډمهاله ستونزو سره مخامخ کیږي او ځینې ارزښت لرونکي اسناد لکه (ویکسل) چې د هغو له خوا د مخه تنزیل شوي وي، مرکزي بانک ته انتقالوي او هلته مجدد تنزیل مومي، د ارزښتناکه اسنادو د تنزیل بیه په مرکزي بانکونو کې (1-1.5%) پورې نسبت معاملاتي بانکونو ته جګیږي، د دې ارزښت لرونکو

اسنادو د مجدد تنزيل په واسطه نه يوازې د معاملاتي بانكونو لنډ مهاله ستونزې رفع كيږي، بلكې د مركزي بانک او معاملاتي بانكونو ترمنځ د تنزيل د بيې د توپير په نتيجه كې يوه اندازه مفاد هم ورځخه ترلاسه كيږي.
لكه څرنګه چې په معاملاتي بانكونو كې د ارزښت لرونكو اسنادو د تنزيل بيه د هغوی د مجدد تنزيل د بيې په نسبت ټيټه وي، نو له دې كبله مركزي بانكونه كولای شي چې معاملاتي بانكونو كې د تنزيل بيې د خپل تاثير لاندې راولي او په دې توګه انقباضي او يا انبساطي سياست عمل كړي.
په يو مالي اقتصاد كې په انفلاسيوني حالت كې مركزي بانكونه كولای شي، د مجدد تنزيل د بيې په اوچتولو سره يو انقباضي پولي سياست عملي كړي، ځكه كله چې په مركزي بانكونو كې د مجدد تنزيل بيه اوچتيږي، نو د هغې سره سم په معاملاتي بانكونو كې د ارزښت لرونكو اسنادو د تنزيل بيې پورته ځي او په مالي بازارونو كې د اوږد مهاله پورونو د ربح بيه لوړيږي، په پايله كې په پولي او مالي بازارونو كې د كريډيټ د اخيستو لپاره تقاضا كميږي، چې په دې توګه د كريډيټ د پراختيا مخه نيول كيږي او د پيسو حجم په ملي اقتصاد كې كميږي. همدارنګه د پورته حالت برعكس، په ديفلاسيونی وضعيت كې مركزي بانكونه د مجدد تنزيل د بيو د ټيټوالي په واسطه يو انبساطي سياست عملي كوي، چې د هغه په واسطه په معاملاتي بانكونو كې د تنزيل بيه او مالي بازارونو كې د اوږدمهاله پور د ربح بيه كميږي او د كريډيټ اخيستلو لپاره تقاضا زياتيږي او كريډيټ پراختيا مومي، په نتيجه كې د ملي اقتصاد په دوران كې د پيسو حجم زياتيږي.
سره د دې چې د مجدد تنزيل سياست د انفلاسيون او ديفلاسيون د ستونزو د مخنيوي لپاره د يوې غوره او موثرې وسيلې په حيث شميرل كيږي، خو كله كله په ملي اقتصاد كې ځينې نورې ستونزې هم رامنځته كوي، د مثال په ډول په يو مناسب اقتصادي حالت كې د مركزي بانک لخوا د مجدد تنزيل بيه پورته ځي، نو د هغې په نتيجه كې د ربح بيه هم صعود كوي، نو بهرنۍ پانګه اچوونكي دې ته تشويق كيږي، چې د هېواد په دننه كې سرمايه ګذاري وكړي، په داسې يو حالت كې د خارجي اسعارو د تبادلې پواسطه كېدای شي، چې د پيسو مقدار د ملي اقتصاد په دوران كې نور هم وده وكړي.
همدارنګه د مجدد تنزيل د بيې په ښكته كېدو سره د ربح نرخ هم كميږي، له يوې خوا د خارجي پانګه اچونو مخنيوی كيږي او له بل پلوه د پانګې د تېښتې لپاره زمينه برابريږي، ددې په عوض چې د ملي اقتصاد په دوران كې د پيسو اندازه زياته شي، برعكس نتيجه وركوي.

٥. د طلا او اسعارو سياست
ټول هغه تدابير چې د پيسو د ارزش د ساتلو لپاره د مركزي بانک لخوا د طلا يا اسعارو د پلورلو يا پيرودلو په هكله نيول كيږي، د طلا او اسعارو د سياستونو په نامه يادېږي.
مركزي بانک د قانون له مخې مجبور دی، چې يوه اندازه طلا او اسعار د ذخيرې په توګه ځان سره ولري، مركزي بانک كولای شي چې د طلا او اسعارو په پلورلو او پيرودلو سره د پيسو اندازه د ملي اقتصاد په دوران كې تر تاثير لاندې راولي، د مركزي بانک لخوا د طلا

یا اسعارو پلورل د پیسو دوران کې انقباضي او د هغو پېرودل د پیسو دوران باندې انبساطي تاثیرات لري.
د طلا او اسعارو سیاست په هغه صورت کې چې د پیسو خارجي ارزش د بیلانس د نه برابرتیا له پلوه خپل ثبات ونشي ساتلای (د تجارت د بیلانس کسر) په دې صورت کې پولي سیاست د یوې موثرې وسیلې په حیث بلل کېږي، اما په دې شرط چې د تجارت د بیلانس دغه ډول کسر موقتي وي، یعنې په دوامداره توګه نه وي (تقریباً د یو څخه تر یو نیم کال) که چېرې د تجارت د بیلانس دغه کسر په دوامداره ډول وي، نو د طلا او اسعارو سیاست د انفلاسیون او دیفلاسیون د ستونزو په مقابل کې مناسبه نتیجه نه ورکوي، کله چې په ملي اقتصاد کې د پیسو د مقدار وده، د ځینو عواملو له پلوه (د بیلانس کسر) نسبت د ملي اقتصاد د مجموعي عرضې د ودې نه زیات وي.
له همدې کبله په ملي اقتصاد کې ځینې انفلاسیوني علایم لیدل کېږي، نو مرکزي بانکونه کولای شي، خپل انقباضي سیاست د طلا او اسعارو د پلورلو پواسطه عملي کړي.
لکه څرنګه چې مو مخکې وویل هر مرکزي بانک یوه اندازه طلا یا اسعار د زېرمې په توګه له ځان سره ساتي او کله چې د انقباضي سیاست عملي کولو ته ضرورت پیدا شي، نو د طلا یا اسعارو د زېرمې یوه اندازه په پولي او مالي بازارونو کې پلوري، د اسعارو پېرودونکي اکثراً معاملاتي بانکونه یا واردوونکي تجاران دي، هغه پیسې چې د طلا او اسعارو د پلورلو په مقابل کې مرکزي بانک ترلاسه کوي، په حقیقت کې د ملي اقتصاد د دوران څخه وځي او په دې توګه د پیسو مقدار د ملي اقتصاد په دوران کې کمېږي.
برعکس که د پیسو مقدار د ملي اقتصاد په دوران کې نسبت د ملي اقتصاد ضرورت ته کم وي او ملي اقتصاد د یو شمېر دیفلاسیوني ستونزو سره مخامخ وي، نو په دې صورت کې مرکزي بانک کولای شي، چې د پیسو په بازار کې د طلا یا اسعارو د پېرودلو له لارې خپل انبساطي سیاست عملي کړي، کله چې مرکزي بانک د پیسو بازار کې یوه اندازه طلا او یا خارجي اسعار رانیسي، نو کومه اندازه پیسې چې د هغو د رانیولو لپاره د مرکزي بانک لخوا تادیه کېږي، په حقیقت کې د پیسو اندازه د ملي اقتصاد په دوران کې زیاتېږي، له دې کبله کېدای شي چې د انفلاسیوني ستونزو د مخنیوي لپاره ګټور تمام شي.

۶. د کریډیټ سیاست
ټول هغه تدابیر چې د هغو په واسطه مرکزي بانک کوښښ کوي چې په ملي اقتصاد کې د کریډیټونو مقدار د اقتصادي اهدافو سره سم تر خپل کنترول لاندې راولي، د کریډیټي سیاست په نوم یادېږي.
کله چې په ملي اقتصاد کې د کریډیټونو حجم توسعه مومي نو د پانګې اچول زیاتېږي او دې سره سم د تولیداتو په مقدار کې زیاتوالی راځي او د استخدام په حالت کې هم ښه والی لیدل کېږي، پانګه اچوونکي د کریډیټ د اسانتیاوو له پلوه په پراختیایي پانګې اچونې پیل کوي، چې دا بیا په خپل وار سره اضافي تولید رامنځته کوي، اضافي تولید د کار اضافي قوې ته ضرورت لري، چې په دې توګه ملي اقتصاد کې د تولیداتو مقدار ورو ورو وده کوي او د

هغه سره سم د استخدام سطح لوړیږي، خو له بلې خوا نه له دې امله چې کریډیټونه توسعه مومي، نو کېدای شي د قیمتونو په سطح کې اوچتوالی راشي.
برعکس کله چې د کریډیټونو اندازه په ملي اقتصاد کې د ځینو ستونزو له پلوه کمېږي، نو له دې سره سم د ملي اقتصاد په مجموعي تقاضا کې کموالی واقع کیږي، د اجناسو او خدماتو په قیمت کې کموالی راځي او د تصدیو خاوندان دې ته مجبوریږي، چې د خپلو تولیداتو مقدار د بازار د تقاضا سره سم عیار کړي، د دې حالت دوام، په ملي اقتصاد کې تصدیګانې دې ته مجبوروي، چې د خپلې مالي پیاوړتیا لپاره خپل یو شمېر کارګران لرې (تنقیص)کړي، په دې ترتیب د کریدیتونو مقدار اګر چې له یوې خوا په ملي اقتصاد کې د قیمتونو د کمېدو سبب ګرځي، خو له بلې خوا د پانګې اچونې د مقدار د محدودیت په نتیجه کې ملي اقتصاد کې د بیکارانو شمېر زیاتیږي. دا عامل د دې سبب کیږي، چې د کریډیټونو د لوړې ربح په اثر د هغو اندازه ملي اقتصاد کې محدوده او د مجموعي تقاضا د جګوالي څخه مخنیوی وشي.

## انسباطي سیاست:

انسباطي سیاست، هغه سیاست دی، چې د هغه په واسطه مرکزي بانک د ملي اقتصاد له دوران څخه پیسې راوباسي او ذخیره کوي یې، یانې د پیسو عرضه کنترولوي.

## انقباضي سیاست:

هغه سیاست دی، چې د هغه په واسطه مرکزي بانک د ملي اقتصاد په دوران کې پیسې خپروي (د پیسو عرضه زیاتوي).

Moralsuasion۷. خواهش
مرکزي بانک د سیاست یوه وسیله ده، چې په اقتصاد کې د پولي عرضې په انبساط او انقباض باندې ډېر کم تاثیر اچوي، عبارت د (Moralsuasion) یا خواهش څخه دی، په دې برخه کې یوازې د مرکزي بانک رئیس یا معاون نظر په شخصي روابطو چې د نورو بانکونو یا رئیسانو سره یې لري، د هغوی څخه خواهش کوي، چې مثلاً د پولي عرضې د تحدید (محدودوالی) په عوض د احتیاط څخه کار واخلي.
د پولي سیاستونو وسایل چې پورته توضیح شول، د پولي سیاستونو مهمترین وسایل دي. ددې وسایلو ترڅنګه مرکزي بانک نور وسایل، چې د قانون له مخې تثبیت شوي دي او د قرضې حجم په یوه اقتصادي ټولنه کې د څارنې لاندې نیسي، په اختیار کې لري. مثلاً د بانک د سیالیت د درجې ټاکل، د قرضې د حجم سهمیه بندي چې د تجارتي بانکونو لخوا ورکول کیږي او داسې نور.

## پولي سيستم او پولي سياستونه

د يو مملکت پولي سيستم د مالي موسساتو په شمول يو له بل سره په ارتباط کې وي، چې له دغو موسساتو څخه تنظيم يا (Organized) شوي وي او ځيني له هغو څخه ناتنظيم شوي يا (Informal) وي، پرته له يو څو ګوتو په شمار هېوادونو لکه (لېبريا، پانامه او ځيني افريقايي ممالک چې د ډالر يا فرانک پورې وابسته دی).
د يو مملکت د پولي سيستم په هسته يا راس کې مرکزي بانک قرار لري، چې دپيسو د عرضې د کنترول او تنظيم شويو پولي موسساتو د عمومي نظارت مسوول وي، علاوه له دې څخه تجارتي بانکونه د نورو هېوادونو په شان د وروسته پاتې هېوادونو د پولي سيستم يوه مهمه برخه تشکيلوي، دغه بانکونه امانتونه قبلوي او لنډ مهاله پورونه عرضه کوي او په عين وخت کې ځيني نور خدمات خپلو مشتريانو ته عرضه کوي، علاوه له دې څخه په دغو هېوادونو کې په پولي سيستم کې د پس انداز بانکونه، د بيمې کمپنۍ او په وروسته پاتې هېوادونو کې د جګو عايداتو لرونکي صندوقونه او د سرمايه ګذارۍ بانکونه او نور وجود لري.
د ماډرن او تنظيم شوي پولي موسساتو په خوا کې غير تنظيم شوي (Informal) پولي موسسات هم وجود لري، لکه د ګروۍ دوکانونه (Pawn Shops) پولي محلي دلالان، صرافان، فاميلي قرضونه، کريډيټي کوپراتيفونه او نور چې په وروسته پاتې هېوادونو کې د کم عايد لرونکي غير تنظيم شوي، پولي موسساتو سکتور د اولي سکتور سره سخت رقابت لري، پولي سياستونه ټول هغه تدابير په بر کې نيسي، چې رشد، بهره ګيري يا ګټه اخيستنه، کفايت او د پولي سيستم تنوع متاثره کوي.
په عين حال کې پولي سياستونه په وروسته پاتې هېوادونو کې په مختلفو اقتصادي سکتورونو کې د پس انداز تشويق او د سرمايوي او پولي بازار انکشاف او کريډيټ په بر کې نيسي.

## د پرمختيايي هېوادو په اقتصادي پرمختګ کې
## د پولي تمويل د رول په مورد کې نظريات

وروسته د دويم نړيوال جنګ څخه د پولي سياست مهم هدف د اقتصادي استقرار (ثبات) رامنځته کول و او د انکشاف تشويق په وروسته پاتې هېوادونو کې د هغوی هدف نه و، ځکه د دويم نړيوال جنګ د شروع څخه تر پايه پورې يوه تيوريکي عنعنه په اقتصاد کې دا وه،چې د پيسو عرضه کې تغيير صرف قيمتونو او مزدونو ته تغيير ورکوي او پر توليد او استخدام بې اثره دی، ددې باوجود چې لوی جهاني بحران ثابته کړې وه، چې پيسې او دپيسو دنشر اندازه کولای شي چې استخدام او توليد متاثره کوي.
په وروسته پاتې هېوادونو کې د پولي سياست په مورد کې شک او تردد زيات دی، ځکه د تنظيم شوي سکتور په خوا کې يو عنعنوي سکتور وجود لري، چې په هغه کې تراوسه پورې

د پولي کېدو درجه (Monetarization Ratio) (د ټولو اجناسو او خدماتو نسبت چې په ملي اقتصاد کې په پول خرايداري کېږي) لږ وي، مثلاً په (۱۹۰۷م.) کال کې په امريکا کې فقط درې ربع د معاملاتو په پيسو باندي ترسره کېده او يوه ربع د هغو د پولي اقتصاد د تاثير څخه بهر وه، د اسيايي او لاتيني امريکا د ممالکو د پولي کېدو درجه لوړه ده، شايد دا نسبت (-90 95%) پورې ورسېږي.
له دې پلوه فکر کېده چې په هغو ممالکو کې چې د (15-25%) پورې اقتصادي معاملات د پولي اقتصاد څخه بهر صورت نيسي، د پولي سياستونو موثريت پکې کم وي.
علاوه پر دې د جنګ څخه وروسته دوره کې تر (۱۹۷۰م.) کال پورې د تبادلې ثابت نرخ په هر ځای کې حاکم و او فکر کېده چې سرمايه کاملاً متحرکه ده او د تبادلې ثابت نرخ په موجوديت سره البته په کوچنيو هېوادونو کې پولي سياست کم موثره دی.
په اويايمه لسيزه کې د تبادلې د ثابت نرخ پرځای ددې نرخ نور ډولونه مروج شول، همدارنګه د وروسته پاتې هېوادونو د پولي کېدو درجه هم اوچته شوه او بالاخره ثابته شوه چې د سرمايې کلاملاً متحرک يووالی درست نه دی، ددې شرايطو لاندې د اويايمې لسيزې په لومړيو کې داسې مفکوره پيدا شوه، چې که چېرې پولي سياستونه درست تطبيق شي، تر يو حده پورې د اقتصادي ثبات سره مرسته کوي، له بله پلوه اقتصاد پوهان عقيده لري، چې پولي سياست په طويل المدت اقتصادي انکشاف باندې اثر نه لري، اما وروستيو تحقيقاتو ثابته کړې، چې پولي سياستونه په پس اندازونو او بيرته دوران کې زيات اثرات لري، په دې توګه کولای شي، رشد او اقتصادي انکشاف متاثره کړي، سطحي پولي سياست (Shallow) د اقتصادي رشد مغاير (تغيروونکي) دي، بېکاري، د عايد توزيع او د ملي اقتصاد استقلال په منفي ډول متاثره کوي.
له بله پلوه عميق پولي سياست (Deep) يا ازاد اقتصادي رشد، استخدام د عايد مناسبه توزيع او د يو مملکت د اقتصادي استقلال لپاره د مثبت اثر لرونکي پېژندل کېږي، دا هم بايد ووايو چې د پرمختيايي هېوادونو کليوالي نفوس د زياتو برخو د ژوند فوق العاده ټيټه سويه يوازې په دې راز توليدي قوتونو نور وروسته پاتې والی نشي ثابت کولی، بلکې يوازې هغه وخت دغه کار کېدای شي، چې د يو ډېر مهم فکتور يانې په کليوالي سيمو کې د مارکېټ مناسبات هم په پام کې ونيول شي، د زيات شمېر پرمختيايي هېوادونو لويو برخو کې په اقتصاد کې د ځمکوالو تسلط ډېر ليدل کيږی، نوځکه بزګران بی اختياره دی.
په افغانستان کې له ۱۹۹۰م. کال وروسته تنظيمي جګړې، بيا د طالبانو عنعنوي حکومتداري او ورپسې له ۲۰۰۱م. کال راوروسته د يو فاسد او بې کفايته نظام ټينګيدلو د هېواد اقتصاد ته کلکه ضربه ورکړه، په دغه کلونو کې اقتصادي زېربينا له منځه لاړه، تجربه لرونکي ماهرين او کادرونه يا له هېواده ووتل، يا له کار و ايستل شول، د نا امنۍ له کبله پانګه له هېواد څخه ووته او توليدي موسسات لوټ شول، له ۲۰۱۷م. کال وروسته سياسي اصلاحاتو ته ملا وتړل شوه، خو ډېر بريالي نه و.

## په پرمختیایی هېوادونو کې د پولي سیاستونو د نه تطبیق علتونه

په وروسته پاتې هېوادونو کې د پولي سیاستونو نه تطبیق مختلف عوامل او علتونه لري، چې ځیني مهم يې په لاندې ډول دي:

۱. د پولي موسساتو عدم انکشاف

د وروسته پاتې هېوادونو پولي موسسات په خپله ددې هېواد د طبعي انکشاف او اجتماعي او اقتصادي موسساتو زیږېدنه نه ده، بلکې په تقلید توګه د پرمختللو هېوادونو څخه منځته راوړل شوی دی، نو ځکه ویلی شو، چې هغه موسساتي او اجتماعي شرایط چې د پولي سیاستونو تطبیق ممکنوي، تراوسه نه دی رامنځته شوی.

مثلاً زیاترو هېوادونو کې په پراخه عنعنوي سکتور کې پیسې په مکمله توګه په جریان کې نه دي لوېدلي او د هغوی د پولي کېدو درجه د (100%) څخه کمه ده، نو په دې خاطر د اقتصاد یوه لویه برخه د پولي سیاستونو د تاثیر څخه بهر پاتې ده.

په زیاترو دغو هېوادونو کې د اسهامو بازار او د تبادلې پروسې دومره انکشاف نه دی کړی، په دې ترتیب د غربي هیوادونو د پولي سیاست په شان دوی د یوې مهمې وسیلې په توګه (د ازاد بازار عملیات د پیسو کنترولولو لپاره) ورڅخه استفاده نه شي کولای.

په اقتصادونو کې پولي دوه سکتورونه وجود لري.

الف) غربي بانکداري.

ب ) بل پراخه اطراف سکتور، چې په هغه کې قرضونه، په عنعنوي شکل په مختلفو سودونو سره په کار اچول کېږي، په دې خاطر اکثره خلک بانکونو ته مراجعه نه کوي.

۲. د صنایعو او بازارونو عدم انکشاف

په دې هېوادونو کې د سرمایګذارۍ او کریډیټ بازار په خپله ابتدایي مرحله کې وي، اکثره هغه صنایع چې په دې هېوادونو کې تاسیس شوي، د تصدیو شعبات يې څو ملیتیزه دي یا د څو هېوادونو د خلکو په واسطه جوړ شوي او د هغو د تمویل کارونه، دپرمختیایی هیواد د داخلي بازارونو سره کم ارتباط لري او د خارجي کریډیټي بازارونو سره زیات مرتبط دي.

دغو هېوادونو کې کوچنۍ تصدۍ خپله سرمایه په عنعنوي شکل لاسته راوړي او ډېر کم وخت د کریډیټ بازارونو ته مراجعه کوي.

د حکومت لخوا د صنایعو سره کومک د سیاسي ملحوظاتو په بنا صورت نیسي، نو په دې خاطر لنډ مهاله پروژو ته ترجیح ورکول کېږي او خلک دتولید په برخه کی دسرمایګذاری په پرتله د غیر منقولو جایدادونو له اخیستو سره زیاته علاقه لري.

۳. لنډ مهاله او ژر سرته رسېدونکو پروژو ته لومړیتوب ورکول

که چېرې یوه حکومتي قرضه ترلاسه شي، ددې پرځای چې هغه په لویه او طویل المدته پروژو کې په کار واچوي، دې ته ترجیح ورکوي چې هغه قرضه په بله لاره (د تجارت او ژر ثمره پروژو) کبیه کار واچوي او ځیني که ممکن شي، هغه سرمایه د ملک څخه بهر وباسي، د لنډ مهاله پروژو ته ترجبح ورکول په غیر د سرمایې د کموالي او د باکفایته کریډیټي

بازار نشتوالي څخه نور عوامل هم لري، چې يو له هغو څخه ديموګرافيکی عامل دی، په دې مانا چون د عمر وسطي اوږدوالی په دې هېوادونو کې اوچت نه دی، فلهذا دغه وخت پرمختللو هېوادونو کې يوه لنډه موده، خو په پرمختيايي کې اوږده موده په بر کې نيسي، مثلاً درې يا څلور کاله ددې هېوادونو د خلکو لپاره يوه اوږده موده ده، نو په دې خاطر هغوی په واقعي طويل المدته پروژو کې سرمايه ګذاري سره کمه علاقمندي لري، ددې هېوادونو ملي اقتصاد ټيټ سرانه عايد لري او اکثره يې نفوس معمولاً محدود دی، نو په دې ترتيب د اجناسو بازارونه او اثر لرونکي پولي بازارونه کوچني او غير عادي کامل دي.

٤. په حکومتونو د اطمنان نه موجوديت

په وروسته پاتې هېوادونو کې د سياسي ثبات نه موجوديت د دې سبب شوی دی، چې خلک په پيسو او حکومت ډېر کم اعتبار ولري، دغه د اعتماد نه موجوديت د پولي سياستونو تطبيق په مشکل کې اچوي، نو په دې لحاظ خلک د اينده په مورد کې د پيسو د خريد قوه د ائين او مديون ته مواجه خطرات، د پس انداز سره د علاقې نه موجوديت او يا د هغه د امکان نه موجوديت په پولي ساحه کې بې اعتمادي رامنځته کوي.

٥. د اقتصادي وضعيت او حکومتي پلانونو نه وضاحت

په وروسته پاتې هېوادونو کې د تادياتو د بيلانس د وضعيت پېش بيني ممکنه نه ده، اضطراري بودجه يا وجود نه لري او يا هم نه تهيه کېږي، د بين الملي قرضونو اندازه او د هغه د قسطونو تاديه د حکومتي مقاماتو لپاره واضح نه ده، ترڅو د هغې له مخې اسعارو ته ضرورت او د تبادلې بااثره نرخ برابر شي، د پوهې او تعليم او تربيې سطحه ناچيزه ده او خارجي بازار ته د صادروونکو معلومات کم وي، زياتره وخت داسې کېږي، چې د يو هېواد د صادراتو قيمت مخ په نزول وي، صادروونکي د کمې تجربې له وجې اجناس صادروي او په دې وخت کې جهاني مساعد بازارونه وخت نه په استفادې سره خپل ګودامونه ډکوي.

د تجارتي کريډيټ نه کمه استفاده کېږي او زياتره وخت د انفلاسيون او د پيسو د تبادلې د نرخ موجوديت د صادراتو لپاره د صادروونکو مفاد له منځه وړي، وارداتي تعرفې او ماليات پرته له دې چې په هغو کې پېش بيني يا جر و بحث صورت ونيسي، تغيير خوري.

حکومتي څو کلن اقتصادي پلانونه نامعلوم دي او سرته نه رسېږي، خلک او حتی ځيني وخت خپله حکومتونه هغه نشي اټکل کولای او همدارنګه اکثره تقليدي سرمايه ګذاری په عنعنوي سکتور کې صورت نيسي.

٦. د کارګري اتحاديو ضعف

د بېکاری د موجوديت له امله د کارګرو د اتحاديو منځته راتګ چې په خپله حکومت د هغوی د منځته راتلو لپاره زمينه برابره کړې، د يو سياسي رکن په حيث په حکومت کې رامنځته کېږي. دغه اتحاديې معمولاً مزدونه زيات اوچت تعينوي، چې په دې ترتيب د سرمايګذاری لپاره د مفاد او سرمايګذاری امکان کموي، په اکثرو دغو هېوادونو کې د تعليم يافته بېکارانو

شمېر مخ په زياتېدو وي، چې جبراً په کم مولده کارونو کې مصروف وي، د متصديانو د مفاد کمېدل د کارګري اتحاديو د فشار په واسطه د سرمايه ګذارۍ انګېزه له منځه وړي.
نظر په پورته مشکلاتو دا د تعجب ځای نه دی، چې د پولي سياستونو د عادي وسايلو د تطبيق امکانات (د ازاد بازار سياست، تنزيل او قانوني ذخيرې) په دې هېوادونو کې ډېرې محدودې وي.
يا په بل عبارت د قيمت لرونکو اسنادو لپاره د يو مناسب بازار نه شتون، د سياسي عواملو او يا هم د عدم اطمينان او په عادي حالت کې د بانکونو د قانوني حالت څخه ذخايرو اضافه کېدلو له وجې د تجارتي بانکونو لخوا د مرکزي بانک څخه د قرضې د اخيستلو دلچسپي او يا د امکان نه موجوديت، ددې وسايلو موفق استعمال په وروسته پاتې ممالکو کې کموي.

## په وروسته پاتې هېوادونو کې د پولي سياستونو دندې

پولي سياستونه د يو اقتصاد د کار د بهتر شکل لپاره څلور اساسي خدمتونه وړاندې کوي:
١. د اقتصاد لپاره د تبادلې يوه وسيله، چې په عين وخت کې د ارزش د ذخيرې او حسابي واحد په حثي کار کوي.
٢. د پس اندازونو د جمع کولو (تجمع) او په توليد کې د په کار اچولو لپاره لاره خلاصوي.
٣. په اقتصاد کې د انتقال او د خطر توزيع يوه وسيله برابرېږي.
٤. او بالاخره يوه سلسله وسايل د اقتصادي استقرار لپاره زموږ په لاس کې راکوي.

## په وروسته پاتې هېوادونو کې پيسې او د پسو عرضه

دطبيعي (جنس په جنس) اقتصاد په له منځه تلوسره، په ټولو هېوادونو کې له هغې جملې په پرمختيايي هېواد کې په نغده پيسو تبادله شروع شوه، د جنس په جنس د تبادلې (Barter) ځای د پيسو په واسطه تبادلې ونيو او فلزي پيسې رامنځته او بيا وروسته کاغذي پيسې چې کامله پشتوانه يې درلوده منځته راغلي، د اقتصادونو په پېشرفت سره بالاخره بانکنوټ رواج شو، چې د هغې پشتوانه فقط د دولت (قانون)حکم و، مرکزي بانکونه يا وزارت ماليه د بانکنوټونو نشر کول په غاړه واخيستل او هغې ته قانوني چلند ورکړل شو، ددې سره د اقتصادونو د پولي کېدو درجې هم افزايش وموند او عايد او روايتي امانات منځته راغلل، چې خلکو خپل معاملات د هغو په واسطه اجرا کول يا په بل عبارت خلکو په خپلو حسابي بانکونو کې چک ترلاسه کول پيل کړل او ورو ورو د پولي معاملاتو نور شکلونه کشف شول، په دې جريان کې دا مسئله پرمختيايي او وروسته پاتې هېوادونو ته هم زياته د اهميت وړ ده، ځکه چې د سيالو پولي وسايلو انکشاف د جنسي دارايي ګانو څخه د مالي دارايي ګانو ته يوه داسې دوره ده، چې دهغې له مخې د يو مملکت د اقتصادي انکشاف درجه اندازه کېږي.
د مالي دارايي ګانو تکامل په هر مملکت کې مختلفه موده په بر کې نيسي، اما واضح ده چې د عايد په زياتوالي سره پولي فعاليتونه زياتېږي، مثلاً په کم عايد لرونکو هېوادونو کې M1

یا نغدې پیسې او د عنعنوي اماناتو جمع شاید 10% غیر خالص اجتماعي تولید وي، خو دا نسبت په هغه هېوادونو کې چې د لوړ عاید لرونکي وي، 25% څخه تر 30% د GDP (داخلي ناخالص تولید) ته رسېږي.
د عاید په زیاتېدو سره د یوې ټیټې سطحې څخه د سیالو دارایي ګانو افزایش (زیاتېدل) د معیاري اماناتو د افزایش سبب ګرځي. یانې M2 نسبت GDP ته زیاتېږي یا M2 نسبت غیر خالص داخلي تولید ته زیاتېږي.
دغه نسبت په ۱۹۷۰م. کال کې په ډېرو غریبو وروسته پاتې هېوادونو کې د 10-15% پورې نه و، په داسې حال کې چې پر مختلفو صنعتي هېوادونو کې د 70% څخه زیات و.
په دې رابطه وروسته پاتې هېوادونو ته لازمي ده، چې یو شمېر سیاستونه ایجاد کړي، مثلاً دوی باید د خپلو نشر شویو پیسو لپاره ثابته پشتوانه وساتي او د دې اجازه ورنه کړي چې د دوی د داخلي پیسو ارزش سقوط وکړي. سیاله دارایي د پیسو د رشد او انکشاف یوازېنۍ منبع نه ده، بلکې د اقتصادونو په پولي کېدو سره او د عاید په افزایش کې د پولي وسایلو نور انواع هم اضافه کېدای شي، مثلاً بهادار اسناد او داسې نور د کم سیالیت لرونکي دارایي ځای نیسي، چې باید وروسته پاتې هېوادونه ورته متوجه واوسي.

## په وروسته پاتې هېوادونو کې د پولي وسیلو محدودیتونه

لکه څنګه مو چې ولیدل په وروسته پاتې ممالکو کې غیر تنظیم شوي او یا غیر متشکله مالي موسسې په پراخه کچه خورې دي، اکثره تجارتي بانکونه په دې هېوادونو کې د خارجي بانکونو شعبات دي، له دې پلوه د ځو ملیته تصدیګانو په شان د هغوی زیاته پاملرنه خپلې مورنۍ تصدۍ ته چې په خارج کې ده، نظر د وروسته پاتې هېوادونو اقتصاد ته ده.
د دې ممالکو د حکومت قدرت د پیسو د عرضې په تنظیم او قانون ګذارۍ کې د هغو د ازاد اقتصادونو له کبله او دا چې اسعاري عاید منابع د هغوی یو متموج (نوساني) منبع ده، محدوده اوسي، علاوه له دې څخه په دې هېوادونو کې تجارتي بانکونه خپل فعالیتونه او قرضوي معاملات د یو تعداد محدودو لویو او درمیانه تصدي ګانو سره چې د سیاسي قدرت لرونکي دي او د لویو صنایعو په سکتور کې کار کول ترسره کوي، واړه دهقانان، د لاسي صنایعو او خدماتو مالکان باید د بل ځای څخه د ضرورت وړ قرضې په لاس راوړي، هغوی د محلي دلالانو څخه په لوړ سود سره قرضه اخلي.
په دې ترتیب د دې ممالکو مالي سیستم (پولي سیستم) لکه څنګه چې مخکې ذکر شو، دوګانګي یا (Dual) جوړښت لری، چې یو سکتور وړوکی او وروسته پاتې، خو بل یې پېشرفته، زیات تنظیم شوي او مودرن دی او د هغې په څنګ کې د خورو او کوچنیو متصدیانو یو پراخه سکتور وجود لري، چې هغوی د ضرورت وړ قرضونه د داخلي دلالانو څخه په لاس راوړي، دغه خاصیت یوه جنبه د وروسته پاتې اقتصادونو د ممیزاتو څخه ده، چې د تنظیم

شویو بانکونو او پولي وسیلو اوخدماتو په هغوی کې فقط د پیشه لرونکو د یو محدود طبیعت پورې منحصر دی.
علاوه له دې څخه یو بل فرق ددې مالي موسساتو او د هغوی د کار د طریقې په اړوند په وروسته پاتې هېوادونو کې د پرمختللو هېوادونو په پرتله دا دی، چې په پولي سیاستونو کې وروسته پاتې هېوادونه یو درست او مستقیم ارتباط د سود د ټیټ نرخ د سرمایګذارۍ د زیاتوالي او تولید په منځ کې وجود نه لري، بلکې ددې برخلاف وروسته پاتې هېوادونو کې تدریجاً سرمایه ګذارۍ د سود د نرخ د تغییراتو سره حساسیت لري، لکه په یو تعداد وروسته پاتې هېوادونو کې لکه برازیل ارجنتاین کې چې دوی د صنایعو د رشد په موخه یو دیفلاسیوني سیاست تعقیب کړی و، چنانچه په دې ممالکو کې د پیسو پراختیاوي روش د دولتي بودجې د متداوم کسر سره د حقیقي سود د یو منفي نرخ د ایجاد سبب شو (انفلاسیون نسبت نظر د سود مروجه نرخ ته زیات و) ددې باوجود چې دا سیاست د لوړو ګټو، د سرمایه ګذارۍ د پراختیا او د صنعتي تولیداتو د رشد سبب شو او د پولي زیاتوالي د پېشرفته ممالکو د حالت خلاف د سود د نرخ د کمېدو باعث نه شو. له بله پلوه حتی ددې شرایطو لاندې (منفي حقیقي سود) د یو معین حد څخه وروسته ونشو کولای تولید زیات کړي، شاید د هغې علت د عرضې محدودیت یا (عدم ارتجاعیت عرضه) اوسي. علاوتاً دغه د عرضې محدودیتونه شاید د منجمینټ عدم کفایت، د مابیني اجناسو قلت یا په صنعتي سکتور کې د صنایعو ترمنځ متقابله روابطو له وجې و. په هر صورت د عرضې محدودیتونه دا مانا لري، چې په یو وخت کې باید د تقاضا افزایش په عرضه کې د مناسب افزایش سره یوځای شي، برخلاف اضافه تقاضا (د سرمایوي اجناسو په برخه کې) د هغوی قیمتونه پورته وړي او انفلاسیون نور هم شدید کوي.
د لاتیني امریکا په ځینو ممالکو کې دغه رنګه انفلاسیون چې د ساختماني انفلاسیون په نوم یادېږي، یو مزمن پرابلم و او د مصارفو په جنبه کې واضح مشاهده کېده. چون د انفلاسیون په پیدایش سره کارګران د دې لپاره چې د ژوند سطح یې برابره وي، د لوړ مزد غوښتونکي وي، خپل مزدونه د قیمتونو د لوړوالي پورې تړي، د تولید مصارف او بالاخره قیمتونه پورته شي، په دې حالت کې یو خاص قسم د مزد فنر قیمت منځ ته راځي.

# په پولي سیاستونو کې د وروسته پاتې هېوادونو
# د مرکزي بانکونو رول

د مرکزي بانکونو رول په اقتصاد کې رواښانه دی چې، د پیسو د نشر صلاحیت او کنترول او د اسعارو اداره، د حکومتي بانک، تجارتي بانکونو د پولي موسساتو د طرزالعمل لپاره قانون ګذاري او د پولي او کریدیتي سیاست(پالیسی) عملی کوونکي دي، لکه څنګه چې پرمختللي هیوادونه د یو منظم اقتصادي سیستم، پوخ مالي سیستم، کار پېژندونکو او ماهرو مامورینو درلودونکي وي، نو له همدې امله د مرکزي بانک د وظایفو سرته رسول ممکن کوي.

په پرمختیایی هېوادونو کې هم مرکزي بانک همدا وظایف لري ، خو دلته په دغوهېوادونو کې یوه بله وضع حاکمه وي، ددې ترڅنګ د پیسو ارزش د ساتلو، د بیو استقرار ته توجه، دولتي مولدو تصدیو کې دولتي سرمایګذاري، عامه خدماتو کې مصارف تعیینول هم د دې وظایفو له جملې څخه دي، چې باید پام ورته وساتل شي، لکه څنګه چې مخکې ذکر شول، چې پرمختللو هېوادونو کې د یو منظم اقتصادي سیستم، پوخ مالي سیستم، کار پېژندونکي او ماهر مامورین دنده ترسره کوي، نو دمرکزي بانک د وظایفو سرته رسول دا ممکنه کوي چې بانکي امورات موفق او ښه ترسره شي.

مګر د پرمختیایی هېوادونو وضعیت داسې دی، چې ممکن د دغو هېواد په اقتصاد کې صادرات د اجناسو محدود انواع او د وارداتو نامحدود انواع مسلط وي او ممکن دا چې د صادراتو قیمتونه (د هغوی د تجارت نسبت) د دې هېوادونو د کنترول څخه بهر وي، د هغوی مالي سیستم شاید یو ابتدایي سیستم وي، چې په هغې کې لاندې خصوصیات لیدل کېږي.

الف) اکثره تجارتي بانکونه، چې د داخلي صنایعو د صادراتو تمویل ترسره کوي، په خارجي ملکیت کې وي.

ب) یو لوی او فاسد پولي سکتور (دلالان) چې غیر تنظیم یافته سکتور کنترولوي موجود دي.

ج) یو مرکزي بانک چې ممکن د زاړه(پخوانی)استعمار میراث به وي وجود لري، چې فقط د پولي هیئت (Currency Board) وظیفه سرته رسوي.

د) بې تجربي بانکي او مالي مامورینو موجودیت چې د داخلي او بین المللي تمویل کار د طرز سره بلدیت او اشنایي نه لري.

هـ) حکومت د پرمختللو هېوادونو برخلاف مرکزي بانک او د هغې فعالیتونه کنترول او حکومتی پالیسی ، د اقتصادي کفایت په پرتله زیات اهمیت لري.

د پورتنیو شرایطو لاندې مهمه خبره، چې مرکزي بانک کولای شي، هغه په پام کې ولري هغه دا ده چې د خارجي او داخلي خلکو اعتماد د پولي سیستم په مورد کې جلب شي او متوجه شي چې مالي سیستم حتی المقدور بې طرفه نه شي پاتې کیدای.

دغو حکومتونو ته لازمه ده، چې کوچني متشبثین او خصوصي سرمایه ګذاري تشویق، حمایه او رهنمایي کړي، مګر عامه اجتماعي خدمات او زېربنایي تاسیسات، طبیعي شتمنی او لوی سکتورونه د خپل کنترول لاندې وساتي او په هغوی کې دولتي سرمایګذاري صورت ونیسي.

ځيني اقتصاد پوهان لکه Charles Cillyns څلور مرحلې په دې برخه کې په ګوته کړي دي:
١. په اول قدم کې د يو مرکزي انتقالي بانک د پولي بورډ او مرکزي بانک ترمنځ تشکيل شي، چې د حکومت د سختي اداري لاندې وي (چې د هغوی پولي فعاليتونه مراقبت کوي) البته قانوناً انتخابي پولي فعاليتونه (Discretionary) ددې نوي تشکيل په واسطه مراقبت کيږي، چې مثالونه يې د انګلستان پخواني مستعمرې لکه بوتان، مالديپ او نور دي.
٢. يو مرکزي بانک (Supernational) مافوق ملي دی، د څو کوچنيو هېوادونو د مرکزي بانک په حيث چې د يوې پولي اتحاديې لرونکی او يا هم ګمرکي اتحاديه وي، ايجاد شي، چې درې مثاله د دې رقم اتحاديې عبارت دي له د غربي افريقې پولي اتحاديه (France Zone) ، د مرکزي افريقا پولي ساحه، چې فرانک پورې تړلې او کارابين شرقي پولي اداره ده.
٣. ممکن يوه پولي ناحيه (Currency Enclave) چې مشتمل وي د پرمختيايی هېوادونو مرکزي بانک د او د لوی ترين مملکت د هغو تجارتي معاملې له نظره منځته راغلي وي، ددې ناحيې تشکيل شايد تر يوه حده په وروسته پاتې هېوادو کې پولي ثبات منځته راوړي، مګر د قوي مملکت مسلط اثر د معاملې طرف ته شايد دا ناحيه د مستعمرې په شکل واوړي. يو مثال يې د لېبريا او پانامه دی چې دواړه په ډالر سره تړلي و، خو کومه قانوني حمايوي موافقې د هغوی او د امريکا د حکومت ترمنځ وجود نه درلود.
٤. يو مرکزي بانک په ازاد اقتصاد کې چې د اجناسو جريانونو او سرمايې د ملي اقتصاد د فعاليت مهمترينه برخه جوړه کړې او پولي محيط د اجناسو د بازارونو او بين المللي پول د تاثير لاندې قرار لري، بالاخره د مرکزي بانک وظيفه اصلاً ايجاد، تنظيم او د يو باثبات پولي سيستم تشويق دی. د دې ډول مرکزي بانکونو مثالونه کولای شو، د سينګاپور، هانګ کانګ، کوېټ، سعودي عربستان او متحده عرب امارات په شان هېوادونو کې پيدا کړو.
پولي سيستم د مجموعي اقتصادي سيستم اساسي جز دی، نو د وروسته پاتې هېوادونو لپاره کليدي حيثيت لري. د دغه اقتصادي جز لپاره ځانګړي سياستونه غوره کېدای شي. مګر مهمه مسئله دا ده، چې پرمختيايی هېوادونه بايد عنعنوي او ابتدايي طرز او اداره ترک او پر عوض يې معاصره او نوې اداره او مديريت رواج کړي، له هغې جملې د پولي مسايلو په هکله هم بايد بدلون ته توجه وشي، چې دا کار د لايقو ، پوهو، باتجربه، مسلکي او تحصيل يافته کدرونو په واسطه ترسره کېدای شي.

۲. په پرمختیايي هېوادو کې پانګه اچونه

د پانګې اچونې مفهوم :
د اهدافو له پلوه پانګه اچونه، د ملي اقتصاد او تصدي اقتصاد له نظره په بېل بېل ډول تعریف شوې، البته په نهايي تحلیل کې عین مفهوم لري:
الف) پانګه اچونه د ملي(لوی) اقتصاد له نظره: په معلوم وخت کې د ثروت او حاصل زیاتوالي ده. یا د پانګې داسې په کار اچول دي چې په ملي ذخایرو کې د زیاتوالي سبب وګرځي.
ب) د تصدي (کوچني) اقتصاد له نظره: هره تصدي د خپل تولیدي فعالیت د پیل، پراختیا او یا د هغه د بدلون په منظور پولي پانګې ته اړتیا لري، نو د پولي پانګې تبادله په مادي، غیر مادي او مالي شتمنیو باندې چې د هغوی څخه په مستقیم ډول یا غیر مستقیم ډول د تصدي په تولیدي فعالیت کې استفاده وشي، د پانګې اچونې په نوم یادېږي.

د پانګې اچونې ډولونه
د حقوقي موقف له پلوه
الف) دولتي پانګه اچونه: کله چې د تولیدي فعالیت لپاره پولي پانګه د دولتي ارګان لخوا اماده شوې وي.
ب) شخصي پانګه اچونه: کله چې پولي پانګه د خصوصي سکتور یا اشخاصو لخوا په کار اچول شوي وي.

د شتمنیو د ځانګړتیاوو له پلوه
الف) مادي پانګه اچونه: کله چې پولي پانګه د مادي شتمنیو لکه تعمیر، تجهیزات، موادو لپاره په کار اچول شوي وي، مادي پانګه اچونه بلل کېږي.
ب) غیر مادي پانګه اچونه: کله چې پولي پانګه د غیر مادي شیانو لکه حق الاختراع علمي تحقیق، تعلیم و تربیه، اشتهاراتو او دې ته ورته موخولپاره په کار اچول شوي وي.
ج) مالي پانګه اچونه: که پولي پانګه په مالي شتمنیو لکه د قرضې سند، د سهم (ونډو) داسنادو او نورو د خریدارۍ لپاره په کار اچول شوي وي.

د تولیدي ځانګړتیاوو له پلوه
الف) بنسټیزه پانګه اچونه: هغه پولي پانګه چې د تصدۍ د لومړني جوړښت په منظور کارول شوې وي، بنسټیزه پانګه اچونه بلل کېږيز
ب) پراختیايي پانګونه: د تصدي د راتلونکی تولیدي فعالیت د پراختیا لپاره صورت نیسي.
ج) تجدیدي پانګونه: د استهلاک شوي دستګاه د تعویض او د بیا فعالولو لپاره کارول کېږي.

د بازار د تقاضا له پلوه
الف) القايي پانگونه: هغه پانګه اچونه ده، چې په بازار کې د اضافي تقاضا څخه رامنځته کېږي.
ب) خپلواکه پانګه: هغه چې په بازار کې د تقاضا په مقدار پورې نه وي مربوطه، لکه تعویضي پانګه اچونه یا د خطر قبلوونکې نوې ساحه کې پانګه اچونه، چې ددې تمه کېږي، چې تقاضا به په خپله رامنځته کړي.

په عملي ډګر کې د پانګې اچونې ډولونه
په عملي ډګر کې پانګه اچونه په کورنۍ او بهرنۍ پانګه اچونو وېشل شوې ده:
کورنۍ پانګه اچونه
دا هغه پانګه اچونه ده، چې پانګه وال يې د يو هېواد په دننه کې په کار اچوي او بېلابېل ډولونه لري، چې مخکې مو ترې يادونه وکړه، په دې ځای کې موږ يوازې بهرنۍ پانګه اچونه تر څېړنې لاندې نیسو.

## بهرنۍ پانګه اچونه

هر هغه پانګه اچونه چې د خصوصي شرکتونو يا افرادو لخوا د خپل هېواد څخه دباندې ترسره شي، خو د دولت د هدفونو په چوکاټ کې وي، بهرنۍ پانګه اچونه بلل کېږي. يا هغه پانګه اچونه چې له بهر څخه د يو بهرني شخص لخوا د يوه هېواد په دننه د يو خاص مرام لپاره په کار اچول کېږي او بهرني پانګه اچوونکي هغه بهرني اشخاص دي، چې بهرنۍ پانګه يې د يو هېواد په دننه کې په کار اچولي وي.

د بهرنۍ پانګې اچونې ډولونه
بهرنۍ پانګه اچونه په عمومي ډول په دوه برخو وېشل شوې ده:
۱. خصوصي بهرنۍ پانګه اچونه.
۲. رسمي يا عمومي بهرنۍ پانګه اچونه.

۱. خصوصي بهرنۍ پانګه اچونه
هر ډول فزيکي يا مالي شتمني چې د افرادو يا خصوصي شرکتونو په واسطه يو بل ملک ته انتقال شي، د خصوصي بهرنۍ پانګه اچونې په نوم يادېږي.
خصوصي بهرنۍ پانګه اچونه په دوو برخو وېشل کېږي:
- مستقيمه بهرنۍ پانګه اچونه.
- غير مستقيمه بهرنۍ پانګه اچونه.
- مستقيمه بهرنۍ پانګه اچونه: له هغې پانګې اچونې څخه عبارت ده، چې بهرنۍ پانګه اچوونکي په مستقيم ډول په کوربه هېواد کې پانګه اچوونه وکړي، په مستقيمه بهرنۍ

پانګه اچونه کې پانګه اچوونکي د اقتصادي واحد اداره او کنټرول مستقیماً د خپل فزیکي حضور او مالي مسئوولیت په منلو سره په واک کې لری.
د نړیوال بانک او نړیوال وجهي صندوق د تعریف په اساس مستقیمه بهرنۍ پانګه اچونه د خصوصي بهرنۍ پانګې اچونې له ډلې څخه ده، چې د پانګې د ساتلو او په هغې باندې د کنټرول لرلو په هدف باید کم تر کمه 10% اسهام او د رایې حق په یو خاص شرکت کې لاس ته راوړي.
له حقوقي نقطې نظره مستقیمه بهرنۍ پانګه اچونه دوه برخې لری:
الف) مستقله بهرنۍ پانګه اچونه.
ب ) مشترکه بهرنۍ پانګه اچونه.
دلته به هره یوه تشریح کړو:
الف) مستقله بهرنۍ پانګه اچونه: دا ډول پانګه اچونه د هغو بهرنیو شرکتونو پانګه اچونه ده، چې د هغې ملکیت 100% په بهرنیو پانګه اچوونکو پورې مربوط وي، لکه څنګه چې د دې له عنوان څخه معلومېږي، په دې ډول پانګه اچونه کې د کورنیو پانګه اچوونکو لپاره کوم ځای وجود نه لري او بهرنۍ پانګه اچوونکي د هر ډول ازادۍ درلودونکي وي.
ب) مشترکه بهرنۍ پانګه اچونه: په دې ډول پانګه اچونه کې د پانګه اچونې مصارف او حاصلات د کورنۍ او بهرنۍ پانګه اچوونکو ترمنځ د هغوی د پانګو په تناسب وېشل کیږي، که څه هم له سل فیصده مالیکت سره بهرنۍ پانګه اچونه اوس هم په ځینو هېوادونو کې وجود لري، خو دې روش تدریجاً خپل ځای مشترکې بهرنۍ پانګې اچونې ته پرېښینی دی.

- غیر مستقیمه بهرنۍ پانګه اچونه: له غیر مستقیمې بهرنۍ پانګې اچونې څخه مطلب د مالي دارایي ګانو اخیستل دي، لکه اسهام چې په وارد ونکي هېواد کې پیسي نشر کیږي. د قرضې د اسنادو اخیستلو په صورت کې د هغه مال کد خپلې پانګې په مقابل کې یو سند ترلاسه کوي، چې ګټه او وخت یې معلوم وي او د قرارداد مطابق هر کال د هغه ګټه لاسته راوړي او له یوه معین وخت څخه وروسته خپله اصلي پانګه لاسته راوړي.

یا په بل عبارت د غیر مستقیمې بهرنۍ پانګې اچونې په صورت کې بهرني پانګه اچوونکي د اسهامو یا د قرضې د اسنادو په اخیستلو سره خپله پانګه میزبان هېواد ته ورادوي او د خپل سهم په اندازه په مالکیت کې اختیار او د رایې حق لري. او د هغه په اندازه ګټه یا تاوان کوي، نو په دې اساس پانګې ته کم خطر متوجه کیږي او اداري مسوولیت یې هم کم وي، نو په دې دلیل بهرنۍ پانګه اچوونکي دې ډول پانګې اچونې ته ډېر تمایل لري.

۲. رسمي یا عمومي پانګه اچونه
عمومي یا رسمي بهرنۍ پانګه اچونه په دوه ډوله ترسره کیږي:
۱. د دوو هېوادونو یا د هغوی د مرکزي بانکونو ترمنځ او قرضې د قرارداد یا بهرنۍ مرستې په شکل.
۲. چې د نړیوالو سازمانونو لکه نړیوال بانک، د پیسو نړیوال وجهي صندوق (IMF) آو نورو په واسطه دا پیسې د هېوادونو ترمنځ انتقال پیداکړي.

ددې پورونو يوه برخه په مستقيم ډول د پور اخيستونکي هېواد په اختيار کې ورکول کېږي او کولای شي، چې په هره برخه کې چې وغواړي مصرف يې کړي، مګر اکثره وخت دا قرضونه مشروط وي او پور ورکوونکی هېواد يا سازمان د هغه د مصرف موارد ورته مشخص کوي او په څو مرحلو او د مصرف له مواردو څخه د اطمينان په حاصلولو سره دا پورونه درخواست کوونکي هېواد ته تاديه کېږي.

د بهرنی پانګې اچوونکې ډولونه په شکل کې




له ملی پولو څخه د پانګې وتل او په نورو هېوادونو کې پانګه اچونه د پخوانيو ملتونو ترمنځ د اق[illegible]کارند[illegible]تو د خپل[illegible]منظو[illegible]ري تر تحليل او بر رسی لاندې ونيو، د پانګې د حرکت تيوري تنها د پانګې حرکت نه مطالعه کوي، بلکې د پانګې د حرکت جريان، د هغه دلايل او اثرات يې هم مطالعه کوي.
له اول نړيوال جنګ څخه مخکې اروپا د پانګې لوی مرکز و او د اروپايي ملکونو له جملې څخه انګلستان د پانګې له مهمو صادروونکو هېوادونو څخه شمېرل کېده.
په ۱۹۱٤م. کال کې د بهرنيو پانګو مجموعي ارزښت ٤٤ ميليارده ډالره و، چې په هغو کې زيات سهم په ترتيب سره د انګليستان، المان، فرانسې او امريکا و.

په ۱۹۱٤م. کال کې د مختلفو هېوادونو په واسطه د بهرنۍ پانګه اچونو اندازه

| ګڼه | هېواد | د بهرنۍ پانګې اندازه (میلیارد ډالر) |
|---|---|---|
| ۱ | انګلیستان | 18 |
| ۲ | آلمان | 9 |
| ۳ | فرانسه | 5.8 |
| ٤ | امریکا متحده ایالات | 3.5 |
| ۵ | نور هېوادونه | 7.7 |
| | مجموعه | 44 |

Sourse: www.unctad.org

د لومړي نړیوال جنګ په شروع کېدلو سره د اروپا اقتصاد له پښو ولوېده او هغه هېوادونه چې له جنګ څخه مخکې به یې یو له بل ســـره اقتصـــادي همکاري درلوده، اوس یو د بل جنګي رقیبان وو.

د ۱۹۱۸ او ۱۹۲۵م. کلونو په منځ کې په اروپا کې ســـیاســـي بې ثباتۍ دوام درلود، مګر انګلسـتان د خپل تجارتي موقف په وجه چې درلوده یې، د پانګې صـادرولو ته ادامه ورکړه او د وخت په تېرېدلو سره له امریکا څخه هم د پانګې جریان پیل شـو، په ۱۹۲۹م. کال کې د نړیوال اقتصـــادي بحران په رامنځته کېدلو ســـره د بهرنۍ پانګه اچونې جریان له ګډوډیو ســره مخامخ شــو او نړیوال تجارت چې په ۱۹۲۹م. کال کې یې ارزښ درې میلیارده ډالره و، په ۱۹۳۲م. کال کې یو میلیارد ډالرو ته راټیټ شو.

د مارشـال د طرحې په اسـاس له امریکا څخه اروپا ته د پانګې انتقال شـدت پیداکړ، چې دا جریان د قرضې او بلاعوضه کومک په شکل و.

څرنګه چې دا منابع هغو هېوادونو ته انتقالېدل چې هغوی د مناســـب اقتصـــادي جوړښـــت درلودونکي و، صـــرف د پانګې د کموالي له مشـــکل ســـره مخامخ شـــوي و، نو ددې ډول بلاعوضه پانګې انتقال ددې هېوادونو په اقتصاد کې مناسب پرمختګ رامنځ ته کړ او له دې وروســـته دې ډول کومکونو پرمختیایي هېوادونو ته جریان پیداکړ، ترڅو هغوی له مطلوب اقتصـــادي پرمختګ څخه برخمن شـــي، مګر د پام وړ نتیجه حاصـــله نشـــوه، ځکه ددې هېوادونو ســـتونزه یوازې د پانګې اچونې کمبود نـه وو، بلکې د هغوی د نورو اړخونو پرمختګ ته همزمان ضـــرورت و، نو په دې ترتیب د پانګې په جریان کې د بلاعوضـــه کومکونو رول کم شو.

له بل طرفه له دویم نړیوال جنګ څخه وروسـته چې کله د اروپا بیا رغاونه پیل شـوه، نو د ۱۹۵۷م. کال د معاهدې په اســـاس د اروپا اقتصـــادي ټولنه رامنځته شـــوه او وروســـته د اقتصادي مرستو او پرمختګ سازمان رامنځته شو او ددې په څنګ کې د تعرفې او تجارت د عمومي موافقنامې په برخه کې مذاکرات ترسـره شـول او په دې ترتیب سـره په اروپا او جاپان کې پانګې اچونې زیاتوالی وموند او د مالي بازارانو په پراخوالي او زیات پرمختګ

سره د غربي اروپا هېوادونه د زياتې پانګې درلودونکي شول او د پانګې د صادروونکو په توګه مطرح شول، جاپان هم د جنګ د مشکلاتو په لرې کېدو سره ډېر زيات پرمختګ وکړ او د جاپان غټ شـــرکتونه د زياتې پانګې په درلودلو ســـره په نړۍ کې د بهرني پانګه اچوونکو په حيث رامنځته شول.
په عمومي ډول ويلای شو، چې له دويم نړيوال جنګ څخه وروسته د بهرنيو پانګو د جريان او د مستقيمو بهرنيو پانګه اچونو لپاره يوه نوې دوره رامنځته شوه، د وخت په تېرېدو سره په ۷۰لســيزه کې په نړۍ کې د څو مليتي کمپنيو د فعاليت په ډېرېدلو ســره ځيني اقتصـــاد پوهان په تشويش کې شول، ځکه څو مليتي کمپنيو د خپل فعاليت لپاره هغه ځايونه انتخابول کوم چې به مساعد شرايط درلودل او سياستمداران يې په اندېښنه کې اچولي وو او داسې معلومېدل چې څو مليتي کمپنۍ به د خپلې پشتوانې، اندازې او د عملياتو د لمنې په پراخوالي سره ډېر ژر د ميزبان هېواد د مجموعي اقتصـاد په نسبت پرمختګ وکړي او بالاخره به د نړۍ اقتصاد په ډېر لږ وخت کې تر خپل تسلط لاندې راولي.
البته دې نظريې د مارکس له افکارو ســـرچينه اخيســـتله او نورو اقتصــــاد پوهانو لکه ريمونډورونون (R. Vernon) ۱۹۷۷م، هاروارد بري موتر (H.B. Motor) په ۷۰مه لسيزه کې دا پېشــبيني وکړه، چې څو مليتي کمپنۍ به د نړۍ د اقتصـــاد واګې په لاس کې واخلي، مګر په حقيقت کې دې وړاندوينې تحقق پيدا نه کړ او دولتونو د بهرنۍ پانګې د جذب په خاطر ځينې تدابير ترلاس لاندې ونيول، ترڅو د هغوی په اقتصــــادي پرمختګ کې کومک وکړي او ســازمان ملل هم پرمختيايي هېوادونو ته د څو مليتي کمپنيو د منابعو څخه د ښــې استفادې په خاطر لارښووني وکړې، له دې سره سره د ماډرن امپرياليزم د بحث په مطرح کېدو او دا چې څو مليتي کمپنۍ ميزبان هېواد تر خپل تســـلط لاندې راولي، نو له خارجي پانګه اچونې څخه د مخنيوي او د هغه په ځای د قرضونو د اخيستلو مسئله مطرح شوه، نو په دې ترتيب پرمختيايي هېوادونو کوښښ وکړ، ترڅو له بهر څخه د قرض په اخيستلو سره د خپل ضـــرورت وړ پانګه خپل هېواد ته راواراده کړي او د هغه مديريت هم په خپله غاړه واخلي.
البته علاوه په ماډرن امپرياليزم کې ځيني نور مســايل هم شــته، چې له بهر څخه د قرض د اخيستلو په برخه کې مطرح و، چې له هغې جملې ځيني يې په لاندې ډول دي:
۱. د نفتو د قيمتونو لوړېدل: په ۱۹۷۳م. کال د نفتو د قيمت په څلور برابره لوړېدلو سره د نفتو صادروونکو هېوادونو ته په زياته پيمانه مالي منابع په لاس ورغلل، مګر دې هېوادونو چې د زيات جذب قدرت يې نه درلود، نو دا منابع يې په بهرنيو بانکونو کې پس انداز کړل او په دې ترتيب دې بانکونو زياتې پيســـې ترلاســـه کړې او پرمختيايي هېوادونو ته يې د قرضـې په ورکولو شروع وکړه او ددې هېوادونو د قرضـونو تقاضـا ددې منابعو په واسطه تامين شوه.
۲. د صـــنعتي هېوادونو پولي ســياســتونه: د ۱۹۷۳-۱۹۷٦م. کلونو په جريان کې صـــنعتي هېوادونه د انبساطي پولي سياست درلودونکي وو، نو د پيسو د حجم د زياتوالي سره مخامخ شوي وو او په هغه دوره کې د داخلي پانګې زياته برخه د انرژۍ په سکتور کې لګول کېده

او دا ســـکتور د زيات خطر درلودونکې وه، نو په دې اســـاس پرمختيايي هېوادونو ته د قرضـــې ورکولو لپاره زيات تمايل موجود وو او په دې ترتيب زياتو منابعو د قرضـــې په شـــکل پرمختيايي هېوادونو ته جريان پيداکړ او دا کار په ۱۹۸۲م. کال کې د قرضـــونو د بحران د رامنځته کېدلو سـبب شـو، د ۹۰لسـيزې له اوايلو وروسـته پانګه بيرته د مسـتقيمې بهرنۍ پانګه اچوونې او غير مســـتقيمې بهرنۍ پانګه اچونې په شـــکل شـــدت پيداکړ او په ۱۹۸۹-۱۹۹۱م. کلونو کې صـــعودي ســـير او له ۱۹۹۱-۱۹۹۳م. پورې يې نزولي ســـير درلود.

خصوصي کول او خصوصي سکتور ته د قرضونو ورکول د مستقيمې بهرنۍ پانګه اچونې (FDI) لپاره شـرايط اماده کړل او د دې مسـتقيمې بهرنۍ پانګه اچونې زياته برخه پرمختللو هېوادونو جذب کړه، لکه په پرمختللو هېوادونو کې مســتقيمې بهرنۍ پانګه اچونې (FDI) په ۱۹٦۷م. کآل کې 69,4%، په ۱۹۹۰م. کآل کې 83% او په 2000م. کال کې 89% ته زياته شوه.

داخل ته د مستقيمي بهرنۍ پانګه اچوني جريان (2000-2004)
په بيليون ډالر

| کلونه / هېوادونه | 2000 | 2001 | 2002 | 2003 | 2004 |
|---|---|---|---|---|---|
| پرمختللي هېوادونه | 1133.7 | 599.3 | 441.2 | 358.5 | 396.1 |
| غربي هېوادونه | 721.6 | 393.1 | 314.2 | 274.1 | 217.7 |
| اروپايي اتحاديه | 696.1 | 382.0 | 307.1 | 253.7 | 213.7 |
| جاپان | 8.3 | 6.2 | 9.2 | 6.3 | 7.8 |
| د امريکا متحده ايالات | 314.6 | 159.5 | 74.5 | 53.1 | 122.4 |
| نور پرمختللي هېوادونه | 89.7 | 40.4 | 43.4 | 25.0 | 48.3 |
| پرمختيايي هېوادونه | 266.8 | 221.4 | 163.6 | 175.1 | 275.0 |
| افريقا | 9.6 | 19.9 | 13.0 | 18.5 | 17.2 |
| لاتينه امريکا او کارائب | 109.0 | 89.4 | 54.3 | 46.1 | 100.5 |
| اسيا او اوقيانوسيه | 148.3 | 112.2 | 96.2 | 110.5 | 157.3 |
| آسيا | 148.0 | 112.0 | 96.1 | 110.1 | 156.6 |
| غربي آسيا | 3.5 | 7.2 | 6.0 | 12.3 | 18.6 |
| شرقي اسيا | 116.3 | 78.8 | 67.4 | 72.2 | 105.1 |
| چين | 40.7 | 46.9 | 52.7 | 53.5 | 6.60 |
| جنوبي اسيا | 3.4 | 6.4 | 7.0 | 5.7 | 7.3 |
| جنوب ختيځه اسيا | 23.5 | 19.6 | 15.8 | 19.9 | 25.7 |
| اوقيانوسيه | 0.3 | 0.1 | 0.1 | 0.4 | 0.7 |
| جنوب شرقي اروپا | 9.1 | 11.5 | 12.9 | 24.2 | 39.6 |

Sourse: www.unctad.org/fdi

داخل ته د مستقیمې بهرنۍ پانګه اچونې جریان (2005-2009)
په بیلیون ډالر

| کلونه / هېوادونه | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ | ۲۰۰۷ | 2008 | 2009 |
|---|---|---|---|---|---|
| پرمختللي هېوادونه | 542,3 | 972.8 | 1358.6 | 962.3 | 565.6 |
| غربي هېوادونه | 433.6 | 631.7 | 988.6 | 518.3 | 373.5 |
| اروپایي اتحادیه | 421.9 | 590.3 | 842.3 | 503.5 | 356.7 |
| جاپان | 2.8 | -6.5 | 22.5 | 24.4 | 11.4 |
| د امریکا متحده ایالات | 4.99 | 237.1 | 271.2 | 316.1 | 135.9 |
| نور پرمختللي هېوادونه | 6.5 | 110.4 | 165.3 | 103.4 | 85.3 |
| پرمختیایي هېوادونه | 334.3 | 433.8 | 529.3 | 620.7 | 405.5 |
| افریقا | 30.7 | 57.2 | 69.2 | 87.6 | 55.9 |
| لاتینه امریکا او کارائب | 103.7 | 93.3 | 127.5 | 144.4 | 85.5 |
| اسیا او اوقیانوسیه | 200.0 | 283.4 | 332.7 | 388.7 | 264.1 |
| آسیا | 199.6 | 282.1 | 331.4 | 387.8 | 396.9 |
| غربي آسیا | 34.5 | 67.6 | 77.6 | 90.3 | 51.3 |
| شرقي اسیا | 118.2 | 131.8 | 150.4 | 187.0 | 160.3 |
| چین | 72.4 | 72.7 | 83.5 | 108.3 | 105.5 |
| جنوبي اسیا | 9.8 | 27.8 | 34.0 | 50.7 | 47.9 |
| جنوب ختیځه اسیا | 37.1 | 55.0 | 69.5 | 59.9 | 60.4 |
| اوقیانوسیه | 0.4 | 1.3 | 1.3 | 0.9 | 1.4 |
| جنوب شرقي اروپا | 39.7 | 54.5 | 90.9 | 114.4 | 69.3 |

Sourse:www.unctad.org/fdi

د بهرنۍ پانګې اچونې علتونه

په اوس وخت کې د پانګې تحرک په دوه ډوله صورت نیسي، مستقیمه پانګه اچونه او غیر مستقیمه پانګه اچونه، اګر که د پانګې انتقال د یو هېواد لخوا د بل هېواد سره د کومک کولو په واسطه هم انتقالېږي، مګر د اقتصادي مقاصدو په خاطر د پانګې ازادانه تحرک معمولاً دوه حالته لري، مستقیم او غیر مستقیم د پانګې د تحرک عوامل په لاندې توګه بر رسي کوو.

۱. د مستقیمې بهرنۍ پانګې اچونې علتونه

- په بهر کې د هېواد د داخل په پرتله د زیاتې ګټې موجودیت.
- د FDI (Forigen Direct Investment)بل علت په بهر کې په خپله پانګه او مدیریت د مستقیم کنترول درلودل دي.
- له ګمرکي تعرفې او نورو ګمرکي او تجارتي موانعو څخه مخنیوی یا له صادراتي اعانو څخه استفاده، چې په کوربه هېواد کې د دا ډول تولیداتو د صدور لپاره ورکول کېږي، چې دا یې هم له دلایلو څخه کېدای شي، بهرنۍ پانګه اچوونکي ددې په خاطر چې دده د تولیداتو په مقابل کې کوم مانع موجود نه وي، نو د خپل هدف وړ هېواد کې پانګه اچونه کوي.
- د FDI لپاره د تولید د عواملو د قیمت کموالی هم یو دلیل کېدای شي، ځکه د تولیدی عواملو د قیمت په کموالي سره تولیدي مصارف کمېږي او د تصدۍ ګټه زیاتوالي کوي، همدا دلیل دی، چې هغه پرمختیایي هېوادونه چې نسبتاً پرمختګ یې کړی، د بهرنۍ پانګې په جذب کې نسبتاً کامیاب و.
- څرنګه چې اکثره پرمختیاي هېوادونه په دې ونه توانېدل، چې ځان د تکنالوژۍ په پرمختګ باندې عیار کړي، بناً د پرمختللو هېوادونو لپاره د خامو موادو تهیيه کوونکو په حیث پاتې شول، ارزانه خام مواد او د کار ارزانه قوه د بهرنۍ پانګې د جذب له موثرو عواملو څخه ده.
- لکه څرنګه چې په دې وروستیو کلونو کې ځینې هېوادونه لکه چین، جاپان، جنوبي کوریا او ځینې نور د اسیا د جنوب هېوادونه د خامو موادو د زیاتو منابعو او د کار د زیاتې قوې له امله د پام وړ پرمختګ کړی دی، مثلاً چین توانېدلی دی، چې له ۱۹۸۰م. تر ۱۹۹۵م. کلونو کې د دنیا د ټولو پانګه اچونو (10%) جذب کړي، دا چې چین د بهرنیو پانګه اچونه په جذب کې موفق و، علتونه یې دا دي، چې چین له ۱۴۷۹م.کال څخه وروسته د بهرنۍ پانګې د جذب سیاست ترلاس لاندې ونیو او نور علتونه یې د داخلي پراخ بازار درلودل، د صادراتو د توسعې ستراتېژي او همدارنګه د هغه د همسایه هېوادونو پرمختګ و.
- په یو جنس کې د یو هېواد نسبي مزیت درلودل هم د بهرنۍ پانګه اچونې علت کېدای شي، یانې ځینې وخت بعضې صنایعو په ځینو هېوادونو کې زیات پرمختګ کړی وي، مثلاً د کمپیوټر صنعت په امریکا کې او د موټرو صنعت په جاپان کې کولای شي، چې د دوه طرفه پانګې اچونې لپاره زمینه مساعده کړي.

- ځيني کمپنۍ د يو خاص جنس په توليد کې د زياتې پوهې درلودونکي وي او نه غواړي، چې دا معلومات نورو ته انتقال کړي، نو له دې خاطره خپله يوه شـعبه (اجنسـى)په بهر کې پرانيزی.
- شـايد ځيني شـرکتونه چې مسـتقيمه بهرنۍ پانګه اچونه کوي، دا ارزو ولري، چې د خامو موادو يوه منبع مستقيما کنټرول کړي، ترڅو د هغه په توليد کې سکتګي رامنځته نه شي.
- ممکن بهرنۍ پانګه اچوونکي او شـرکتونه پرمختللي ټکنالوژي په اختيار کې ولري او ونه غواړي چې خپله تکنالوژي د نورو په اختيار کې ورکړي.
- شـايد د پانګه اچوونکي هدف د يو معين هېواد او ليګوپول بازار ته داخلېدل وي او په دې ډول ونه غواړي، چې ممکنه ګټه له هغه شرکت سره چې نيمه انحصاري شکل لري، تقسيم کړي.

۲. د غير مستقيمې بهرنۍ پانګه اچونې علتونه

د غير مسـقتيمې بهرنۍ پانګه اچونې عمده علت د هېواد څخه دباندې د زياتې ګټې لاسـته راوړل دي، بناً د اقتصـادي مقاصـدو په نظر کې نيولو سـره د غير مسـتقيمې بهرنۍ پانګه اچونې عمده عامل زياته ګټه ده. د يو هېواد اتباع په دې خاطر چې يوه بهرني هېواد کې د قرضې اوراق يا اسهام اخلي،چې د هغه ګټه د هېواد د داخل په نسبت زياته وي، څرنګه چې پانګه اچوونکي کوشـش کوي، چې د پانګې اچونې خطر حد اقل ته ورسـوي، بناً د هغو کمپنيو اسهام اخلي، چې د هغو ګټه زياته او د ضرر خطر يې کم وي.

۲.په اقتصادي پرمختګ باندې د بهرنۍ پانګه اچونې تاثيرات

الف) د مستقيمې بهرنۍ پانګه اچونې تاثير

اکثره پرمختيايي هېوادونه د اقتصـادي پرمختګ لپاره پانګه اچونې ته نورو اقتصـادي سـکتورونو څخه اولويت ورکوي. پانګه اچونه په هر اقتصـاد کې د اقتصـادي پرمختګ د عامل په توګه پېژندل شوې ده، اکثره هېوادونه د کامل استخدام او اقتصـادي پرمختګ لپاره بهرنۍ پانګه اچونه غوره بولي.

د هاروډ-ډومار د پرمختګ تيوريګانې، د روسـتو تيورى، دليويس تيورى او د پرمختګ نورې تيورې ګانې(چې موږ مخکې څېړکيو کې ولوسـتلې) اکثراً د پانګه اچونې په واسـطه په اقتصاد کې د مالي توان په زياتېدلو باندې متيقين دي، د مالي پانګې تامين له مختلفو لارو لکه داخلي پس اندازونه، قرضونه او بهرنۍ پانګې څخه امکان لري. په پرمختيايي هېوادونو کې پس اندازونه چې د پانګې اچونې ضـرورتونو ته جواب ووايي او همدارنګه د اسـهامو بـازار هم پـه دې هېوادونو کې کوم خـاص رول (رونق) نـه لري، همدارنګـه پـه بهرنيو قرضـونو بـاندې هم ځيني محدوديتونـه لګېدلي دي، بنـاً د پرمختيـايي هېوادونو د مـالي ضرورتونو د رفع کولو لپاره بهرنۍ پانګه اچونى مفيدې ثابتيداى شي.

هغه عوامل چې په اخرو څو کلونو کې يې په اقتصـــادي پرمختګ باندې تاثير درلود، مختلف وو. د هغو تحقيقاتو له مخې چې صـــورت يې نيولی دی، په ۷۰مه لســـيزه کې د اقتصـــادي پرمختګ عمده عامل د صـــادراتو زياتوالی و، په داســـې حال کې چې په ۸۰مه لسيزه کې د اقتصادي پرمختګ له عواملو څخه عمده عامل پس انداز کنټرل کېږي، چې په دې دوو لسيزو کې بهرنۍ مستقيمې پانګه اچونې (FDI) په اقتصـادي پرمختګ کې موثر رول نه درلود، مګر په ۹۰مه لسيزه کې هغه هېوادونه،چې د هغوی د FDI او GDP نسبت لوړ و، زيات اقتصادي پرمختګ يې کړی و.

پرمختيايي هېوادونو ته تنها د پانګې ورود د اقتصـــادي پرمختګ باعث نه ګرځي، بلکې په پانګه برسېره بايد ځينې نور عوامل لکه عـصري تکنالوژي او ښه منجمنټ هم وارد شي، د زياتې پانګې د په کار وړلو په نبســـت په اقتصـــادي پرمختګ کې د تکنالوژۍ پرمختګ او عـــصري کول زيات اهميت لري، يعنې که چېرې FDI له پرمختللې تکنالوژۍ سره يوځای يو هېواد ته داخل شي،نو په دې صورت کې هغه هېواد کولای شي،چې پرمختګ وکړي.

ښـــه منجمنټ چې په بهرنيو شـــرکتونو کې په کار وړل کېږي، هم د بهرنۍ پانګه اچونې په کاميابۍ کې ونډه لري، رهبري او منجمنټ دا تصـميم نيســي، چې څه شـی توليد شـي، د چا لپاره توليد شـي، څومره توليد شـي، يا دا چې خام مواد له کوم ځای څخه چمتو اوتخصـيص شي او داسې نور موارد.

په پرمختيايي هېوادونو کې د FDI تاثير په اقتصـــادي پرمختګ باندې همېشـــه مثبت نه وي، ځکه د پرمختيايي هېوادونو په اقتصـــاد کې د بهرنۍ پانګې اچونې تـاثير د دواړه ډوله هېوادونو د تکنالوژيو د اختلاف له اندازې ســـره ارتباط لري، هر څومره چې دا اختلاف کم وي، نو د نوي تکنالوژۍ تعويض به په زړه تکنالوژۍ باندې په اقتصـــادي پرمختګ زيات تاثير ولري، چې دليل يې په دې هېوادونو کې د تخنيکي پوهې له نوې تکنالوژۍ څخه د استفادې دطريقې او د کار د ماهرې قوې نشتوالی و، چې دا مشکل تر يوې اندازې پورې د کار د متخصصې قوې په روزنه چې له نوې تکنالوژۍ څخه په صحيح ډول استفاده وکړای شي، حل کېدای شي.

هر څومره چې د انســـاني قوې ( Human resource) د روزنې لپاره زياته پانګه اچونه وشـي، په هماغه اندازه کولای شـو، چې له پرمختللې تکنالوژۍ څخه زياته اسـتفاده وکړو، چې په نتيجه کې د زيات اقتصـــادي پرمختګ لامل ګرځي، ځکه کله چې يو هېواد د کمې انســـاني پانګې درلودونکي وې، نو د FDI ســـهم به په اقتصـــادي پرمختګ کې کم وي او برعکس هر څومره چې د زياتې تحصـيل يافته او ماهرانســاني ځواک لرونکې وي، نو په هغه هېواد کې د FDI د جذب قوه زياته او په اقتصـــادي پرمختګ باندې ښـــه تاثيرات لرلای شي.

د انســاني ماهرې او متخصــصــې قوې موجوديت په بهرنۍ پانګه اچونو کې نسـبت داخلي پانګه اچوونو ته زيات ســـهم لري، ځکه داخلي پانګه اچونې معمولاً د عنعنوي فعاليتونو په برخه کې صـورت نيسـي، مګر له بهرنۍ پانګه اچونو سـره تکنالوژي همزمان وي، په لنډ

ډول دا چې په مستقیمه بهرنۍ پانګه اچونه کې تکنالوژۍ د اقتصادي پرمختګ باعث ګرځي او که نه لاندې عواملو پورې اړه لري.
۱. د دواړو هېوادونو ترمنځ د تکنالوژۍ د اختلاف او تفاوت اندازه.
۲. په کوربه (میزبان) هېواد کې د روزنیزې پانګې اچونې د سطح اندازه.
۳. له FDI څخه په میزبان هېواد کې د پانګه اچونکي هېواد هدف.

دا چې FDI د داخلي پانګه اچونې ځای نیولی شـــي او که نه په دې هکله دوه نظره وجود لري، ځینې اقتصــــاد پوهان په دې عقیده دي، چې FDI په داخلي پانګه ا چونو باندې مثبت خو د پام وړ اثر نه لري، داخلي شــرکتونه ممکن د بهرنیو کمپنیو له حضـــور څخه په دې ډول ګټه پورته کوي، چې هغه کارګران چې په بهرنیو کمپنیو کې استخدام شوي او زیات مهارت او پوهه په لاس راوړي، چې دا په بازار کې زیات قیمت لري، که چېرې دا کارګران بهرني شـرکتونه پرېږدي، نو ممکن دا انسـاني مهارت د داخلي شـرکتونو لاسـته ورشي او د هغوی مؤلدیت به لوړ کړي، همدارنګه داخلي شرکتونه به د نویو تولیداتو لپاره ځان عیار کړي. دا خبره یوه پرمختیایی هیواد ته ډیره مهمه ده.
ځینې نور بیا په دې نظر دي، چې د بهرنیو شــرکتونو حضــور کېدای شــي، چې د داخلي شـرکتونو حاصـلات خصـوصـاً په لنډه موده کې کم کړي، ځکه بهرني شـرکتونه د تولید کم مصـــــارف لري، نو دوی د خپلو تولیداتو په زیاتوالي باندې لاس پورې کوي، نو د داخلي شـرکتونو اجناسـو ته د قیمت د زیاتوالي په وجه تقاضـا کمیږي، چې په نتیجه کې تولیدات کمیږي.
د بهرنۍ پانګې اچونې یو تعداد نور مخالفین په دې باور دي، چې بهرني پانګه اچوونکي د زیاتې پانګې د درلودلو په وجه خپله زیاته ګټه د بیرته پانګه اچونو په ځای له هېواد څخه بهر وړي، همدارنګه مستقیمې بهرنۍ پانګه اچونې مخالفین په دې نظر دي، چې ددې پانګه اچونو څخه لاسـته راغلې ګټه د هغو خلکو لاسـته ورځي چې له پس انداز سـره کمه علاقه لري، چې دا د تقاضا د زیاتوالي سبب ګرځي او په نتیجه کې قیمتونه لوړېږي، همدارنګه بل انتقاد دا دی، چې په دې پانګه اچونه کې زیاته د کار قوه پکار نه اچول کېږي، په داســـې حال کې چې د پرمختیایي هېوادونو لوی مشکل د بېکارۍ موجودیت دی.

ب) د غیر مستقیمې بهرنۍ پانګې اچونې تاثیرات
څرنګه چې مورږ مخکې ذکر کړه،چې د غیر مســـتقیمې بهرنۍ پانګه اچونې عمده علت له پانګې څخه د زیاتې ګټې لاسته راوړل دي، نو ځکه پانګه اچوونکي د قرضې د اوراقو او د بورس په بازار کې د اسـهامو په اخیسـتلو او حتی د خپلې پانګې لپاره د ریســک (خطر) د کمولو په خاطر په بهرنیو بانګونو کې د پس انداز په کولو باندې اقدام کوي، نو دېته په توجه ســره چې ددې پانګه اچونو هدف د مســتقیمې بهرنۍ پانګه اچونې برعکس د زیاتې ګټې لاســـته راوړل دي، نو د غیرمســـتقیمې بهرنۍ پانګه اچونې او اقتصــــادي پرمختګ ترمنځ کومه قوي رابطه نه ترسترګو کېږي. نو بناً د انساني قوې روزنه په بر کې نیسي، نو

ځکه دا طریقه د FDI په څېر د اقتصادي پرمختګ باعث نشي ګرځېدلی، د FDI په صورت کې تکنالوژي نه انتقالېږي او صرف مالي منابع يو هېواد ته انتقالېږي.
د FDI په برخه کې یوه بله مهمه خبره دا ده، چې دې ډول پانګه اچونې ته د مالي بحرانونو په جریان کې، دوی ځان ته مطابقت ورکول او لازمه انعطاف پذيري ونه ښودله او په خپلو نوساناتو سره راغلو بحرانونو ته لمن وهي او له اقتصادي پرمختګ څخه مخنيوی کوي، مګر مستقيمه بهرنۍ پانګه اچونه زيات انعطاف پذيره ده او يا ثابته پاتې کيږي، مثلاً ۱۹۹۷-۱۹۹۸م. کلونو د بحرانونو په لړۍ کې د ختيځې اسيا په هېوادونو کې دې ډول پانګه اچونې د پام وړ ثبات درلود.
له هغو نظرياتو څخه چې پورته مو ولوستل او هغه تحقيقاتو څخه چې په ۱۱هېوادونو کې ترسره شوي، په اقتصادي پرمختګ باندې د FDI, FPI او د قرضونو د تاثيراتو نتايج په لاندې توګه وښودل شول :
۱. په اقتصادي پرمختګ باندې د مستقيمې بهرنۍ پانګه اچونې تاثيرات عموماً مثبت وي، ځکه په اکثرو دغو ممالکو کې يې مثبت تاثير درلودلی دی.
۲. غير مستقيمه بهرنۍ پانګه اچونه په اقتصادي پرمختګ باندې زياتره منفي اثر لري، مګر په ځينو مواردو کې لکه د چين او د ترکيې هېوادونه، چې ددې ډول پانګه اچونې سهم د مستقيمې بهرنۍ پانګه اچونې په نسبت کم ده، په هغو کې ددې ډول پانګې اچونې تاثيرات هم مثبت دي.
۳. اکثره قرضونه چې د مطالعې لاندې نيول شوي، د هغو تاثيرات په اقتصادي پرمختګ باندې منفي ښودل شوې دی، له بل پلوه ددې قرضونو اثر په اقتصادي پرمختګ باندې په دې پورې تړلی دی، چې ايا دا قرضونه په توليدي برخه کې مصرف شوي دي او که دا استهلاکي قرضونه وي، که په توليدي برخه کې په مصرف رسېدلي وي، نو په اقتصادي پرمختګ به ډېر کم تاثيرات ولري، خو که په استهلاکي شيانو مصرف شوي وي، نو بيا په اقتصادي پرمختګ منفي اثر لري، له پورتنيو مطالعاتو څخه لاندې نتايجو ته رسېږو:

- مستقيمه بهرنۍ پانګه اچونه د اقتصادي امورو لپاره د پانګې د تامين(ډاډمن کيدو) ډېر ښه شکل دی.
- د FDI له لارې د اقتصادي پرمختګ په هدف پلان جوړونه د ډېر امکان درلودونکې ده، د FPI په نسبت د FDI د انتقال نوسانات کم دي.
- FDI همېشه د هېوادونو په اقتصاد کې مثبت تاثيرنه لري، ځکه دا په پرمختللي تکنالوژۍ، د کار متخصصې قوې او نورو عواملو پورې اړه لري.

۳. د بهرنۍ پانګه اچونې د جلب او جذب اغېزمن عوامل
د بهرنۍ پانګه اچونې د جلب او جذب مهم عوامل په درې برخو وېشل شوي دي:

الف) اقتصادي عوامل،
ب ) حمايتي اوتشويقي عوامل،
ج ) بنيادي (امنيتي) عوامل.

الف) اقتصادي عوامل
یو تعداد اقتصـــادي عوامل لکه د تولید د زیاتو منابعو موجودیت، د مصـــرف لوی بازار اود کار د ارزاني قوي موجودیت د بهرنۍ پانګې اچونې په جذب کې مهم رول لري، چې هر یو په لنډ ډول تشریح کوو.

- د تولید ارزانه منابع: د تولید زیاتې منابع په کم مصـــرف سره د FDI د ورود مهم عامل ده، زیاتې طبیعي منابع ،جغرافیایي موقعیت او زیاته انرژي د تولید د مصارفو د کموالي سبب ګرځي او نتیجه کې د پانګه اچونو د جلب ســبب ګرځي. همدارنګه په کم مزد ســره دکار د فني او متخصـــصــــــي قوې زیاتوالی د بهرنۍ پانګې اچونې په جذب کې مهم ګڼل کیږي، د تخنیک په پرمختګ او د تولید د پروســــې او مراحلو په مغلق کېدلو ســــره نور غیر ماهره کارګره قوه پکار نه راځي؛ بلکې باید دکار د قوې په روزنه پیل وشــــي، د چین، مالېزیا او سینګاپور د موفقیت یو دلیل د کار د ماهرې قوې درلودل و.
- د میزبان هېواد د بازارونو پراخوالی: د میزبان هېواد د بازارونو پراخوالی د هغو پانګه اچونو په برخه کې چې په داخلي بازارانو کې د فروش په منظور ترســـره شـــوي وي، مهم دي. چین، مکسیکو، سینګاپور او ځینې نورو پرمختیایي هېوادونو د داخلي لویو بازارونو د درلودلو په سبب زیات FDI جذب کړې ده.
- د دولت ســیاســتونه: له بهرنیو پانګه اچونو ســره د دولت لخوا پولي ســیاســتونه، تجارتي سیاستونه، مالیاتي سیاستونه او دتعرفو وضـع کول هغه عوامل دي، چې د پانګه اچونو په جذب کې مهم رول لري.
- انفلاسیون: زیاتېدونکی انفلاسیون ددې باعث ګرځي، چې د یو هېواد وګړي بهرنیو تولیداتو ته پام واړوي او له بل طرف نه دقیمتونو لوړوالي د تولیدي مصــــارفو د زیاتوالي ســــبب ګرځي، چې دا هم د FDI په مخ کې یو خنډ ګرځېدلی شي.
- اساسـي زېربناوې ( **Infrastructure**): د پرمختللو مواصلاتي کربنو، انرژیکی منابعو او ځینې نورو مسایلو موجودیت لکه ازادې صنعتي سیمې د بهرنۍ پانګه اچونې په برخه کې مهم رول لري.

ب ) حمايتي عوامل
تشــويقي يا حمايتي عوامل د ازادو صــنعتي ســيمو په جوړولو (صــنعتي پارکونه) د بیمې قوانینو او په بهرنیو پانګه اچونو ســـره ددولت د حمایې ســـره رابطه لري، دولت باید دا تضمین ورکړي، چې بهرنۍ پانګه اچونې به د مالي اوځاني امنیت درلودونکي وي.

ج ) بنيادي (امنيتي) عوامل
هغه هېوادونه چې د سـياسـي او اجتماعي نا ارامیو درلودونکي دي او د پانګه اچوونکو امنيت له تهديد سره مخامخ کوي، که هر څومره له اقتصادي لحاظه جذاب وي، خو بيا هم د بهرنيو پانګه اچونو په جذب کې ناکام وي، په حقيقت کې بهرني پانګه اچوونکي په هغه ځايونو کې پانګه اچونه کوي، چې د ضـرورت وړ محيط درلودونکي وي، چې دا محيط د سياسي ثبات، د قانون جوړونې د نهادونو د ثبات د بيروکراسي نه موجوديت د اداري فساد نه موجوديت او معنوي هويت درلودونکې ده.

٤. په FDI باندې د اقتصادي پرمختګ په منظور موثر عوامل
په پورتني مبحث کې زموږ د بحث وړ موضـوع دا وه، چې FDI څرنګه په اقتصـادي پرمختګ تاثير اچوي، اوس هغه عوامل تر مطالعې لاندې نيسو، چې د هغوی په موجوديت سره FDI په موثر ډول تر استفادې لاندې نيول کيدای شي.

- هغه برخې (سـکتورونه) چې **FDI** په هغه کې جذب کېږي: نظر د شـلمې لسـيزې پېړۍ دلومړۍ نيمايي څو اخرو ته، اوس دپرمختيتيا تيوری تغير کړی دی. په ۱۹۱۳م. کال کې په پرمختيايي او کمو پرمختللو هېوادونو کې د FDI له نيمايي څخه زياته برخه د معادنو او خامو موادو برخو ته اختصاص کېدل او صرف 10% پانګونه د صنعت په برخه کې ترسره شـوې وه، مګر په ۱۹۹۰م. کال کې د FDI 40% د صـنعت په برخه کې، 50% د خدماتو په برخه کې او 10% په اوليه برخو کې جذب شوې وه، چې په FDI کې دا تغييرات په اقتصادي پرمختګ باندې نظر هغه وخت ته متفاوت تاثيرات لري.
که چېرې FDI په لومړنيو برخو (خام مواد او معادن) کې جذب شـي، نو په لږو پرمختللو هېوادونو باندې به لږ مفيد تاثيرات ولري، ځکه ددې موادرو لپاره تقاضـا غير ارتجاعي ده او د FDI په واسطه د ټکنالوژي د تغيير څخه لاسته راغلی حاصل د قيمت د ټيټوالي په اثر مصـرف کوونکي ته انتقالېږي، مګر که FDI د صـنعت په برخه کې زياته په کار ولوېږي، نو د تحصـيلاتو او مهارتونو د سـطحې لوړول او د نوې تقاضـا رامنځته کېدل د اقتصـادي پرمختګ سبب ګرځي.

- د يو هېواد د پرمختګ سـطح: تر ۷۰مې لسـيزې پورې د پرمختګ مختلفو سـطحو په قصـيرالمدت او طويل المدت کې د مسـتقيمي بهرنۍ پانګې اچونې په لاسـته راغلې نتيجه باندې کوم تاثير نه درلود، ځکه په دې زمانه کې ټکنالوژي کمه مطرح وه او همدارنګه د کار متخصـصـې قوې ته کم ضـرورت و، په ۸۰مه لسـيزه کې FDI په لنډه موده او اوږده موده کې په پرمختيايي هېوادونو کې تغيير وکړ، په ډېرو پرمختللو هېوادونو کې د FDI اثر

نسبت پرمختیایي ( DCs) او لږو( LDCs) پرمختللو هېوادونو ته کم و، یانې په لږو پرمختللو هېوادونو کې د FDI اثر په اقتصادي پرمختګ باندې زیات و.

- ســتراتېژي او تجاترتي ســیاســتونه: په دې برخه کې باید ووایو چې ایا د یو هېواد هدف د صادراتو زیاتوالی دی او که د وارداتو تعویض دی، د صادراتو د توسعې ستراتېژي د FDI جذب ته زیاته توجه کوي او په دې ســتراتېژۍ کې FDI مفید واقع شــوې ده، ځکه د تعرفو وضــع کول او تجارتي ســهمیه بندي د وارداتو په ســتراتېژۍ کې د تولیدي عواملو په بازار کې د اختلافاتو د رامنځته کېدلو ســبب ګرځي، ځکه تولید په هغه برخه کې چې کم عوامل اختیار کې وي، ترلاس لاندې نیول کېږي، چې له یوې خوا کم اقتصــادي پرمختګ صــورت نیســي او له بلې خوا د FDI د جذب لپاره کمه زمینه مساعدېږي، مګر د صادراتو د توسعې ستراتېژي د حرکت د ازادۍ او د نسبي مزیت په اساس د منابعو د تخصیص سبب ګرځي.
- پرمختللی مالي سیستم: په میزبان هېواد کې د مالي سیستم پرمختګ په اقتصـادي پرمختګ باندې د FDI د اثر لرلو د مهمو شــرطونو څخه یو شــرط دی، پرمختللی مالي ســیســتم او د FDI د جذب د قدرت د زیاتېدلو ســـبب ګرځي او په دې ترتیب له FDI څخه راپیداشـــوې تکنالوژیکي تغییرات اعظمي حد ته ورر سېږي، مالي سیستم له دوه لارو څخه په اقتصادي پرمختګ کې موثر واقع کېدای شي.

علاوه پر دې له نوې تکنالوژۍ ســره پانګه اچونه د نورو تولو پانګه اچوونو په نســبت د زیات خطر درلودونکې ده، نو په دې اســاس پرمختللی مالي ســیســتم ددې ډول خطرونو د کمولو په برخه کې موثر واقع کېدای شـــي او د نوې تکنالوژۍ په کارولو کې چې د بهرنیو شــرکتونو په واسـطه په کار اچول شــوې ده، د داخلي متشــبثینو د تحرک باعث ګرځي بناً دا شرکتونه په سرعت سره له نوې تکنالوژۍ استفاده کوي او د پرمختګ پړاو ته رسېږي.

۵. د بهرنیو پانګو او شرکتونو په برخه کې مختلف نظرونه

د بهرنیو پانګو او شـــرکتونو په برخه کې په عمومي ډول دوه نظریې وجود لري، چې یو تعداد یې موافق او یو تعداد یې مخالف دي او په لاندې توګه یې تر مطالعې لاندې نیسو:

- ✓ د بهرنیو پانګو او شـــرکتونو د فعالیت په اړوند موافق نظر: ددې نظریې مطابق په کمو پرمختللو هېوادونو کې د بهرنیو پانګو او شــرکتونو فعالیت د اقتصـــادي پرمختګ لپاره د یو مثبت عامل په توګه شـــمېرل کېږي. په دې نظریه کې داســـې اســـتدلال کېږي، چې په پرمختیایي هېوادونو کې د پانګې او تکنـالوژۍ کموالی د پرمختـګ لـه مهمو موانعو څخـه دي، بهرني شـرکتونه د خپلو پانګو په واسطه کولای شـي چې دا موانع له منځه یوسـي یا د هغو په له منځه وړلو کې کومک وکړي او علاوه پر دې دا شرکتونه په خپلو فعالیتونو سره د منجمنټ نوې طریقې نوموړو هېوادونو ته انتقالوي او همدارنګه د رقابت په رامنځته کولو سره په پرمختیایي هېوادونو کې د داخلي تصدیو او شرکتونو د فعال کولو باعث هم ګرځي

او بالاخره په دې هېوادونو کې د اقتصـــادي پرمختیا، د بازار د تنظیم او د رفاه د ښــه کېدلو باعث ګرځي.

- ✓ . د بهرنیو پانګو او شـرکتونو د فعالیت اړوند مخالف نظر: دا نظریه په پرمختیایي هېوادونو کې د خارجي پانګو او شـــرکتونو په منفي تاثیراتو او عواقبو باندې تاکید کوي او دا فعالیت ددې هېوادونو د وروســـته پاتېوالي او تړلتیا عامل بولي، دا نظریه په دې عقیده لري، چې دا پانګې او شـرکتونه د پرمختیایي هېوادونو په اقتصـــادي منابعو او فعالیتونو باندې په منګولو کې راوستوسره (تر خپلې سلطې لاندې راوستلو سره) ددې هېوادونو د پرمختګ پروسه تر خپل کنترول لاندې راولي او هغوی د زیاتې تړلتیا لور ته بیایي.

ددې لید لوري ځینې نظرونه په لاندې توګه را اخلو:
۱. ددې شرکتونو پانګې په هغو برخو کې په کار وړل کېږي، چې د کوربه هېواد د لومړنیو ضرورتونو سره چندان ارتباط نه لري، دا پانګې او شرکتونه معمولاً د معدنونو او زراعت په برخه کې مصروف دي او اوس هم چې په کوربه هېوادونو کې صنعتي تولیدي فعالیتونه ترســـره کوي، په عمومي ډول یا د نړیوال بازار لپاره صـــادرات تهیه کوي او یا د تولید د پروسې د تکمیل په خاطر د څو ملیتي کمپنیو په مجموعه کې فعالیت ترسره کوي.
۲. په پرمختیایي هېوادونو کې د خارجي پانګو او شـــرکتونو حضـــور او فعالیت اکثره نه یوازې دا چې د داخلي شـــرکتونو د ترقي او فعال کېدو باعث نه ګرځي، بلکې د هغو د ضـعیف کېدو او له منځه تللو لپاره زمینه مساعدوي، ځکه د هغوی د پانګې لوړه سـطحه د تکنالوژي، منجمنټ او مارکېټینګ مهارت له داسې نهادونو څخه د رقابت امکان اخلي.
۳. د بهرنیو پانګو او شرکتونو حضور په اقتصادي تسلط برسېره په کوربه هېواد باندې د ســیاســي نفوذ او تســلط باعث هم ګرځي، چې دا موضــوع په هغو مواردو کې چې د هغه شـــرکتونو د هغوی د خپلو هېوادونو ګټې ســره په ارتباط کې وي زیاته وي، په دې مواردو کې نوموړي هېوادونه یانې د نوموړو شـرکتونو متبوعه هېوادونه له دغو شـرکتونو څخه په سیاسي، ديپلوماتیک او ځینې وخت هم په نظامي برخو کې د خپلو ګټو د ساتلو په منظور په کوربه ملک کې اســـتفاده کوي، په خپله دا شـــرکتونه هم په کوربه هېواد کې د خپل نفوذ د ساتلو په خاطر فعالیت کوي.
٤. پـه پرمختیـایي هېوادونو کې د بهرنیو پـانګو او شـــرکتونو حضـــور د ځینو اجتمـاعي کشـــمکشـــونو او د هغوی په کلتور باندې د تعرض د رامنځته کېدو باعث ګرځي، ځکه دا شـرکتونه د خپلې ټولنې ځینې عادات او نمونې له ځان سـره وړي، چې دا د کوربه هېواد له کلتور سره نه جوړېږي.
٥. هغه پانګه چې بهرني شـــرکتونه یې پرمختیایي هېوادو ته انتقالوي، له هغو څخه زیاته پانګه بیرته خپلو هېوادو ته راوړي، هغوی د خپلې کمې پانګې اچونې وروســـته له مختلفو لارو لکه د کوربه هېواد له اعتباراتو څخه اســـتفاده، خپلو هېوادونو ته د پانګې اچونې ګټې انتقال او په نورو هېوادونو کې د پانګه اچونې له لارې بیرته زیاته پانګه له دې هېوادو څخه باسي.

٦. د پرمختیایي هېوادونو په اقتصاد باندې د بهرنۍ پانګې اچونې اغېزې
په عمومي ډول د بهرنۍ پانګه اچونې مثبت او منفي رول په لاندې ډول واضح کوو.

- ✓ . د بهرنۍ پانګه اچونې مثبتې اغېزې

د سپما د خالیګاه پوره کول:
څرنګه چې په پرمختیایي هېوادونو کې د خلکو عایدات کم دي، نو ځکه د سپما اندازه او د پانګې مقدار هم کم دی، چې دا د پانګې کموالی د پرمختیایي هېوادونو د وروسته پاتې والي له مهمو عواملو څخه شمېرل کېږي، خو د بهرنۍ پانګه اچوونې په نتیجه کې دا تشه پوره کېږي او د اقتصادي ودې لپاره زمینه مساعدېږي.
د نوي کلاسیک نظریې په اساس د باندینۍ پانګې اچونې په مرسته کولای شو، چې د سپما خالیګاه پوره کړو. د باندینۍ پانګې اچونې په مرسته موږ کولای شو، چې د سپما خالیګاه ډکه او د اقتصادي ودې هدف ته ورسېږو.

- ✓ د باندینیو اسعارو د تبادلې د کمبود پوره کول

څرنګه چې په پرمختیایي هېوادونو کې د وارداتو قیمت د صادراتو د قیمت په پرتله ډېر لوړ وي، نو د بهرنیو اسعارو د کمبود رامنځته کېږي، چې دا کمبود د خصوصي بهرنۍ پانګه اچونې په مرسته پوره کېدای شي، ځکه چې بهرنۍ پانګه اچوونه بهرني اسعار له ځان سره راوړي.

- ✓ د تولیداتو د کمبود پوره کول

څرنګه چې په وروسته پاتې هېوادونو کې مهارت، اداره او مدیریت او د ټکنالوژۍ ضعف اوکمبود ډېر زیات دی، نو له دې امله د همدې هېوادونو تولیدات په ټیټه سطح کې دي، نو د باندینۍ خصوصي پانګې اچونې په مرسته موږ کولای شو، چې دغه کمبود پوره کړو.
همدارنګه د غریبو هېوادونو خلکو ته په مختلفو ساحو کې تربیتونه هم ورکوي او باندینۍ بانکونو سره یې ارتباط هم پیداکوي. د باندینۍ پانګې اچونې له کبله نوي ماشینونه او نوې تکنالوژي دغو هېوادونو ته راځي، چې دې سره د هېواد په عایداتو او حاصلاتو کې زیاتوالی راځي.

- ✓ د تولید د عواملو په تولیدي ظرفیت کې زیاتوالی

د باندینۍ خصوصي پانګې اچونې په نتیجه کې د تولید په عواملو کې زیاتوالی راځي، چې دې سره د کارګرانو په مزد کې زیاتوالی راځي، چې د مزد په زیاتوالي سره کارګران په خپل کار کې کوشش کوي، چې ددې په نتیجه کې په کار او تولید کې زیاتوالی راځي، چې همدغه خپله د اقتصادي ودې سبب ګرځي، چې ددې سره سره فني خلکو ته هم ضرورت زیاتېږي. همدارنګه د نوې ټکنالوژۍ او مهارت په واردېدلو سره د تولیداتو په مقدار کې زیاتوالی رامنځته کېږي، چې د تولیداتو په زیاتوالي سره اضافه اجناس نورو هېوادونو ته صادرېږي، چې دې سره د ټولنې د ژوند سطح لوړېږي.

- ✓ . ټولنیزې ګټې

په بهرنۍ خصوصي پانګه اچونه کې، له اقتصادي ودې سره یوځای، یو شمیر ټولنیزې ګټې هم شـــته دی. د بهرنۍ پانګې اچونې په مرســـته د جوړو شـــویو کارخانو ګټه هم داخل ته راځي.
څرنګه چې باندینۍ کارخانې هر یو شـــی په خپله نه جوړوي، نو یو اندازه اجناس د کورنۍ کارخانو څخه اخلي، چې دې سره په داخل کې تولیدي ظرفیت زیاتیږي. دې سره سره څه وخت چې بهرني هېواد په داخل کې پانګه اچونه کوي، نو خپل ځان ســـره خپل کلتور، د اوسېدلو طرز، فکر او مفکوره او داسې نور شیان هم راوړي، چې دا ټول په کورني کلتور باندې اثر کوي او د کورني خلکو(دکوربه هیواد داتباعو-ښـــاروندو) په فکر او مفکورو کې تبدیلي راوړي، چې د اقتصادي او ټولنیزې ودې لپاره ضروري دي.

- ✓ . د ګټو دوباره استعمال

دا هم لیدل شوي دي، چې باندینۍ خصوصي پانګه اچونکي چې کومه ګټه لاسته راوړي، هغه دوباره په غریبو هېوادونو کې لګوي. نو له دې څخه داسې مطلب اخیستل کېږي، چې باندینۍ خصـــوصـــي پانګه اچوونکي او نړیوالې ټولنې خپلې ګټې د صـــنعت په نوي کولو، پراخولو او وده بیرته لګوي.

- ✓ د بهرنۍ خصوصې پانګه اچونې منفي اغېزې

## هوساینه او سهولت:

غریب هېوادونه د باندینۍ پانګې اچونې د جلبولو لپاره ډېره هوســـاینه او ســـهولتونه برابروي، لکه ارزانه ځمکه، له مالیې څخه معاف کول، د اوسېدلو لپاره اسانتیاوې او داسې نور. د دغو هوســـاینو او ســـهولتونو برابرول، دپرمختیایی هیواد اتباع/ښـــاروندان په تنبلی اخته کوی چې د ا ادوی لپاره غټ پېټي دي، چې دغه پېټي د بهرنۍ پانګې اچونې ټوله ګټه له منځه وړي. حال داچې اوســـنیو پرمختللو هیوادو کلونه کلونه وړاندی د خپلی پرمختیا په پروســـه کی هرڅه خپله ګالل او هرڅه یې خپل و، هیڅا ورته څه نه ورکول او پرمختیایی بهیر یی په طبیعی بڼه له پرله پسې هڅو، زیار، نوښت، بریاووا‌و ناکامیو او راز راز تجربو سره یو ځای پرمخ ولاړ.

- د وړو سرمایوي سکتورونو وده

څرنګه چې مخکې وویل شـــول، بهرنۍ پانګه اچوونکي د یو هېواد په اقتصـــادي وده کې ډېره دلچسپي نه لري. دا خلک د هېواد په داخل کې په یو داسې ســـکتور کې پانګه اچوي، چې په کوم کې چې ورته زیاته ګټه وي، په همدې ترتیب ســـره یوازې د هغې طبقې خلکو په عاید کې زیاتوالی راځي، چې د مخکې نه پانګوال وو او دې ســـره ســـره د هېواد داخلي عاید په نامنظم ډول وېشلو(د عایدغیرعادلانه توزیع) کې زیاتوالی راځي.

- د تادیاتو د بیلانس د توازن مشکلات

په عام ډول سره ویل کېږي، چې په پرمختیایی هیواد کې باندینۍ خصـــوصـــي پانګې اچونې ســـره لنډمهاله د تادیاتو په بیلانس کې توازن رامنځته کېږي، خو په اوږد مهال کې د باندینۍ

خصوصي پانګې اچونې په نتیجه کې د تادیاتو د بیلانس په توازن کې او د پانګې په حساب کې د باندینیو اسعارو په تبادله کې کموالی راځي. د تادیاتو د بیلانس په توازن کې کموالی له دې خاطره راځي، چې دغه پانګه اچوونکي د خپل تولید لپاره په داخل کې د حاصلولو پرځای یې د خارج نه واردوي او د پانګې په حساب کې د توازن کموالی له دې خاطره راځي، چې هغه ګټه چې دوی لاسته راوړي، د ربح او یا نورو مصارفو په بهانه یې خارج ته انتقالوي.

- ✓ د دولت د عایداتو کمېدل

په عامه توګه ویل کېږي، چې د باندینۍ پانګې اچونې په نتیجه کې د دولت په عایداتو کې زیاتوالی راځي، خو دا صحیح نه ده. ځکه د کمو مالیاتو، سهولتونو، د پانګې اچونې اسانتیاوې، امنیت او د داسې نورو سهولتو د برابرولو لپاره ددې پرځای چې دولت ته عاید لاسته راشي، بلکې دولت ددې سهولتونو د برابرولو لپاره مصرف کوي او لګښتونه یې زیاتیږی.

- ➢ نامناسبه ټکنالوژي

ویل کېږي، چې د باندینۍ پانګې اچونې په نتیجه کې په وروسته پاتې هېوادونو کې د ټکنالوژۍ خالیګاه له منځه ځي، خو حقیقت دا دی چې د باندینۍ پانګې اچونې په نتیجه کې غریبو هېوادونو ته په نامناسب کیفیت سره ټکنالوژي راوړل کېږي، چې ددې په نتیجه کې بیکاری(بې روزګاري) زیاتیږي او هم په داخل کې د ټکنالوژۍ د مهارت ظرفیت له منځه ځي.

- ➢ . منفي ټولنیز او اقتصادي چلند

د باندینۍ پانګې اچونې په نتیجه کې د یو هېواد په داخل کې سیما، پانګه اچونه، کار او په عایداتو کې زیاتوالی راځي، خو ددې سره سره په ټولنیزې او اقتصادي ودې منفي اغېزې هم لري. لکه په پرمختیایي هېوادونو کې د عاید غیر عادلانه وېش زیاتوالی، همدارنګه هغه وخت چې غریبو هېوادونو ته د باندینیو هېوادونو څخه ماهرین راشي، نو دداخلي ماهرینو ځای نیسي او هم پردی کلتور خپریدل، مذهبي او ټولنیز او داسې نورمنفي اثرات له ځانه سره دې هېواد ته واردوي، چې دا د دې هېوادونو له ملی ارزښتونو سره په تضاد کې راځي.

# څو ملیتي کمپنۍ

Multinational companies

څوملیتیزه کمپنیو(Multinational companies ) لکه د اووه سره ښامار په شان قوت موندلی او تر ډیرو لریی سیمو یی منګولی رسیدلی دی. دوی ښه پریمانه پانګه، پرمختللی تکنالوژي او ډیر مهارتونه لری. پرمختیایی هیوادونه له یوی خوا ورته اړ(محتاج) دی، له بلی خوا یی له نیبش او زهرو ویریږی. داوســـنی وخت او زیاترو پرمختیایی هیوادونو واقعیت دا دی چې بهرنۍ کمپنۍ د دوی شتمنیو ته په حرص سـره ګوری. دغه هیوادونه د خپلو خلکو د غوښتنو د پوره کول او څه ناڅه لنډمهاله پرمختګ باندی د لاسبری په خاطر دغو کمپنیو ته احتیاج دی، نو ځکه یې خپلو هیوادو کې دوی ته د پانګې اچونی او کار کولو فرصـــت ورکړی دی، خو د پرمختیایی اقتصــــاد تیوری دی برخه کی هم مترددده ده. مخکې تر دی چې دلته دغه تردد وګورو، څو ملیتی کمپنې، دهغو یوڅو مثالونه او دپانګی او د فعالیت طرز به په ډیر مختصر ډول وپیژنو:

۱. د څو میلیتي کمپنیو مفهوم

نن ورځ په نړۍ کې اکثره خصـــوصــــي بهرنۍ پانګه اچونې د لویو تجارتي ګروپونو په واسطه چې هغوی په ډېرو مملکتونو کې فعالیت کوي، ترسره کېږي. د دغو کمپنیو پانګه یا د یوه پانګوال هیواد وی، یا د څو پانګوالو هیواو پانګه پ. کې ګډه وی،کارکوونکی یی هم یا دویه پانګوال هیواد وی یا دوو، دریو متخصـصـین پکی ورګډ شـوی وی. هر یو د خپلې ګټې ســـهم خپل هیواد ته وړی. په دې توګه دا هغه شـــرکت او کاروبار دی چې دیو یا څو هیوادونو پانګه یوه یا څو نورو هیوادو کی په کار لویدلی وی.

په بله وینا: څو میلیتي کمپنۍ هغه کمپنیو ته وایي، چې هغوی له یو څخه په زیاتو هېوادونو کې پانګه اچونه کړې وي. صــــرف اقتصــــادي حضــــور یا د اموالو درلودل، په مختلفو هېوادونو کې د څو ملیتي توب معیار نه دی، مثلاً که چېرې یو څوک بې له دې چې په یو هېواد کې د یو شــرکت په مدیریت کې داخل شــي، د هغه شــرکت اســهام واخلي، نو دا څو ملیتي کمپنۍ نه ده، کله چې یو شــرکت یا کمپنۍ په یو بل هیواد کې د یوه اقتصــادي فعالیت کنټرول او مدیریت په لاس کې واخلي، نو دېته څو ملیتي کمپنۍ ویلای شـو، خو د یو ســاده تعریف په اســاس: څو ملیتي کمپنۍ هغه کمپنۍ ده، چې په مســتقیمه توګه په یوه بل یا څو نورو هیوادو کې په بهرنۍ پانګه اچونه لاس پورې کړې.

دا تجــارتي کمپنۍ ګــاني پــانګــه، ټکنــالوژي، اداره او د مــارکیټینــګ شـــبکــه هغــه هېواد/هغوهیوادونو ته انتقالوي، په کومو کې چې دوی کولای شـــي، چې هلته اجناس تولید کړي، نو په دې اســاس ټوله نړۍ (په تیره بیا پرمختیایی هیوادونه) د دوی لپاره یو مناســب مــارکیټ ګرځېدلي ده او لــه دېنــه علاوه دوی غواړي چې نړیوالې فــابریکې ( Global Factories) کومې، چې د دنیا په هره برخه کې فرصـــتونه لټوي، وګرځي. داســـې هم واقع

کېږي، چې څو ملیتي کمپنۍ د یو جنس مختلفې اجزاوې په مختلفو مملکتونو کې تولید کړي او وروسته له دې اجزاوو په یو بل ملک کې یو جنس جوړ کړي.
ددې مانا دا شــوه، چې د څو ملیتي کمپنیو په وړاندې ټوله نړۍ د یو کلي حیثیت غوره کړې ده، یا په بله اصطلاح نړۍ د څو ملیتي کپنیو لپاره د یو کلي په شان کوچنۍ کېږي.
څو ملیتي کمپنۍ خپل تولیدات په نړیواله ســــطحه خرڅوي او دوی په زیاتو مملکتونو کې خپلې فرعي برخې یا څانګې لري.
کله چې د ملګرو ملتونو په اقتصادي او اجتماعي شورا (ECOSOC) کې د څو ملیتي کمپنیو لپاره د مقرراتو د جوړولو موضــوع مطرح شـوه، نو د ځینو هېوادونو نماینده ګانو اسـتدلال کاوه، چې د څو ملیتي کمپنیو اصــطلاح باید د هغه کمپنیو لپاره وکارول شــي، چې د مختلفو ملیتونو د نماینده ګانو په واسطه جوړې شوی وي، نو ددې په خاطر د هغه کمپنیو لپاره چې په مختلفو هېوادونو کې مســـــتقیم فعالیت کوي، د TNCs یانېTransnational Corporation اصــطلاح ورکړل شـوه، اوس هم د ملګرو ملتونو او نورو نړیوالو موســسـانو لخوا دې ډول کمپنیو ته TNCs وایي.
د پروفیسر ریمونډورنون Prof. Ramond Vernon له قوله څو ملیتي کمپنۍ هغه کمپنۍ دي، چې په شپږو یا له شپږو نه په زیاتو هېوادونو کې یې پانګونه کړې وي.

۲. د څو ملیتي کمپنیو اقتصادی قدرت(اندازه) او ځینې نمونې
ډېر داســې څو ملیتي کمپنۍ شــته، چې د هغوی کلني فروشــات د هغو پرمختیایي هېوادونو د GDP څخه زیات دي، په کومو کې چې دوی فعالیت کوي.  د۲۰۰۹ کال یوڅو مثالونه:
په ۲۰۰۹م. کال کې د نړۍ لویه کمپنۍ Gerneral Electric وه، چې په همدې کال کې یې کلني فروشــــات 183,207$ بیلیون ډالره وو، په همدې کال کې یې 17,41$ بیلیون ډالره ګټه کړې وه او مجموعي شتمني یې 797,77$ بیلیون ډالره و.
په ۲۰۰۹م. کال کې تر ټولو زیاته ګټه د Exxon Mobil د نفتو او ګازو تصـــــفیه کوونکو امریکایي کمپنۍ کړې وه (دوی 45,22$ بیلیون امریکایي ډالر ګټه یې کړې وه)، په همدې کال کې یې فروشات 442,851$ بیلیون ډالره وو او شتمني یې 228,052$ بیلیون ډالره وو.
په ۲۰۰۹م. کال کې تر ټولو زیات فروشــات د Royal Dutch Shell کمپنۍ کړي وو، چې دا د نیدرلنډ هېواد ده او دا هم د تېلو د تصـــــفیې او اســــتخراج په برخه کې فعالیت کوي، دې کمپنۍ په همدې کال کې 458,36$ بیلیون ډالره فروشــات کړي وو، 26,277$ بیلیون ډالره ګټه یې کړې وه او  ټوله شتمني یې 282,401 بیلیون ډالره وه.
دلته موږ په ۲۰۰۹م. کال کې له دریو جهتونو د نمونې په ډول د نړۍ لس لویې کمپنۍ را اخلو.

د خرڅلاو حاصل، ګټې او شتمنی په اساس د نړی لس لويې کمپنی (۲۰۰۹)، ارقام په
**(Billion Doller)**

| Rank | Company | Country | Industry | Sales | Profit | Asset |
|---|---|---|---|---|---|---|
| 1 | General Electric | USA | Conglomerate | 183.207 | 17.41 | 797.77 |
| 2 | Royal Dutch Shell | Netherlands | Oil & Gas Operations | 458.36 | 26.277 | 282.4 |
| 3 | Toyota Motors | Japan | Motor Vehicle and Parts | 204.35 | -4.39 | 294.23 |
| 4 | Exxon Mobil | USA | Oil & Gas Operations | 442.85 | 45.22 | 228.05 |
| 5 | BP | UK | Oil & Gas Operations | 367.053 | 21.16 | 228.24 |
| 6 | HSBC Holding | UK | Banking | 142.049 | 5.728 | 2520.4 |
| 7 | AT&T | USA | Telecom Services | 124.028 | 12.867 | 265.25 |
| 8 | Wal-Mart Satandar | USA | General Merchandiser | 405.61 | 13.4 | 163.4 |
| 9 | Banco Satandar | Spain | Banking | 117.803 | 12.992 | 1318.86 |
| 10 | Chevron | USA | Oil & Gas Operations | 263.159 | 23.93 | 161.16 |

Sourse: www.fortune.com

د خرڅلاو د حاصل په اساس د نړۍ لس لويې څو مليتي کمپنۍ (۲۰۰۹)،ارقام په

**(Billion Doller)**

| Rank | Company | Country | Industry | Sales | Profit | Asset |
|---|---|---|---|---|---|---|
| 1 | Royal Dutch Shell | Netherlands | Oil & Gas Operations | 458.36 | 26.277 | 282.401 |
| 2 | Exxon Mobil | USA | Oil & Gas Operations | 442.85 | 45.22 | 228.052 |
| 3 | Wal-Mart Stores | USA | General Merchandiser | 405.61 | 13.4 | 163.429 |
| 4 | BP | UK | Oil & Gas Operations | 367.053 | 21.16 | 228.24 |
| 5 | Chevron | USA | Oil & Gas Operations | 263.159 | 23.93 | 161.429 |
| 6 | Total | France | Oil & Gas Operations | 234.674 | 15.5 | 164.45 |
| 7 | Conocon Phillips | USA | Software & Services | 230.764 | -16.998 | 142.865 |
| 8 | Ing Group | Netherlands | Banks | 226.577 | -1.067 | 1851.011 |
| 9 | Sinopec | China | Oil & Gas Operations | 207.814 | 1.961 | 153.135 |
| 10 | Toyota Motors | Japan | Motor Vehicle and Parts | 204.352 | -4.349 | 294.238 |

Sourse: www.fortune.com

د ګټې په اساس د نړۍ لس لويې کمپنۍ (۲۰۰۹)،ارقام په **(Billion Doller)**

| Rank | Company | Country | Industry | Sales | Profit | Asset |
|---|---|---|---|---|---|---|
| 1 | Exxon Mobil | USA | Oil & Gas Operations | 442.85 | 45.22 | 228.05 |
| 2 | Gazprom | Russia | Oil & Gas Operations | 97.29 | 26.78 | 276.81 |
| 3 | Royal Dutch Shell | Netherlands | Oil & Gas Operations | 458.36 | 26.28 | 282.401 |
| 4 | CHevron | USA | Oil & Gas Operations | 263.159 | 23.93 | 161.17 |
| 5 | BP | UK | Oil & Gas Operations | 367.053 | 21.16 | 228.24 |
| 6 | Petrobras | China | Oil & Gas Operations | 118.257 | 18.88 | 145.14 |
| 7 | General Electric | USA | Conglomerates | 183.207 | 17.41 | 797.77 |
| 8 | Nestle | Switzerland | Food, Drink & Tobacco | 101.565 | 16.67 | 97.12 |
| 9 | Total | France | Oil & Gas Operations | 234.674 | 15.50 | 164.66 |
| 10 | Microsoft | USA | Software & Services | 61.98 | 14.56 | 65.79 |

Sourse: www.fortune.com

په نړۍ کې له ۵۰۰ لويو څو مليتي کمپنيانو څخه ۱٤۰ يې امريکايي دي، چې په ۲۰۰۹م. کال کې د هغوی مجموعي د خرڅلاو حاصـــل 7543.73$ بيليون ډالره وو او 68 يې جاپاني وې، چې د هغوی دخرڅلاو مجموعي په همدې کال 2979.58$بيليون امريکايي ډالر و او 40 د فرانســـې دي، چې په ۲۰۰۹م. کال کې يې د خرڅلاو مجموعي حاصـــل 2165.816$ بيليون ډالره و.

د څو مليتي کمپنيو دا غټه اندازه په پرمختيايي هېوادونو کې دوی ته يو غټ اقتصـــادي توان ورکوي، دوی يو Oligopolistic طاقت لري، دوی د دې پوره توان لري، چې خپل قيمتونه په خپل اختيار کې ولري، دوی مختلف توليدات کولای شـــي، دوی په لويه ټکنالوژۍ باندې

انحصــــار لري، دوی کولای شــــي، له نړیوالو پولي مارکېټونو څخه ځومره چې یې خوښــه وي، قرض واخلي.
لویې څو ملیتي کمپنۍ لویې بهرنۍ نماینده ګیاني او په دوی پورې تړلي بهرني شـــــرکتونه لري. هره یوه څو ملیتي کمپنۍ مســـتقیماً د هغه بهرنۍ نماینده ګیانې (اجنســـی)کنترولوي یا دوی خپل تجارتونه د مشارکت په ډول په مخ بیایي.
د MNCs لوی اقتصـــادي تصـــمیمونه د هغوی په مرکزي برخه Head Quarter کې نیول کېږي، پـه هر حـال ددې کمپنۍ ګـانو اداري ځرنګوالي یو لـه بلـه فرق لري، د دوی لوي تصـمیمونه په تولید، توزیع، R & D(ریسـرچ او پرمختیا)، د حکومت اسـانتیاوو او په اوږده موده کې د تجارت د توســـعې په موقیعت پورې اړه لري. څو ملیتي کمپنۍ په ځینو حالاتو کې له یو ملک څخه بل ملک ته انتقال پیداکوي، چې په داســـې حال کې چې ځیني نورې بیا په خپلو معینو ځایونو کې پاتې کېږي، دوی هغه وخت نویو ملکونو ته انتقال پیداکوي، چې هلته ارزانه کارګر قوه، ارزانه خام مواد، په میزبان ملک کې د دولت کمه مداخله، په ټکسونو او نورو کې زیاتې اسـانتیاوې او د دوی د پانګو لپاره مصـوونیت موجود وي. د لا زیاتې ګټې په خاطر، د څو ملیتي کمپنیو فعالیتونو خپل شـکل له استخراجي څخه د لومړنیو اجناسو صنعت ته تبدیل کړی او ارتقا یې ورکړی ده، دوی همدارنګه د صادراتو د تولید او د وارداتو د تعویض په برخه کې په خاص ډول د تولید په برخه کې فعالیت سرته رسوي.

په پرمختیایي هېوادونو کې د څو ملیتي کمپنیو رول

۱. د څو ملیتي کمپنیو مثبت رول
د مشهور اقتصاد پوه Harry Johnson په نظر څو ملیتي کمپنۍ نه یوازې اقتصادي مؤثریت لوړوي، بلکې دوی د ملکونو اقتصـــــادي ودې تـه پرمختـګ هم ورکوي، دوی پـانګـه، ټکنالوژي او مهارتونه نورو ملکونو ته انتقالوي، په نتیجه کې ویلای شو، چې دوی د هغوی وسایلو څخه په کار اخیستلو کې چې د استعمال لاندې نه دي راغلي، کومک کوي او په دې ســـره به په ټوله نړۍ کې مؤثریت او هوســـاینه زیاته شـــې یانې څو ملیتي کمپنۍ د نړۍ په پرمختګ او هوساینه کې یو مهم رول لوبوي.
د څو ملیتي کمپنیو رول په لاندې توګه توضیح کوو:

❖ د منابعو د خلا له منځه وړل

Prof. H.G. Johnson, Kindle Berger, Pearson او نور علما په دې نظر دي، چې څو ملیتي کمپنۍ مســـــتقیمې بهرنۍ پـانګـه اچونې تـه پرمختـګ ورکوي، نو لـه همدې املـه دوی پـه پرمختیایي هېوادونو کې د منابعو خلا له منځه وړي، کومه چې دا هېوادونه ورسره مخامخ دي او علاوه پر دې څو ملیتي کمپنۍ داخل ته د بهرنۍ پانګې جریان تشـویقوي. څرنګه چې څو ملیتي کمپنۍ د نړیوالو فابریکو حیثیت لري، نو دوی په داســـې یو موقف کې قرار لري،

چې له نړيوال مارکېټ څخه هر څومره قرض اخيستلای شي، نو په دې اساس ويلای شو، چې څو مليتي کمپنۍ په پرمختيايي هېوادونو کې د پانګې د تجمع په زياتوالي کې کومک کوي، نو ځکه څو مليتي کمپنۍ د مالي منابعو کموالی له منځه وړي او د هېواد په اقتصادي پرمختګ کې کومک کوي، چې دوی هلته ورغلی او پانګه پکې اچوی.

❖ څومليتی کمپنۍ د نسبي ګټې نوې منابع رامنځته کوي
يو شمير نور بيا وايي چې: څو مليتي کمپنۍ د نوې نسبي ګټې او نوي عرضې د رامنځته کولو باعث ګرځي، څو مليتي نه يوازې کافي پانګه؛ بلکې پرمختللې تکنالوژي، مهارت او ښه مديريت هم لري، نو ځکه دوی کولای شي، داخلي منابع او انساني قوه او مهارت په ښه توګه تر استفادې لاندې راولي، ياني دوی يو جنس په کم قيمت توليدولای شي او د هغوی په صادرولو سره يو ملک کولای شي، چې د بهرنيو اسعارو يو معقوله اندازه ګټه ترلاسه کړي، لکه تايوان چې د امريکايي پانګې، جاپاني مهارت او تايواني د کار د ارزانه قوې په واسطه د پام وړ پرمختګ وکړ، نو په دې اساس ويلای شو، چې څو مليتي کمپنۍ نه يوازې د بهرنيو اسعارو په لاسته راوړلو کې کومک کوي، بلکې د بهرنيو اسعارو په پس انداز کې هم کومک کوي، کوم چې مخکې به د وارداتو په لاسته راوړلو باندې مصرف کېدل. کله چې د يو هېواد صادرات زيات شي او واردات يې کم شي، نو د تادياتو په بيلانس کې به ښه والی راشي.

❖ . د پرمختللې تکنالوژۍ استعمال:
څو مليتي کمپنۍ پرمختللې تکنالوژي، د توليد پرمختللي تخنيکونه او ښه منجمنت ته لاسرسی لري، چې دا ددې لپاره لاره هواروي، چې منابع اقتصادي شي، ياني منابع تر استفادې لاندې راشي، نو موادو ته به ضرورت نه يوازې کم شي، بلکې په هغه کې به بدلون هم رامنځته شي.
UDCs (نه پرمختللی)يا وروسته پاتې هېوادونه ددې توان نه لري چې دهېواد په اقتصادي پرمختګ او تحقيق باندې په اطمناني ډول زياتې پيسې مصرف کړي، مګر کله چې څو مليتي کمپنۍ په دې هېوادونو کې پانګه اچونه وکړي، نو دې هېوادونو ته پرمختللې تکنالوژي او مهارت راوړي. د عصري تکنالوژۍ زيات استعمال به نه يوازې د تېلو، ګاز او توليدي اجناسو د توليد د زياتوالي سبب شي، بلکې د مخکېني او راتلونکي حالت د ارتباط د تاثيراتو له امله به د توليد زياتوالی شروع شي، مصارف به راکم شي او د ټولې نړۍ لپاره به اجناس په کم قيمت تهيه شي، دا د بهرنۍ پانګه اچونې لامل و، چې په منځني ختيځ کې دتېلو او ګازو سکتور دومره پرمختګ وکړ، چې دنړۍ لپاره تېل او ګاز په يو غټه پيمانه عرضه کوي.

❖ . د پرمختيايي هېوادونو د منابعو ښه استعمال:
ډېر پرمختيايي هېوادونه په زياته اندازه طبيعي منابع لکه وسپنه، د ډبرو سکاره، قلعي، برونزو، تېل، ګاز او ربړ لري او له دې نه علاوه پرېمانه انساني منابع هم لري، چې له دغو څخه اکثره يې يا هيڅ تر استفادې لاندې نه دي راغلي او يا هم په ډېره کمه اندازه او

غیر اقتصـــادي توګه تر اســـتفادې لاندې راغلي دي، نو له همدې کبله چې څو ملیتي کمپنۍ دې هېوادونو ته ورشـــي، نو دا انســـاني او طبیعي منابع به په ښــه توګه اسـتعمال شـــي او د انســـاني منابعو پرمختګ به ممکن شـــي، په نتیجه کې ویلای شـــو، چې نه یوازې دا چې کارګران به ښه معاش ترلاسه کړي، بلکې دوی به دتعلیم، ټریننګ او مهارت د پرمختګ په برخه کې ښه اینده ولري، د استخدام فرصتونه به زیات شي او د خلکو د ژوند معیار به لوړ شي.

❖ د دولت د عاید زیاتوالی:

څو ملیتي کمپنۍ نه یوازې د خلکو د رفاه د زیاتوالي ســـبب ګرځي، بلکې دوی ته د تولید د عواملو د مؤثریت د زیاتوالي ســبب هم ګرځي. دوی همدارنګه د اســتخدام د فرصــتونو په لوړوالي کې کومک کوي، همدارنګه نویو اجناســو ته د خلکو لاســرســی زیاتوي، اســاســي زېربناوې جوړېږي، د ټرانســپورټېشــن او مخابراتو اســانتیاوې زیاتېږي، په نتیجه کې به د اقتصادي رهبرۍ په برخه کې یوه اساسي کامیابي رامنځته شي، چې په عایداتو او د استخدام په فرصتونو کې به څو څو ځله زیاتوالی راشي، چې په نتیجه کې به دولت په دې قادر شي، چې د ټکس، تعرفي او محصـــول له درکه زیات عاید لاســـته راوړي، یانې کله چې د څو ملیتي کمپنیو په واســطه به په اقتصـــاد کې تحرک رامنځته شـــي، نو د خلکو عاید به هم زیاتوالی ومومي.

❖ . له داخلي استعدادونو ښه استفاده:

له داخلی اســتعدادونو څخه موخه د پرمختیایی هیوادو ملی کادرونه او بشــری نیرو ده. په اکثره پرمختیایي هېوادونو کې ډېر ښـــه انجینران، محاســـبان، اقتصـــاد پوهان او کاروباري خلک موجود دي، مګر په دې هېوادونو کې په مناسب ډول د دوی د په کار اچولو زمینه نده مسـاعده او خصـوصـي او دولتي سـکتورونه په دې موقف کې نه دي، چې دوی ته مناسـب معاش ورکړي، مګر څو ملیتي کمپنۍ دوی ته دا فرصـــت او زمینه مســـاعدوي، چې دوی خپلو اســـتعدادونو او توانایي ته پرمختګ ورکړي، همدا لامل دی، چې څو ملیتي کمپنیو ته په نړیواله سطح د استعدادونو د لوړولو زانګو وایي.

❖ . نړیوال کېدل (**Internationalism**):

له دویم نړیوال جنګ څخه وروسته په نړیوال تجارت باندې ډېر محدودیتونه وضـع شـول، نړیوالې میډیا د معلوماتو په خپرولو کې مهم رول ولوباوه او څو ملیتي کمپنیو په نړیواله سـطح د تکنالوژۍ، پانګې او مهارتونو په خپرولو او انتقال کې کومک وکړ، د دغو عواملو د تماس او یوځای کار کولو په نتیجه کې نړیوال کېدل (Internationalism) او جهانیتوب (Globalization) رامنځته شـــو، دا په دې مانا چې څو ملیتي کمپنۍ نه یوازې یوه ملت ته؛ بلکې ټولې نړۍ ته ګټورې واقع شوی دی.

❖ د نړیوالې سولې منبع:

څو ملیتي کمپنۍ د نړیوالې سولې او ارامۍ په ساتلو کې کومک کړی دی، لکه څرنګه چې څو ملیتي کمپنۍ په بهرنیو مختلفو هېوادونو کې په لوړه پیمانه پانګه اچونه کړې ده، نو له

دې امله دوی نه غواړي، چې په دې هېوادونو کې جیوپولیټیکي کشـــمکشـــونه او جګړې رامنځته شي.
مګر ! د اقتصـــادي پرمختګ، مؤثریت او رفاه په ارتباط د څو ملیتي کمپنیو رول تر انتقاد لاندې دی.
پروفیســـور Firtado او Stephen Hymor له لاتیني امریکا څخه Jagdish او Bhagawti له هند څخه او Ronald Mellor په دې نظر دي، چې د پرمختیایي هېوادونو په اقتصـــــادي پرمختګ کې څو ملیتي کمپنیو منفي رول ادا کړی دی.
د Ronald Vernon د تړلتیا د ماډل (Dependencia Model) په اســاس پرمختیایي هېوادونه په څو ملیتي کمپنیو پورې تړل شـــوي دي. ددې شـــکونو په رڼا د پرمختیایي هېوادونو په ټولنیز او اقتصادي پرمختګ کې د څو ملیتي کمپنیو منفي رول ادا کړی دی.

۲. د څو ملیتي کمپنیو منفي رول

❖ انحصار:

پـه هغو هېوادونو او ســـــکتورونو کې چې څو ملیتي کمپنیو پـانګه اچونـه کړې ده، محلی رقابتي قوتونه یې له منځه وړي دي او له خپل انحصـــاري حالت څخه ګټه پورته کوي، لکه چې داســې څو ملیتي شـرکتونه لیدل کېږي، چې د انحصـاري شـرکتونو په څېر ټیټ کیفیت لرونکي اجناس په لوړ قیمت پلوري. په هغو هېوادونو کې چې څو ملیتي شـــرکتونو پانګه اچونه کړې ده، په لوړه پیمانه طبیعي منابع او کارګره قوه لري، خو ددې شرکتونو خاوندان د خامو موادو لرونکو ته کم قیمت او کارګرانو ته ټیټ مزد تادیه کوي، همدا دلیل دی، چې څو ملیتي کمپنۍ په پرمختیایي هېوادونو کې د فقر په لوی بحر کې د جزیرې حیثیت غوره کړی دی، دا د دې مثال لری لکه د دوی وینی چې څبیښي. څو ملیتي کمپنۍ فقیرو هېوادونو ته د فقر د له منځه وړلو لپاره نه دي راغلي، بلکې دوی د فقیرو خلکو د اســتثمار له لارې د خپلو ګټو د اعظمي کولو لپاره راغلي دي، لکه چې په اکثره هېوادونو کې داســـې پېښـــه شوې ده.

❖ . خاص هېوادونه او خاصې څانګې په نظر کې نیسي:

د نړۍ یو څو خاص هیوادونه په پام کې نیســـی او د نورو په وړاندی بی توپیره وی. لکه موږ چې تایوان مثال ورکړ، خو دوی ډیرو نورو پرمختیایی هیوادو کی دومره مثبت اثر ونه کړ، یعنی د دوی یو څو خاص بـــه مثالونه شـــته، خو ټولو پرمختیایی هیوادو ته بیا داســـی ګټوری ندی. مثلاً : د نړۍ د وګړو 4/5 برخه خلک په جنوب کې ژوند کوي او انسانان مختلفو اجناسو او خدماتو ته اړتیا لري، مګر لیدل کیږي چې پرمختللي هېوادونه په خاصـو هېوادونو او خاصـو برخو کې پانګه اچونه کوي. د پانګه اچونې 35% چې په جنوب کې صـورت نیسـي، یعني یوازې په پینځو هېوادونو کې لکه: ارجنټاین، برازیل، مکسـیکو، وینزوېلا او نایجېریا کې شـوي، په داسـې حال کې چې په نورو یوولس هېوادونو لکه لیبیا،

ویسټ انډیز، جمیکا، پانامه، ایران، سعودي عربستان، اندونېزیا، مالېزیا او ټوبیګو کې د بهرنۍ پانګه اچونې فیصدي27% ده.

ددې بهرنۍ پانګې اچونې زیاتره برخه په استخراجي ساحو کې شوې ده، لکه په منځنې ختیځ کې څو ملیتي کمپنۍ د نفتو په منابعو، په زمبیا او چلي کې د مسو په منابعو او په جمیکا او Guine کې په زراعتی منابعو باندې کنترول لري، امریکایي پانګه اچوونکو په هغو برخو کې چې له انحصاري حالت څخه ګټې اخلي، پانګه اچونه کړې ده، لکه واړه ماشین الات، د غذایي موادو پروسس، المونیم، مس، کېمیاوي مواد او نفت.
په هر حال په دې وروستیو کلونو کې څو ملیتي کمپنیو د دوامداره مصرفي اجناسو، نیمه تولیدي او تولیدي اجناسو په برخه کې هم پانګه اچونه کړې ده، مګر د دوی د پانګه اچونې فعالیتونه په NICs پورې منحصر دي، لکه: کوریا، تایوان، مالېزیا، فلیپین، تایلینډ، هانکانګ، سینګاپور او نور په داسې حال کې چې نور هېوادونه لکه پاکستان، بنګله دېش، نیپال، بوتان، چاد او ایتوپیا کې د څو ملیتي کمپنیو بهرنۍ پانګه اچونه د صرف نظر وړ ده، نو ویلای شو چې څو ملیتي کمپنۍ په هغو هېوادونو او ساحو کې پانګه اچونه کوي، چې په هغو کې د کپیټالیستي نظریې له مخې په لوړه اندازه ګټه لاسته راوړي، بنا څو ملیتي کمپنۍ د کاپیټالېزم د خپرولو لپاره کار کوي.

- ❖ نامناسبه تکنالوژي:

څو ملیتي کمپنۍ له پرمختللي تکنالوژۍ او میتودونو څخه استفاده کوي. کله چې پرمختیایي هېوادونو ته د څو ملیتي کمپنیو له لارې پرمختللي تکنالوژي راشي، نو لاندې ستونزې رامنځته کوي.
۱. اکثره وارداتي تکنالوژي سرمایه بره وي، نو په پرمختیایي هېوادونو کې بېکاري زیاتوي، له دې نه علاوه کله چې له وارداتي تکنالوژۍ سره بهرني پوهان او متخصصین راشئ، نو ګټه یې نورو هېوادونو ته رسېږي او همدارنګه بهرنیان د پرمختیایي هېوادونو د عامه وګړو په ټریننګ او تربیت کولو کې زړه نازړه وي، چې په نتیجه کې د پرمختیایي هېوادونو کارګره قوه وروسته پاتې پاتې کېږي.
۲. د Harry Johnson له نظره ، څو ملیتي کمپنۍ ټوله تکنالوژي تر خپل انحصار لاندې راوستي ده، نو له دې امله دوی محلي کمپنیو څخه د تولید د لایسنس د ورکولو په مقابل کې په زیاته پیمانه پیسې اخلي.
۳. کله چې بهرنۍ تکنالوژي یو هېواد ته داخله شي، نو د هغه هېواد استعدادونو او پرمختګ ته زیان اړوي، چې په دې سره په نوموړي هېواد کې د پرمختیا په لور نه هڅوونکې فضا رامنځته کېږي، په پایله کې د داخلي او واردېدونکو اجناسو ترمنځ زیان اړوونکې رقابت رامنځته کېږي او دا چې څوک به ګټونکي او څوک به بایلونکي وي، دا په وخت پورې ارتباط لري.
٤. په اکثره مواردو کې واردېدونکي تکنالوژي د پرمختیایي هېوادونو له حالت او وضعیت سره مطابقت نه کوي او دا تکنالوژي واردېدونکي پرسونل او خامو موادو ته ضرورت

لري او له دې نه علاوه عملاً ليدل شـــوي، چې څو ملیتي کمپنۍ د داخلي عرضـــه کوونکو څخه نیمکاره مواد نه اخلي او له خپلو مراکزو څخه یې په لوړ قیمت واردوي، چې دا د پرمختیایي هېوادونو د تادیاتو په بیلانس او د بهرنیو اسعارو په وضعیت باندې یو دروند بار دی.

❖ د پانګې بهر ته تګ:

ویل کېږي چې څو ملیتي کمپنۍ له ځان ســـره بهرنۍ پانګه راوړي، مګر رونالډل مولر له دې خبرې ســـره موافق نه دی او وایي چې په معینو حالاتو کې څو ملیتي کمپنۍ له هغو هېوادونو څخه پانګه اخلي، په کومو کې چې پانګه اچونه کوي، لکه د 1952 او 1968م.

کلونو په جریان کې په څو ملیتي کمپنیو پورې مربوطو موسسـاتو چې په لاتینه امریکا کې یې فعالیت کاوه، د خپلې پانګې اچونې 80% ګټې یې له محلي منابعو څخه ترلاســـه کولې.

هغه لارې چارې چې له هغو څخه په استفاده څو ملیتي کمپنۍ پانګه خپلو اصلي مراکزو ته انتقالوي په لاندې ډول دي:

a. بهرنۍ پانګه اچوونکې نه یوازې د خپل کاروبار ګټه خپلو هېواد ته انتقالوي، بلکې د

لایسنس د فیس او د خپلو تولیداتو د ترکیبي اجزاوو د خرڅلاو له لارې په زیاته پیمانه پیسې خپلو هېوادونو ته انتقالوي.

b. څو ملیتي کمپنۍ په دولتونو فشـار راوړي، ترڅو په واردېدونکو اجناسو باندې زیات نه

زیاتې تعرفې وضـــع کړي او دوی له پرمختیایي هېوادونو څخه داســـعارو انتقالولو ته ادامه ورکوي، چې دا ټول د پرمختیایي هېوادونو د تادیاتو په بیلانس باندې منفي اغېزې لري.

c. د Transfer Pricing له امله د بهرنیو پانګه اچوونکو (MNCs) ګټه ډېره لوړه ده. ددې

مانا دا ده، چې څو ملیتي کمپنۍ د خپلې ګټې نه په زیاته اندازه پیمانه پیســـې خپلو هېوادونو ته انتقالوي، چې لاملونه یې په لاندې ډول دي:

۱. څو ملیتي کمپنۍ د R&D یا تحقیق او پرمختګ له درکه له زیاتو مصـــارفو ســـره مخامخ

کېږي، چې ددې جبران یوازې د Transfer Pricing له درکه امکان لري.

۲. دوی لوړ ټکس تادیه کوي، مثلاً په پاکستان کې (40%-50%) او د دوی په خپلو هېوادونو

کې (30-35%) ده.

دا د ټکس اضافي بار دوی دېته مجبوروي، ترڅو Transfer Pricing وکړي.

۳. که چېرې دوی په خپلو کتابونو کې خپله ګټه کمه وښـــيي، نو له دوی ســـره به د اســـتثمارګرو په توګه برخورد ونه شـــي، کارګران به یې د لوړ معاش او اضـــافي کومکونو غوښـــتنه ونه کړي، خو بیا هم د لوړې ګټې په صـــورت کې به د کوربه هېوادونو دولتونه د دوی د تولیداتو په تعویضي اجناسو ټیټې تعرفې وضع کړي.

٤. که چېرې بهرنۍ پانګه اچوونکي ونه غواړي، چې خپل تجارت یا کاروبار ته پراختیا ورکړي، دوی خپله پانګه مصـــؤنه نه احســـاســـوي او د خپلې پانګې اچونې یا کارګاه د ملي کېدلو له درکه ډار احســـاســـوي، د دوی د اجناســـو لپاره تقاضـــا محدودوي، د دوی د تولیداتو

تعویضـــي اجناس تولید شـــوي وي، نو د دوی لپاره دا بهتره ده، چې له Transfer Pricing څخه ګټه واخلي.
د Transfer Pricing له امله دولت کم ټکس وضــــع کوي، کارګران کمه اجوره اخلي او مصـرف کوونکي باید لوړ قیمت تادیه کړي، نو د ځوان صـنعت په نظر کې نیولو سـره څو ملیتي کمپنۍ په دولتونو فشـــار راوړي، ترڅو په واردېدونکو اجناســو اعظمی حد تعرفې وضع کړي او د دوی له پرمختیایي هېوادونو څخه د اسعارو انتقالولو ته ادامه ورکوي، چې دا ټول د پرمختیایي هېوادونو د تادیاتو په بیلانس منفي اغېزې لري.

- په کورني اقتصاد باندې ناوړه اغېزې:

دا اثرات په لاندې توګه دي:
a) د پروفیســر بهارامان لـه نظره د څو ملیتي کمپنیو فعالیتونـه د پرمختیایي هېوادونو د پلانونو له اهدافو ســره مطابقت نه لري، په داســې حال کې چېداخلي کمپنیو ته د داخلي قوانینو په اســاس ســهولتونه په نظر کې نیول شــوي دي او دوی د داخلي پلانونو د اهدافو مطابق فعالیت کوي. څو ملیتي کمپنۍ لوی قدرت په اختیار کې لري، دوی د تمویل په برخه کې داخلي منابعو ته اړتیا نه لري او د هغو د تحرکاتو چندان پروا نه ساتي.

B ) لکه چې مخکې وویل شول چې څو ملیتي کمپنۍ د خپل فنډ د زیاتولو لپاره په بهرنیو منابعو تکیه کوي، همدارنګه دوی کولای شي چې د یو هېواد پولي پالیسي تر خپل نفوذ لاندې راولي لکه؛ که چیري د یوه هېواد مرکزي بانک محدوده پولي پالیسي Restrictive) (Monetary Policy تعقیبوي، نو د څو ملیتي کمپنیو بهرنی فنډ د مرکزي بانک دغه هدف زیانمن کولای شي.
C ) څو ملیتي کمپنۍ دا ورتیا لري چې خپلې منابع نورو هېوادونو او خپل مرکز ته انتقال کړي، همدارنګه داسې هم کېدلای شي چې دوی خپله پانګه له هغو هېوادونو څخه چې په هغوی کې ټکسونه لوړ وي، هغو هېوادونو ته چې نسبتاً ټیټ ټسکونه لري انتقال کړي.
D ) څو ملیتي کمپنۍ د دولتونو په پالیسیګانو کې هم مداخله کوي، همدارنګه دوی د هغو روابطو په ساتنه کې چې دولت ضعیف وي، د خپلو شخصي قوانینو په تنفیذ کې کوشش کوي.

- . سیاسي مداخلات:

داسې هم شوي دي چې څو ملیتي کمپنیو د کوربه هېوادونو په سیاسي امورو کې مداخله کړي او په قانوني او غیر قانوني ډول یې د خپلې خوښې د حکومتونو حمایت کړی دی. دوی عامه پالیسي داسې تر خپل کنټرول او تاثیر لاندې راولي چې د دوی ګټې پکې خوندي ساتل شوې وي.

څو ملیتي کمپنۍ له پالیسي جوړوونکو، لیډرانو، سیاستوالو،پارلمانیانو او متنفذینو سره روابط لري او هغوی ته رشوتونه ورکوي تر څو د دوی ګټې خوندي کړي، دوی اکثره د کوربه هېوادونو قوانینو او مقرراتو ته درناوی نه کوي. داسې ویل کیږی، چې دنویمو کلونو لومړۍ لسیزه کې یوې کمپنۍ د بلی سره په سیالی کی له دغه هیواد څخه د ګازو د نللیکی او ددغه هیواد په منابعو د راتلونی لاسبری په خاطر یوې ځانګړې وسله والې ډلی سره ددغه هویاد دجنوب ختیز ګاونډي په مرسته، د قدرت په ترلاسه کولوکې کمک وکړ، خد هغه ډله او سنجول شوی پلان ډیر کامیاب نه و، نو هغه ډله وروسته بیا د (افراطی اود تروریزم د حامی) په نوم له واکه وغورځول شوه. همدا رنګه داسې هم ویل کیږي چې United Brand Co په هندوراس (Honduras) کې چارواکو ته رشوت ورکړی وو ترڅو د هغوی په ګټه د ټکس اندازې ته تغییر ورکړي. په ۱۹۸۰ کال کې د International telephone telegraphic company کوشش وکړ چې د چیلي د جمهور رئیس په توګه د Salvador د انتخابېدو مخنیوی وکړي، خو کله چې داسې ونه شول او نوموړی د جمهور رئیس په توګه وټاکل شو، نو دوی د نوموړي د راپرځولو لپاره په مختلفو قانوني او غیر قانوني تکتیکونو لاس پورې کړ او همدارنګه دوی د نوموړي د رقیب کاندید Allessandri حمایت کاو، او د هغه لپاره به یې د کمپاین کولو فنډ برابراو او همدارنګه ډېر نور مثالونه په لاتینه امریکا او نورو هېوادونو کې د یادولو وړ دي. په ډیرو پرمختیایی هیوادو کی د ملی –دیموکراتیکو او مترقی ځواکونو ځپل او دارتجاعی ډلو واک ته رسول ددغو نیوکلونیالیستی اهدافو مثالونه دی.

- ټولنیزې اغیزې:

کله چې څو ملیتي کمپنۍ په بهرنیو هېوادونو کې پانګه اچونه کوي نو دوی نه یوازې دا چې له ځان سره بهرنی پرسونل، انجنیران، تخنیکګران، منیجران، نقشه لیکوونکي، د کیفیت کنټرولوونکي، محاسبان او نور راولي، بلکې بهرنی کلتور، میخاني، ټلویزیونونه، فیشن او نور رواجونه هم له ځان سره راوړي. د ډانس کلپونه، میخاني او نور د فحشا خپروونکي په نوموړو هېوادونو کې په فعالیت پیل کوي چې دا او دې ته ورته نور د کوربه هېواد اجتماعي او فرهنګي ژوند متاثره کړي.

همدارنګه له دې ټولو بهرنیو عواملو سره به یو داسې نوی نسل رامنځته شي چې دوی به د خپل تاریخ، ملی ویاړونو، دود-دستور، مشرانو او خپلو عالی اخلاقی سجایاوو سره بیګانه وی، دوی به په نړېوال ازاد بازار یا ازاد اقتصادي سیستم عقیده ولري، خولیبرال اقتصادی نظام نه به ګټه اوچته نشی کړای، دا ځکه چې دغه نظام د دوی هیواو سره، د دوی په اوسنیو شرایطو کی توافق نلری، بلکې دوی باید دملی دولت په ارشادی رول سره خپل ملی اقتصاد جوړ کړی.

د دې امکان هم شته چې د کارګرانو یو نوی منظم ټولګی به رامنځته شي چې دوی به ښې وظیفې، ښه معاش د وظیفې ښه امنیت او نور ښه امتیازات ولري، دغه مثال یو شمیر هیوادو کی ولیدل شو، خو په ډیرو نورو کې ونه لیدل شو، لکه : د Toyota, Exxon Mobile, Shell Group, Armaco, Hitachi, general Motors او نورو کمپنیو کارګران چې دوی د نورو

عادي کاګرانو په نسبت په ښه موقف کې دي چې د دغو کارګرانو غوښتنو ته دکوربه هیاد داخلي موسسات ځواب نشي ویلای او نه ورسره سیالی کولای شی. دا ځکه چی پورتنۍ کمپنۍ، دپرمختیایی هیوادو د اداراتو په پرتله ډیرې پیاوړې کمپنی دي.

- د نړیوال کنټرول کموالی:

څو ملیتي کمپنۍ په غریبو هېوادونو کې د دوی د استثمار لپاره پانګه اچوونه کوي، دوی په نوموړو(کوربه) هېوادونو کې د خپلو اجناسو لپاره لوړ قیمتونه وضع کوي او د پرمختیایي هېوادونو په سیاسي چارو کې مداخله کوي او په دغو هېوادونو کې د دوی د فعالیتونو د کنټرول لپاره کومه خاصه اداره وجود نه لري.
څو ملیتي کمپنۍ نه د کوربه هېوادونو داخلي او نه نړېوالو قوانینو ته پاملرنه کوي، دوی د امپریالستانو نوي ملکري دي. مخکې به دوی د اسیا، افریقا او لاتیني امریکا د فقیرو هېوادونو د استثمار لپاره په سیده توګه او ذاتاً په نوموړو هېوادونو کې موجود ول، خو اوس دوی د پرمختیایي هېوادونو څخه په زرګونو میله لرې په خپلو مراکزو کې ناست دي او هېوادونه استثماروي.

۳. د انتقادونو په اړوند د څو ملیتي کمپنیو نظر:
مخکې مونږ د څو ملیتي کمپنیو مثبت او هم منفی رول باندې خبرې وکړی او ددوی منفی رول باندې موځینې انتقادونه ولوستل، مګر له دې کمپنیو څخه دفاع کوونکي یو تعداد دلایل وړاندې کوي، تر څو د دې کمپنیوو اهمیت ثابت ککړي چې هغه په لاندې ډول دي:
الف) یو شمیر نظریه ورکوونکی دا هم وایی چې : څو ملیتي کمپنۍ تر ډېرو بحراني اقتصادی شرایطو لاندې کار کوي، دوی له فوق العاده محدودو بازاراونو، د خامو موادو له محدودې عرضې، په تجارتي اتحادیو کې له اعتصابونو، په میزبان ملک کې له اداري تشریفاتو او له یو سخت مالیاتي سیستم سره مخامخ کیږي، سیاسي ارګانونه اکثره له دې شرکتونو سره غیر دوستانه چلند کوي، دوی اکثراً د خپلو کارخانو او شتمنۍ په ملي کیدلو ډاریږي، بې له دې چې دوی ته یې تاوان ورکړي، نو په داسې یو حالت کې دوی څنګه کېدای شي چې استثمار ګران وي.
ب ) د څو ملیتي کمپنیو مالکان وایي چې مونږ له هغې پانګې څخه چې له دې هېوادونو څخه یې د ګټې په حیث وباسو، ډېره زیاته پانګه دغو هېوادونو ته له ځان سره دو ته هم وراړولې ده. دوی وایي چې مونږ د دې هېوادونو لپاره د هغو شیانو تولیدول ممکن کوو چې مخکې دوی نه شو تولیدولای. د اوږدې مودې د ګټې د لاسته راوړلو لپاره باید په ومړي سر کې خلک لوړ قیمتونه قبول کړي، نو په دې اساس هغه ګټه چې بهرنۍ پانګه اچوونه پورې تړلې ده لکه د بهرنیو اسعارو ذخیره، د صنعتي توب بنیاد اېښودنه او د ورداتو تعویض د پانګې د وتلو څخه زیاته وي.
ج ) د ټکنالوژۍ د موضوع په برخه کې څو ملیتي کمپنۍ دا جواب ورکوي چې په دې کې هېڅ شک نشته چې عصري ټکنالوژي سرمایه بره (پانګه کښه) ده، مګر له دې ټکنالوژۍ څخه د استفادې په نتیجه کې د منابعو سپما رامنځته کیږي، د منابعو پریماني به راشي د کومو

په واسطه چې په اينده کې اجناس توليدولای شو، د توليد شوو اجناسو ترکيب کوونکي به تبديل شي او په زيات مقدار اجناس به توليد شي.
په دې کې شک نشته چې په لنډه موده کې به د استخدام سطح لوړه نه شي، مګر د صنعتي توب پيل به کارګرانو ته تقاضا لوړه کړي چې په نتيجه کې به د استخدام سطح لوړه شي، بناً په اوږده موده کې به د استخدام فرصتونه پراخ شي.
د ) څو مليتي کمپنۍ په لاندنيو نيوکو باندې ګوتنيونه او اعتراض کوي چې ګويا دوی ترسره کړې دي.
له مالياتو څخه تښتېدنه، محلي سياستونو ته غاړه نه ايښودل، محلي قوانين په نظر کې نه نيول، په کامل ډول ګټه په نظر کې نيول او په محلي پرمختګ باندې خواشيني کېدل.
په دې باره کې څو مليتي کمپنۍ په دې نظر دي چې هر يو که داخلي پانګوال وي او که خارجي ټول يو ذهنيت لري او هغه هم د ګټې اعظمي کول دي، دوی ډېر علاقمند دي چې ارزانه خام مواد او کارګره قوه لاسته راوړي، دوی په هغو ځايونو کې پانګه اچوونه کول غواړي چې هلته زيات سهولتونه او امتيازات (لکه د دولت لخوا امتيازات) موجود وي، هغه که په داخل د هېواد کې وي او يا هم له هېواد څخه دباندې وي.
۴. په څو مليتي کمپنيو باندې کنټرول:
سره له دې چې څو مليتي کمپنۍ زياتې ګټې لري د دې تر څنګ د نظريو يو داسې اتفاق موجود دی چې په دې کمپنيو باندې بايد په نړېواله سطحه يو حقيقي کنټرول موجود وي، کوم چې د دې کمپنيو فعاليتونه کنټرولوي.
په دې برخه کې Prof. Kindle Berger او Gold Burg د GAAT په شان د سازمانونو د تاسيس
کولو وړانديز کوي، داسې سازمانونه چې هغوی دارنګه قوانين وضع کړي چې هغه د ټولو هېوادونو لپاره دمنلو وړ وي او همدارنګه دا قوانين د څو مليتي کمپنيو لپاره هم د منلو وړ وي او د دوی له کړو وړو او رويې سره هم رابطه ولري او دا ډول ميتودونه بايد طرح شي چې نړېوالې پانګونې ته پراختيا ورکړي، د دې فيصلې په اساس يو بل وړانديز شوی دی چې يوه نماينده ګي بايد تاسيس شي چې دا به د يو کامل صلاحيت لرونکي ارګان په شان نه وي يا په بل عبارت دوی به يوه موضوع له تحليل څخه وروسته وړاندې کوي او دوی به له دواړو خواوو څخه غواړي چې اوضاع سمه وڅاری او پرمختګ ورته ورکړي، د دغه وړانديز په اساس د OECD ( Organization for Economic Cooperation and Development)د غړو تر منځ په دې موضوع کې ځينې توافقات رامنځته شوي دي.
په ۱۹۷۶ کال کې پرمختللي هيوادونه د څو مليتي کمپنيو د اداره کولو او کنټرولولو په لاره او طريقه باندې يو توافق ته ورسېدل مګر دا کنټرول او اداره د اختياري محدوديتونو Voluntary Restraints په شان وو.
کله چې په ۱۹۷۲ کال کې د ميزبان هېوادونو په سياست کې د څو مليتي کمپنيو د مداخلې موضوع ډېره مطرح شوه، نو ملګرو ملتونو د ماهرانو يو ګروپ جوړ کړ کوم به چې د څو مليتي کمپنيو په باره کې راپورونه اماده کوي. علاوه له دې نه دا ګروپ به د کنټرول کولو

لپاره ځيني لارې طرح کوي او دوی به د مستقيمې خصوصي بهرنۍ پانګه اچوونې د توافقاتو په هکله نورې لارې پيدا کوي.
د دغو ماهرانو د سپارښتني او مشورې په اساس ملګرو ملتونو دوه موسسات يا نهادونه رامنځ ته کړل :

Center on Transnational Corporation

Commission on Transnational Corporation

دا کميسون به د هيوادونو د نماينده ګانو څخه جوړ وي، دا به د يو نهاد يا موسسې په شکل وي چې د څو مليتي کمپنيو په مقابل کې به موضوعات تحليلوي او علاوه له دې دا نهاد (سازمان) به پورته ذکر شوی مرکز تحليلوي.
نړيوال بانک هم يو سازمان رامنځته کړ (International Center for Settlement on Investment Disputes) يعنې د پانګه اچووني د مشکلاتو او مناقشاتو د فيصله کولو مرکز.
مګر دا سازمانونه د وروسته پاتې هېوادونو لپاره ډېر کامياب نه وو او نه هم دوی ورسره علاقه درلودله خو د پرمختللو هېوادونو لپاره ښه ګټورثابت شول.

## په افغانستان کې بهرنۍ پانګه اچونه

۱. په افغانستان کې د بهرنۍ پانګه اچوونې تاريخچه:
له ۱۳۰۰ هجري شمسي کال نه مخکې افغانستان ډير لږله اقتصادي او صنعتي پرمختګ څخه برخمن و او له بل پوره د بهرنۍ پانګه اچوونې لپاره کوم خاص قانون هم وجود نه درلود او همدارنګه کورنی بازار ډېر کوچنی وو او له بل پلوه عنعنوي توليداتو ته د صنعتي توليداتو په نسبت تقاضا ډېره وه. نو بناً بهرنۍ پانګه اچوونې کمې ترسره شوې وي او يوه اندازه چې ترسره شوې وې هغه هم د دولت لخوا ترسره شوې وې. هغه اصلاحات چې امير شيرعليخان شروع کړی وو، د انګريزانو ددسايسو، لاسوهنو او کورنی جګړی له امله په اوبو لاهو شول. غازی امان الله خان د استقلال له ترلاسه کولو وروسته د اصلاحاتو، پانګونی او د داخلی توليداتود ترقی لپاره کلکه ملا وتړله. دغه مدبر او ترقيخواه پاچا نوی لوايح او مقررات جوړ او دداخلی پانګونی او توليداتو د تشويق او ودی لپاره يې لاره هواره کړه.
وروسته له دې کال څخه له بهرنيو هېوادونو سره روابط رامنځته شول او ځينو پانګه اچوونکو په افغانستان کې له پانګه اچوونې سره علاقه وښودله.
په ۱۳۳۳ هجري شمسي کال کې د يو امريکايي شرکت په مرسته د اريانا افغان هوايي شرکت رامنځته شو، دا هغه مهال و، چې د پانګونې د قوانينو له مخې په ګډه پانګه اچوونه کې د کورنۍ پانګې مقدار ۵۱٪ شرط و(داځکه چې ملی سرمايه د خارجی سرمايی تر تاثيرر لاندی رانشی، بلکی ملی پانګه حد اقل قوت کی وی، خو که ملی پاګه له ۵۱٪ څخه زياته لا ښه

خبره ده)، یعنې د وخت حکومتونو نه پرېښودل چې بهرنیان په زیاته پیمانه پانګه اچوونه وکړي، بهرنیانو یوازې په دولتي پروژو کې کولای شول چې پانګونه وکړي، خو څو وروستیو لسیزو جنګ جګړو زمونږ ګران هېواد داسې ونړاوه چې هېڅ بهرني کس دې خوا ته راوهم نه کتل، پانګه اچوونه خو لا په ځای پرېږده.
په ۱۳۴۵ ش. کال کې د بهرنیو پانګه اچوونو د قانون له نافذ کېدلو نه وروسته دغو پانګه اچوونو یو رونق پیدا کړ او د خصوصي پانګه اچوونو مقدار تر دې کال پورې ۴۴۴۵۷۳۵۲ $ امریکایي ډالرو ته رسېدلی و چې په ۱۸۱ صنعتي پروژو کې ترسره شوي وو او د بهرنۍ پانګه اچوونې مجموع چې د ۱۸ پانګه اچوونکو په واسطه ترسره شوې وې ۶۳۳۵۱۱۳ $ امریکایي ډالره ته رسېدله، مګر د کورنیو جګړو له پیل کیدو څخه وروسته خصوصي پانګه اچوونې کمې شوې.
په ۱۳۸۱ل. کال کې د مؤقتي اداري په رامنځته کېدو سره خصوصي پانګه اچوونې زیاتې شوې چې په دې پانګه اچوونو کې د بهرنۍ پانګه اچوونو رول د پانګې د کمښت له امله ډېر د پام وړ نه وو، مګر بیا هم بهرنیو پانګه اچوونو د پام وړ رشد ونکړ او هره ورځ د بهرنیو پانګه اچوونکو علاقه کمېږي چې دا مختلف عوامل لري د مثال په ډول د کافي امنیت نشتوالی د بهرنۍ پانګه اچوونې او پخپله د بهرنیو پانګه اچوونکو له مهمو مانعینو څخه ده، همدارنګه د مالي سیستم ضعف هم د بهرنۍ پانګه اچوونې لپاره یوه مانع ده .

- له ۲۰۰۳ کال نه راورسته په افغانستان کې د پانګه اچوونې حالت:

د لاندیني جدول څخه معلومېږي چې په اولو کلونو کې د ساختمان په برخه کې ډېره زیاته پانګه اچوونه ترسره شوې ده، نسبت د کرنې، خدماتو او صنایعو سکتورونو ته، ځکه په هغه وخت کې اکثره ساختمانونه یا له منځه تللي وو او یا یې بېرته ترمیم ته ضرورت درلود او له بل پلوه دې ډول پانګه اچوونو ډېره ګټه درلوده او ګټه یې ژر لاسته راتلله او د پانګې اچوونې خطره یا Risk هم کم وو، نو بناً د ساختمانونو جوړول, ته کافي تقاضاه موجوده وه.

- په ساختماني سکتور کې مستقیمه بهرنۍ پانګه اچوونه:

په ساختماني سکتور کې مستقیمه بهرنۍ پانګه اچوونه په ۲۰۰۳ کال کې ۱۸۸، ۷۵ میلیون ډالره وه چې دا مقدار په ۲۰۰۴ کال کې ۱۱۲ ، ۶ میلیون ډالرو ته راښکته شو چې ورو ورو دا مقدار په نورو کلونو کې په کمېدو شو. په ۲۰۰۵ کال کې ۷۴، ۶ میلیون ډالرو ته راښکته شو په ۲۰۰۶ کال ککې ۸۶، ۶ میلیون ډالر او په ۲۰۰۹ کال کې خصوصي بهرنۍ پانګه اچوونه په نوموړي سکتور کې ۳۴، ۹ میلیون ډالره وه همدارنګه په نوموړي سکتور کې د کمپنیو تعداد هم په کمېدو شو مثلا په ۲۰۰۳ کال کې ۱۳۶ کمپنۍ راجستر شوي دي.
دا چې ولې دا پانګه اچوونې کمې شوې دي د دې دلیل د امنیتي مشکلاتو تر څنګ د بازار مشبوع کېدل او د کورني شرکتونو رشد هم دی او په دې سکتور کې په نوموړو کلو کې په لاندې برخو کې فعالیتونه شوې دي د کاني موادو راویستل، د ساختماني موادو د تولید لپاره د دروازو او کړکیو جوړول او د دې په شان نورې بېلګې. پرته له دې د زیرمو د ودانولو په

برخه کې په زياته اندازه بهرنۍ مرستې هم شوې دي او کورنيو او بهرنيو موسساتو هم په دې لاره کې د پام وړ پيسې لګولي دي.

- د خدماتو په سکتور کې مستقيمه بهرنۍ پانګه اچوونه:

د خدماتو سکتور هم په زياته پيمانه بهرنۍ پانګې راجلب کړې دی د خدماتو په سکتور کې بانکونه، مخابراتي شرکتونه، شفاخانې او تعليمي موسسات دي، دغه سکتور د لاندنيو عواملو په اساس په زياته اندازه بهرنۍ پانګې راجلب کړې دي.

۱. د کافي تقاضا موجوديت او د خدماتو د عرضې کموالي.

۲. په ډېر کم وخت کې د پانګې له زياتې ګټې سره د پانګې بېرته راګرځېدل.

۳. په خامو موادو باندې عدم اتکا لکه د صنعت سکتور ځکه که د صنعت سکتور ته متوجه شو، نو ليدل کيږي چې د خامو موادو په قيمت کې تغييرات په صنايعو کې زيات مشکلات راولاړوي، که څه هم خام مواد تر يوې اندازې پورې د خدماتو په سکتور باندې هم تاثير لري لکه د نفتو د قيمت لوړوالی په مخابراتي سکتور يا هم ويلای شو چې د نفتو د قيمت لوړوالی د حمل و نقل د کرايي د لوړوالي سبب ګرځي.

۴. غير اقتصادي عوامل: د خدماتو د سکتور لپاره دکرنی اومعادنو په مقايسه کافي امنيت موجودو، ځکه د دې سکتور فعاليتونه اکثره په ښارونو کې وي.

د خصوصي خدماتي موسساتو نه شتون او د دولتي موسساتو د بې کفايتۍ له امله په دې سکتور کې بهرنۍ خصوصي پانګه اچونه په ۲۰۰۳ کال کې ۴، ۶۳ ميليون ډالره وه او په ۲۰۰۴ کال کې د امقدار ۷، ۸۸ ميليون ډالرو ته لوړه شوه. په ۲۰۰۵ کال کې ۵، ۵۲ ميليون ډالرو ته راښ:ته شو او په ۲۰۰۶ کال کې د امقدار بېرته زيات شو او په دې کال کې ۸، ۲۵۶ ميليون ډالر و ته ورسېده. خو په وروستو کلونو کې په دې برخه کې پانګه اچوونه کمه شوه په ۲۰۰۷ کال کې ۱۳۰ ميليونه، ۲۰۰۸ کال کې ۹، ۳۷ ميليون ډالر او ۲۰۰۹ کې ۳۱ ميليونه ډالره پانګه اچونه شوې ده. په دې سکتور کې مجموعا ۱۶۸۸ کمپنۍ ثبت شوې دي چې په مختلفو کلونو کې يې مقدار فرق درلود، خو تر ټولو زياتې په ۲۰۰۳ کال کې ۷۱۷ کمپنۍ او تر کمې په ۲۰۰۷ کال کې ۹۳ کمپنۍ ثبت شوې دي.

د خدماتو په برخه کې زياته پانګه اچوونه په مخابراتو کې شوې ده چې يو شمېر غټو بهرنيو مخابراتي کمپنيو په دې برخه کې پانګه اچوونه کړې ده. لکه افغان بيسم، چې د امريکا د متحده ايالاتو لخوا يې د بيات په واسطه په ۱۳۸۲ کال کې په کار پيل وکړ، روشن (Roshan) چې د اغاخان په پانګونه يې د ۱۳۸۳ کال په وروستيو کې په کار پيل وکړ، MTN چې د فرانسې او لبنان هېوادونو په ګډه پانګه يې په ۱۳۸۴ کال کې په کار پيل وکړ او همدارنګه اتصالات (ETISALAT) چې د عربي متحده امارتو په پانګه اچوونه يې په ۱۳۸۶ کال کې په کار پيل وکړ.

د بانکونو په برخه کې هم يو شمېر بهرنۍ پانګونې شوې دي.

۱. AIB Bank چې د افغانستان او امريکا متحده ايالاتو په ګډه پانګونه جوړ شوی دی.

۲. الفلاح بانک: چې ا یو عربي بانک دی او بنسټ يې د اسلامي بانکي سيستم په اساس ايښودل شوی دی.
۳. نشنل بانک او پنجاب بانک: چې دا دواړه د پاکستان په پانګونه جوړ شوي دي.
۴. سټندرډ چارټر بانک: دا يو انګليسي بانک دی.
۲- ۶ د صنعت په سکتور کې مستقيمه بهرنۍ پانګه اچوونه:
د صنعت سکتور چې د يو هېواد د ټولو نه ډېر مهم سکتور دی اوسنيو پرمختللو هېوادونو چې ځومره پرمختګ کړی دا د دصنعت د سکتور د پرمختګ له امله دی، ځکه د صنعت د سکتور په پرمختګ سره نور ټول سکتورونه پرمختګ کوي.
په افغانستان کې هم په دې وروستو کلونو کې تر يو حده پورې صنعت پرمختګ کړی دی او يو څه اندازه بهرنۍ پانګې يې د صنعت په برخه کې راجذب کړي دي، خو د نورو سکتورونو په نسبت يې برخه کمه ده چې علت يې په هېواد کې د لازمو امکاناتو نشتوالی د، لکه د برېښنا نشتوالی، د صنعتي پارکونو نشتوالی، همدارنګه ځرنګه چې افغانستان د بحر سره پوله نه لري نو ځکه د ترانسپورټيشن د مصارفو د زياتوالي له کبله د هغه خامو موادو قيمت چې له بهر څخه راځي ډېر لوړ دی، همدارنګه د امنيت نشتوالی هم په دې لاره کې ي، خنډ ګرځېدلی دی، په ۲۰۰۳ کال کې ۳۰ بهرنۍ کمپنۍ د صنعت په برخه کې ثبت شوي دي چې مجموعي پانګه اچوونه يې ۸، ۱۴ ميليون ډالره وه، خو په ۲۰۰۴ کال کې دا مقدار ډېر لوړ شوی دی او ۲، ۳۲ ميليونه ډالره خارجي پانګه اچونه د ۳۴ کمپنيو په واسطه شوې ده او په ۲۰۰۵ کال کې ۱، ۴۸ ميليونه ډالره په ۶۸ کمپنيو کې پانګه اچوونه شوې ده، خو وروسته د صنعت په برخه کې بهرنۍ پانګه اچونه بېرته کمه شوې ده چې ۲۰۰۶، ۲۰۰۷، ۲۰۰۸، او ۲۰۰۹ کلونو کې په ترتيب سره ۶، ۲۹ ميلون ډالر په ۷۹ کمپنيو کې، ۶، ۷ ميليون ډالره په ۲۳ کمپنيو کې، ۱۲ ميليونه ډالره په ۳۵ کمپنيو کې او ۹، ۸ ميليونه ډالره په ۱۵ کمپينو کې ترسره شوې ده چې په دې وروستيو کلونو کې د پام وړ کموالی راغلی دی.
په مجموعي ډول له ۲۰۰۳ کال څخه تر ۲۰۰۹ کال پورې د صنعت سکتور کې د ۲۸۴ بهرنيو کمپنيو په واسطه ۱۵۴۵۰۹۴۰۹ ميليونه ډالره پانګه اچونه شوې ده.
۲- ۷ . د کرنې په سکتور کې مستقيمه بهرنۍ پانګه اچوونه:
د کرنې سکتور د افغانستان د خلکو لپاره يو اساسي سکتور دی چې د مجموعي نفوس نقريباً ۸۵ ٪ خلک په دې سکتور کې مصرووف دي او د GDP ٪۳۶ تشکيلوي، په دې سکتور کې تر ټولو زياته بهرنۍ پانګه اچوونه په ۲۰۰۳ کال کې شوې ده چې )، ۲۱۵ ميليونه ډالره وه خو وروسته دا اندازه ډېره کمه شوې ده چې اصلي علت يې د امنيت نشتوالی دی. په ۲۰۰۴ کال کې ۶، ۱ ميليونه ډالره شوې خو په درېو نورو کلونو کې دا پانګونه نسبتاً ښه وه چې په ۲۰۰۶، ۲۰۰۷ او ۲۰۰۸ کلونو کې په ترتيب سره ۱، ۳۶. ۹، ۳۵ او ۹، ۳۱ ميليون ډالره وه خو په ۲۰۰۹ کال کې دا بېرته ۵، ۱۱ ميليونه ډالرو ته راکمه شوه په دې ټولو کلونو کې په افغانستان کې د کرنې په برخه کې د خصوصي بهرنۍ پانګه اچوونې مجموعي مقدار په ۲۸۶ کمپنيو کې ۲۹۵۲۸۳۵۲۲ ډالره وو.

کرنیز سکتور د افغانستان یو ډېر مهم سکتور دی، چې د هېواد زیاتره وګړي په دې برخه کې بوخت دي خو دا سکتور تر اوسه پورې په افغانتسان کې په عنعنوي شکل پاتې دی، د خلکو د مؤلدیت سطحه ډېره ټیټه ده نو د دې لپاره چې دې سکتور ته پرمختګ ورکړل شي او د خلکو مؤلدیت سطحه لوړه شي نو کرنه باید میکانیزه شي، هېواد ته باید نوي ماشینونه راوړل شي او کرنه باید په ټکنالوژۍ باندې سمباله شي.

په یوه هېواد کې پانګه اچوونه په هره برخه کې چې وي یو خاص ارزښت لري او په هېواد کې هېوادونه د استعمار په څیر پانګوني کوي او ځیني هم د بشري خواخوږۍ په ډول.

د کرنې په سکتور کې بهرنۍ پانګه اچوونه یو خاص اهمیت لري، ځکه په دې ډول زیات هغه شیان له بهر څخه راځي چې خلک ورسره اشنا نه وي، چې په نتیجه کې یې کرنه په نوې ټکنالوژۍ سمبالېږي، عصري کرنیز ماشینونه او تولید نور وسایل واردېږي. بهرنۍ او کورنۍ تجربې سره یو ځای کېږي او ي،ه نوې کرنیزه فضا منځ ته راځي،، بزګران له نوو کرنیزو طریقو سره اشنا کېږي. اصلاح شوي تخمونه هېوادونو ته راځي، زمونږ کرنیز محصولات په بېلابېل ډول روزل کېږي او بهر ته استول کېږي او په یو خاص شهرت سره پلورل کېږي، زمونږ هېواد افغانستان چې یو کرنیز هېواد دی که چیرې دا پانګې په سمه توګه استعمال شي نو کولای شو چې زیات شمېر عایدات له دې لارې لاسته راوړو. د بېلګې په توګه مونږ د هالنډ او نیدرلنډ هېوادونو څخه یادونه کوو چې یواځې په کرنه او مالدارۍ باندې کوم سرحد ته رسېدلی دی، چې نن د پرمختللو هېوادونو په قطار کې ترې یادونه کېږي او ۷۰ ٪ عواید د کرنې او مالدارۍ له لارې لاسته راوړي.

لنډیز

پرمختیایی هیوادونه د خپلی پرمختیا او اقتصادی – اجتماعی ثبات ساتلو په خاطر یو شمیر سیاستونه او پالیسیګانی عملی او اجرا کولای شی . په دې کې یوه هم د پولی پالیسی طرح او پرمخ بیول دی. پولی پالیسی یا سیاست هغه تدابیردی چی دهغو په واسطه مرکزی بانک د پیسو داخلی او خارجی ارزښت عیاروی. د پولی سیاست واک د دولت په لاس کې وي، چې د دی د تطبیق او اجرا لپاره  اووه مهم وسایل په لاس کې لري، لکه: دپیسو د نشر صلاحیت، حداقل سپما، د آزاد بازار پالیسی، مجدد تنزیل، د طلا او اسعاروپالیسی، دکریدیت پالیسی او له نورو مالی موسساتو څخه شخصی غوښتنه(خواهش).

د پرمختیایی هیوادونو د پولی تمویل په برخه کې  هم بیلابیل نظریات شته.  د دغو نظریاتو لنډیز او نتیجه   داده چې که پولی پالیسی ښه تطبیق شی، نو په یوه پرمختیایی هیواد کې د اقتصادی ثبات او پرمختګ سره مرسته کولای شی. متاسفانه په افغانستان کې په نویمه لسیزه کی د هیواد مالی موسساتو ته ډیر دروند زیان ورسید، په ډیرو ستونزو دولت وروسته تر ۱۳۸۲ یو پولی ریفورم اجرا او د ګړندی انفلاسیون مخه یی ونیوله، خو لا هم د پولی پالیسی په برخه کی ستونزی شته. په اوسنی وخت کې دولت ا و مرکی بانک مالی موسسات او خصوصی بانکونه د  غوره قانونی بنسټونو په لرلو او د بهرنیو مرستو په ملاتړ جوړ او رهنمایی او حمایه یی کوی.

داهم یاده شوه چې زمونږ هیواد هم لکه د یو شمیر نورو پرمختایی هیوادونو په شان دپولی پالیسیو په تطبیق کې خینی ستونزی لری. ددغو ستونزو علتونه په لنډ ډول دا دي: د پولی موسساتو کمه تجربه او لږ پرمختګ ، بی اغیزی فعالیت او د متخصص او ماهر کادر نه لرل، د لویو پروژو په پرتله ژرثمره او کوچنیو پروژو ته لومړیتوب ورکول، ضعیف صنعت، ضعیفه اداره او په اداره د خلکو بی باوری، د نظامونو بی اعتباری، دعلمی پلانونو نشتوالی او د کارګری اتحادیو نشتون. نو ډیره ضروری ده چې په پرمختیایی هیوادو کې پولی سیاستونه خپل اغیزمنتوب په ډیر ښه ډول وپیژنی او ترسره یې کړی.
هغه یوه بله موضوع چې د پرمختیایی هیوادونو لپاره ډیره مهمه ده، د بهرنیو پانګونو ژور تحلیل دی. دې برخه کی هم منفی او هم تر یوې اندازی پورې مثبت اړخونه شته. د څوملیتیزو کمپنیو رول هم هر پرمخیتیایی هیواد کی نظر بل ته توپیر کوی. د څو ملیتیزه کمپنیو د فعالیت برخه کی بیلابیلو اقتصاد پوهانو مختلف نظرونه ورکړی دی چی د هر هیواد د ملی ارزښتونو او ځانګړو دریځونو له مخی باید په پام کې ونیول شی. په افغانستان کی ملی صنعت او ملی پانګونی ته د لومړی ځل لپاره د امیرشیرعلیخان پرمهال پاملرنه وشوه، خو له بده مرغه د انګریزانو د استعماری لاسوهنی او کورنی اړ-دوړ له امله دغه هڅې ناکامه شوی، کله چی افغانستان د شاه امان الله په مشری په ۱۹۱۹م. کال خپله خپلواکی بیرته تر لاسه کړه، نو دغه مترقی شاه پانګونی او ملی صنعت ته هم پاملرنه وکړه، خو د سقوی دوری په ترڅ کی ددغه منور او وطنپال پاچا لاسته راوړنی ټولی له منځه ولاړی، د څلویښتمو، پنځوسمو او شپیتمو کلونو په ترڅ کی بیا ملی صنعت، ملی اقتصاد او پانګونی ته توجه وه، خو کورنیو جګړو هرڅه برباد او دهیواد اقتصادی موسسات او بنسټونه په کنډواله بدل شول، له نیکه مرغه وروسته تر ۱۳۸۰ش. کال څخه وروسته یو ځل بیا کورنۍ او بهرنی پانګونی ته پاملرنه وشوه او داسی تمه کیږی چی د امنیت په ښه کیدو او د مالی او اداری فساد په له منځه تګ سره به اقتصادی وضعیت ښه والی ومومی.

## تمرینات

۱.پولی سیاست یعنی څه ؟
۲.په پرمختیایی هیوادونوکی ولې پولی سیاستونه نشی تطبیق کیدای ؟
۳.په پرمختیایی هیوادو کی د پولی سیاستونو محدودیتونه کوم دی؟
۴.په لنډ ډول پرمختیایی هیوادونو کی پانګه اچونه وواياست،
۵.بهرنۍ پانګه اچونه په لنډ ډول وواياست ؟ همدا رنګه د ځوملیتی کمپنیو ګټې او زیانونه یوبل سره پرتله کړئ.
۶.بهرنۍ پانګونه د کومو علتونو له مخې کیږی؟
۷.غیرمستقیمه پانګونه یعنې څه ؟
۸.د بهرنۍ پانګې اچونې د جذب اغیزمن عوامل کوم دي؟
۹.دپولي سیاست وسایل کوم دي؟ او دبهرنیو پانګونو ګټورتوب او منفی تاثیرات ولیکئ.
۱۰.پرمختیایی هیوادو سره بهرنۍ مرستې څه تاثیرات لري؟

# لومړی څپرکی

## د پلان جوړونې عام ساده مفهوم

د پلان تعریف:
لکه چې وروسته به وویل شي، ډېره ستونزمنه خبره ده چې د بېلابیلو اقتصادي، ټولنیزو،حقوقی او سیاسي شرایطو لاندې د اقتصادي لر لېد (دورنما) پروګرامونو لپاره د مطروحه دندو تعریف یا پلان جوړونه یا بل هر هغه هر اړخیز مفهوم غوره شي چې د ټولو لپاره صدق وعمومي، خو موږ دلته عمدتاً د اقتصادي پرمختیا د مضمون په اړه د پلان لنډ مفاهیم توضیح کوو؛ پلان جوړونه هغه وسیله ده چې د ټاکل شویو موخو پر خوا چې د هېواد د چارواکو له خوا پخوا په پام کې نیول شوي، ټولنه روانوي او لارښوونه ورته کوي. د پروفیسور جهنګان په وینا: موږ د پلان نومونه ډېره زیاته او په ډېرو مواردو کې په کار وو، دا د یو کوچني شخصي کار تدبیر او ترسره کولو څخه نیولې بیا د رسمي او سترو چارو ترسره کولو پورې خپلو خبرو کې راوړو. مګر دلته زموږ موخه له اقتصادي اجتماعي پلان جوړونې (Socio- economic Planning) څخه ده او هغه داسې تعریفولای شو:
پلان جوړونه د هغو تدابیرو مجموعه ده چې د چارو مسؤلین یې په یو ټاکلي وخت کې، یو یا څو هدفونو ته د رسېدلو لپاره په نظر کې لري. یو شمېر اقتصاد پوهان وایي چې د پلان جوړونې علم، په ځانګړو شرایطو کې اقتصادي قوانین د هغو د ټاکلو علتونو په پېژندلو سره او د ټولنې د عوایدو دلوړوالی، د مجدد تولید د عملیې د ښه کولو، داقتصادي پرمختیا د چټکولو له لارې په ډېر ښه صورت د تطبیق وړ ګرځوي. یو شمېر پوهان وایي د پلان جوړونې علم، اقتصادي قوانین په ځانګړو لارو چارو څېړنې لاندې نیسي او د اقتصادي پرمختیا لار پرې هواروي او لرې لېد یې سنجوي.
له پورته تعریفونو څخه دا نتیجه اخلو چې: پلان د هغو منسجمو تدابیرو مجموعه ده چې د هغو په پلي کولو سره په ټولنه کې د بېلابیلو سکتورونو لکه کرنې، صنایعو، مالدارۍ، ټرانسپورټ، کانونو، ښوونې او روزنې، عامې روغتیا، ښار جوړولو، اوبو رسولو او نورو برخو کې هغه اهداف چې د ټولنې د اقتصادي ځانګړتیا او عیني قوانینو یا شرایطو په پام کې نیولو سره په نظر کې وي، ترلاسه شي. د پلان جوړونې په هکله د اقتصاد د علم نامتو پوهانو لکه Dr. Dalton, Prof. Lewis, Dickinson Zeweig, Myrdal او نورو له خوا بېلابیل نظریات ورکړل شوي دي چې داسې یې خلاصه کولای شو:
پلان جوړونه هغه آګاهانه جریان دی چې د ټاکلو اهدافو، د ترلاسه کولو لپاره ترسره کېږي او د راتلونکي لپاره یو له بل سره تړلي فعالیتونه او اقدامات پیش بیني کوي.
د اقتصادي پرمختیا په اړه په مشخصه توګه ویلای شو چې: پلان جوړونه د هغو ټولو تدابیرو مجموعه ده چې د اقتصادي پرمختیا په منظور د یو اقتصادي مقام له خوا هغو اهدافوته د رسېدلو لپاره ترسره کېږي، چې له هغو څخه اصلي موخه د اقتصاد پرمختیا او په ټاکلي

وخت کې د پرمختیایي اقتصاد د مشخصاتو، نښو او معیارونو له منځه وړل او د یو پرمختللي اقتصاد د معیارونو رامنځته کول وي. د اقتصادي پلانونو تیوري یوه نوې اقتصادي ښکارنده ده چې په تېره بیا د شلمې پیړۍ دویمه لسېزه کې یې غوره پایلې ترسترګو شوې.
د پلان جوړونې تیوري لاندیني درې موضوعات را اخلي:
د پلان ټولنیزه او اقتصادي برخه د ټولنې د اړتیاوو د پوره کولو لپاره د مجدد تولید او ملي عاید د لوړولو د تدابیرو عملي والی یا د تطبیق امکانات څرګندوي.
د پلان د اسلوب پېژندلو برخه د اقتصادي تعاملاتو علمي پېژندنه ده چې هدف ته د رسېدلو تجربه شوې لارې چارې څرګندوي.
د پلان د تنظیم برخه، د پلان د تخنیکي او تشکیلاتي چارو ترتیب او په ټولو ټولنیزو او اقتصادي برخو کې د پلان اجراء څېړي. د دغو ټولو برخو تر منځ دیالیکتیکي (سره پیلې) اړیکې شته.
دا چې د اقتصاد علم په مجموع کې هغه ټولنیز علم دی چې د ټولنې پراخو غوښتنو ته محدودې سرچینې بیلوي، په تېره بیا په پرمختیایي هېوادو کې هر راز سرچینې لکه طبیعي، بشري او سرمایوي سرچینې لږې دي، نو له دغو محدودو منابعو څخه ډېره ښه او ګټوره استفاده د یوې ټاکلې کړنلارې لاندې د پرمختیایي اقتصاد راتلونکې مشې جوړوي، داسې خط مشې چې د هغې له مخې له محدودو منابعو اعظمي ګټه پورته شي او هغه بدلونونه رامنځته شي چې موږ تېرو فصلونو کې په ګوته کړل. خو دا خبره باید هرومرو په پام کې ونیسو چې پلان جوړونه یوازې پرمختیایي هېوادونو کې نه تطبیقېږي، بلکې پرمختللي صنعتي هېوادونه هم پلان جوړونه د programming ترعنوان لاندې تطبیقوي.له دې امله چې په دې کورس کې زموږ بحث له یو پرمختیایي اقتصاد څخه دی، نو ځکه په دې هکله زیات تماس نیسو. سره له دې چې نن ورځ په اقتصاد کې د پروګرامینګ (Programming) نومونه هم دود ده، خو په معنا کې هماغه د تدابیرو مجموعه افاده کوي. په دې ډول نه یوازې پرمختیایي اقتصاد، بلکې پرمختللی اقتصاد هم د پلان جوړونې په ذریعه خپل بنسټونه کلکلوي.
په یو پرمختیایي اقتصاد کې د ټولو مادي او معنوي منابعو مناسب تنظیمول د هغوی د ترقۍ راز دی. په پرمختیایي هېوادو کې اقتصادي پرمختګ او وده په عمومي ډول ډېره ورو او ځنډنۍ ده او هغه اقتصادي ستونزې چې دوی ورسره مخامخ دي، پرته د یو مرکزي ارګان له مداخلې په بشپړ ډول له منځه نشي تلای. په دې ډول پلان جوړونه د یوې مرکزي کلکې کړۍ په توګه د پرمختیایي هېواد اقتصاد رهبري کوي، د علم او تخنیک د پرمختګ، د ملي عاید لوړېدو، د اقتصاد دټولو څانګو دایمي او دوامداره اوچتول، د خلکو د ژوند د مادي او معنوي اړخونو ښه کول، د ټولنیز تولید د مثمریت او د کار د مولدیت زیاتول د پلان مهم مفهوم جوړوي.

## د پلان جوړولو نړیوال تجارب

لکه چې وویل شول پلان جوړونه د اقتصادي علومو یوه نسبتاً نوې څانګه ده، نن ورځ هېڅ یو داسې هېواد نشته چې په هغه کې پلان په یوه نه یوه بڼه رواج نه وي. دا ناسمه خبره ده چې پلان جوړونه ګواکې یو اقتصادي ځانګړي سیستم پورې تړلې وبلل شي، بلکې د اقتصاد د علم کلاسیکو علماوو او بیا ان دا چې د شلمې پېړۍ پوهانو په بازار کې د اقتصادي تعادل مسئلې ته ډېر اهمیت ورکاوه. د اقتصاد پوهانو له نظره اقتصادي بې کړکېچه پرمختیا او وده پرته د دولت له مداخلې اوبې له لازمې لاربنوونې ناممکنه ده. په بېلابیلو صنعتي هېوادونو کې د اویایمې لسیزې او وروسته تر هغه د څو اقتصادي بحرانونو له پېښېدلو، د بېکاریو د رامنځته کېدلو (چې په المان کې ان په ۱۰۰ کې تر ۲۱ ورسېده)او د بیو بې ثباتۍ دا وښوده چې باید د اقتصادي- اجتماعي ودې لپاره د دولت له خوا پلان تطبیق شي. د دې ترڅنګ هغو هېوادو ته چې پرمختیایي اقتصاد لري، د خپل ځانګړي خصوصیت له مخې په کلکه سره پلان جوړولو ته اړتیا لري. په تېرره بیا اوسنیو شرایطو کې چې اوس موږ ژوند کوو، له یوې خوا د اقتصادي امکاناتو د لاپراخوالي او برتري طلبۍ تلوسه موجوده ده، له بلې خوا دا یو ضرورت دی چې یو وده موندونکی اقتصاد په منطقی او معقوله توګه استوار شي. د پرمختیایي هېواد وګړي د هغه لوی واټن له کبله چې ټولنیزې پرمختیا له مخې د دوی او د پرمختللو هېوادو ترمنځ موجود دی ځورېږي. د وروسته پاتې هېوادو چارواکي باید ثابته کړي چې کولای شي خپلې اقتصادي ستونزې له منځه یوسي او د علمي معقولو پلانونو په اجراء او تدوین خپل مادي او معنوي ژوند بسیا کړي. لکه هماغسې چې تقریباً ټول پرمختللي صنعتي هېوادونه په یوه ملي مقیاس سره د پلان جوړونې بېلابېل ډولونه عملي کوي، نو پرمختیایي هېوادونه لامجبور دي چې په پلان جوړونه کې ښه تجارب ترلاسه کړي. د نړۍ بېلابیلو هېوادونو په تېره بیا وروسته تر (۱۹۲۳-۱۹۲۹) کلونو اقتصادي پروګرام او پلان جوړولو ته ملا وتړله. تجاربو دا وښوده چې فرانسې، ایټالیا، جاپان او د سکندنویاوي هېوادو کې د اقتصادي پرمختیا د پلانونو طرح یو مناسب کار و. وروسته تردوهمې نړیوالې جګړې ډېرو نورو هیوادونو په پلان جوړونې سره ډېرښه پرمختګونه وکړل. له همدې امله فرانسې له ۱۹٤۹ م. کال راهیسې څو څو ځلې د یوې ټاکلې مودې پلانونه طرح او عملي کړل او مثبت تجارب او نتایج یې تر لاسه کړل، خصوصاً په ۱۹٦۷ م. کال کې د دوی اووم اقتصادي پنځه کلن پلان ډېر بریالی و. برتانیا هم د ٦۰ لسیزې پلانونه او ایټالیې خپل دوه Vanoni Plan او Pieraccini ډېر بریالي تطبیق کړل همدا وخت جرمني هم دا تجربه ومنله او خپل پلانونه یې طرحه کړل، خو جاپان د پنځه کلنو پلانونو پر ځای اوه کلن پلانونه طرح کړل.شوروی اتحاد چې ددوهمې نړیوالی جګړې ترټولودروندباراو درانه تلفات زغملی وو،ددووپرله پسې پنځه کلنوپلانونوپه تطبیق سره بیرته خپله اقتصادی زیربنا ورغاوله اوپه دریم پنځه کلن پلان کې په فضایی څېړنو اودروندصنعت کې کې دنړۍ مخکښ هیوادشو. په همدغه وخت کې Per roux. Masse او Shan field د پلانونو په هکله ځانګړې علمي تحقیقات ترسره کړل خصوصاً V. Luz په ۱۹٦۹ م. کال کې په لندن کې خپل یو اثر Planning for the Market Economy په نوم خپور کړ او په هغه کې یې د فرانسې د اقتصادي پرمختیا تحلیل ترسره

کړ. دوی خصوصاً په اقتصادي پلانونو کې حتی تشویقي- حمایوي مواردو، د شرکتونو ګډې همکارۍ، مستقیمې او غیر مستقیمې سبسایدیي ته پاملرنه وکړه. دوی ځکه هم دقیقو، پیش بیني شویو، لاربښودو پلانونو ته اړتیا درلوده چې ځینو انحصارنو (مونوپولونو) دومره پیاوړتیا وموندله چې ورو ورو یې ټول سیستم (بازار) تر اغېزې لاندې راوست او حتی د (قاتلانه رقابت) وېره موجوده وه، بل دا چې خصوصي متشبثین یا علاقمند نه وو، یا یې دا توان نه درلود چې عام المنفعه تاسیساتو، پروژو (لکه بندونو، ویالو، سړکونو، د برېښنا تاسیساتو، ښار جوړولو،هوایي ډګرونو او نورو) کې پانګه واچوي. نو ځکه د دغو برخو پانګه اچونه او هغه هم په معقوله علمي او پلانیزه بڼه د دولت په غاړه ولوېده او تر ټولو مهمه دا چې د طبیعي شتمنیو او منابعو د ساتنې په هکله هم د دولتي پلانونو دنده ډېره مهمه وه لکه د ځنګلونو ساتنه،دملی اوبوکنترول،دچاپیریال مسایل، د ځانګړو ځایونو ساتنه(لکه ملی پارکونه) او د کرنې او څښلو لپاره د اوبو رسول او نور. دغه راز دولتونو دا اړتیا احساسوله چې باید نوې رامنځته شوی صنایع د وارداتو له رقابت څخه وساتي او د استخدام لازم فرصتونه ایجاد کړي، نو ځکه د پلان جوړولو له لارې یې د بازار د نواقصو اصلاح کولو ته ملا وتړله او منابع او سکتورونه یې ټاکلي لوري ته رهبري کړل.
تر ۱۹۲۸ م. کال پورې مکزیک یو وروسته پاتې هېواد بلل کېده، دغه وخت د دې هېواد جمهور رئیس Plutarco یو اقتصادي پلان تر اجراء لاندې ونیو، چې ډېره ښه پایله یې لرله چې د نوموړې نوم تر اوسه ژوندی دی. دغه راز په ۱۹۳۳ م کال کې ستر سیاستمدار ښاغلی M. Visvesvaraya د ملي عایداتو دوه برابره کېدو لپاره د میسوري پرنسیبونو یو پلان پرمخ بوت، هند د نامتو شخصیت فقید نهرو تر لارښوونې لاندې د پلان لپاره یوه ملي کمیټه رامنځته کړه، مرحوم (ج. ع. ناصر) داسې مدبرانه پلانونه په نظر کې لرل چې دټولو عربي هېوادو لپاره سرمشق کېدای شول. همدارنګه په ۱۹۶۹ م. کال کې د اګست په پنځلسمه د فوق العاده فرمان له مخې دولتي صلاحیت لرونکي ارګانونه د پلان لپاره توظیف شول. الجزایر هم یوه ډېره لوړه دولتي شورا د پلان طرح کولو او د هغه تطبیق کولو ته اړم کړه چې پایله یې له ۱۹۶۹تر ۱۹۷۱ م. کلونو پورې دصنعت په سلو کې ٦۰ زیاتوالی او په استخدام کې په سلو کې ٦۲ زیاتوالی و. په دې توګه دغو تجاربو زیات شمېر نور هېوادونه پلان جوړولو ته وهڅول. په ۱۹٦۰ م. کال کې ۱٤ آسیایي، افریقایي او د لاتیني امریکا هېوادونو د ملګرو ملتونو د څانګې تر نظارت لاندې پلان جوړونه او د اقتصادي اجتماعي پلان تطبیق وآزمایل چې داقتصادی بیلابیلو برخوکې ارقام په منځنۍ توګه په ترتیب سره له ۱۸ څخه ۲٦ ته لوړ شول (په اوسط ډول) نو د لاتیني امریکي نامتو اقتصاد پوه Raul Prebsch ځکه په اقتصادي پلان جوړونه ډېر تاکید کاو. په ۱۹٦۸م. کال کې د پرمختیا د یوې نړېوالې ستراتیژۍ په لور د ملګرو ملتونو د نیویارک کنفرانس دویمې غونډې هم د مثبتو تجاربو له مخې د پلان جوړولو سپارښت وکړ. په ۱۹٦۷ م. کال کې د افریقایي هېوادو پلان جوړوونکو په خپل اووم کنفرانس کې د پلان په هکله خپل تجارب شریک کړل. ملګرو ملتونو د ۱۹٦٥ څخه تر ۱۹۷۱م. کال پورې د ټولنیزو پلانونو د تطبیق په پایله کې په ۳۷ هېوادو کې د اقتصادي ودې زیاتوالی په منځنۍ توګه په سلو کې ٥،٥ وښوده.

## دویم څپرکی

## د اقتصادي پلان جوړونې میتودولوژي

### د ملي اقتصاد د پلان جوړونې د میتودولوژي علمي بنسټونه:

دپلان جوړونې میتودولوژي د دولت داقتصادي پلانونو د طرح د لارو چارو عمومي پرنسیپونو له مجموعې څخه عبارت دی.

د پلان د طرحې د میتودولوژۍ بنسټونه:
د اقتصادي پرمختیایي پلانونو طرح د میتودولوژي د پر نسیبونو په رعایت یا د پلان د طرح د پروسې پر بنسټ ولاړه وي.
د پلان د طرح پیل د ټولنې د اقتصادي وضع مجموعې تحلیل تشکیلوي.
د تحلیل اصلي او بنسټیزې دندې دا دي: د اقتصادي پرمختیا لازمې سطح ته رسېدل، له پلان څخه د مخکي توقع کېدونکو نتایجو ترلاسه کول، د مولدیت اومثمریت ښه کیدل، د اړتیاوو پوره کېدل، د پلان په نه تطبق او نه اجرا کېدو کې د نېمګړتیاوو او نا انډولیو ښودل، د ستونزو د علتونو ښودل او نور.دا ځکه چې هرپلان وروسته تر اجرااوتطبیق څخه په علمی او کره توګه ارزیابی اوتحلیل کیږی او نیمګړتیاوی بیا په بل پلان(دوره) کې اصلاح کیږی.
د تحلیل مهمه دنده د احتیاطي او ناکارول شویو امکاناتو موندل، د مادي غیر تولیدي لګښتونو او ضایعاتو د حل د لارو ښودل، د مالی او پولي منابعو موندل، له زېرمو څخه د کار اخیستنې لارې چارې. د کار د کیفیت لوړول او د کار د مولدیت ښه کول او داسې نور دي. د پلان له دورې څخه دمخه هر اړخیز اقتصادي تحلیل دا امکانات برابروي چې د ټولنې کره(دقیق) او ریښتنې اړتیاوې، په لاس کې د موجودو منابعو څخه استفاده او د پلان لپاره رښتینی بنسټ او امکانات وپېژندل شي، نو د پلان د طرح په وخت کې باید لاندې ټکي نظر کې ولرو:
۱) د ستونزو په هکله د تحقیقي چارو څخه یوه عمومي نتیجه ترلاسه او د تخنیکي پرمختیا لپاره پیش بیني ګانې وڅېړل شي او د پروژو عمومي تحلیل صورت ونیسي.
۲) د پلان د دورې دندې وټاکل شي، اهدافو ته د رسېدو وسایط او لارې چارې په نظر کې ونیول شي، مادي منابعو ته د پلان اړتیا تثبیت، مادي نعماتو ته د وګړو اړتیا سنجش، د نظروړ خدمات مطالعه او د هغو د ترلاسه کېدو امکان پیش بیني او د ملي اقتصاد د ممکنه ودې پایه(انډول) په نښه شي.
۳) د پلان د جوړولو درېیمه مرحله د ډېرو مشخصو او کانکریت (ټاکلو) اهدافو په نښه کول او ځای پر ځای کول او د ملي اقتصاد په چوکاټ کې ټاکلې(معینې) دندې مشخص کول، لکه د خلکو د ژوند د سطح لوړول، د مولدو ځواکونوښه سمون،دعاید لازم عادلانه ویش، د هېواد په ټول پراخوالي د کلیو، سیمو او ولایتونو په سطح پرمختیا رامنځته کول ، د بهرنیو اړیکو پراخول او داسې نورې دندې معلومول او د دغو چارو لپاره وسایل او طریقې ښودل دي.

٤) کله چې په پورته توګه ضرورتونه درج شول، لارې- چارې یې وسنجول شوې او دندې هم کانکریت او مشخصې شوې، نو په څلورمه مرحله کې د ذیصلاح مقاماتو له خوا د دغې طرحې(د پلان دمسودې) تائید او تصویبول دي.

## د اقتصادي پلانونو وېش

د ملي اقتصاد پلانونه د وخت، د اداري او مرکزیت د درجې او د هېواد د ساحې د شمولیت له مخې په بیلابیلو ډولونو ویشل شوي:
١. د وخت له پلوه پلانونه:
د ملي اقتصاد پلانونه د وخت له پلوه په درې ډولونو وېشو:
الف ) د اوږدې مودې (طویل المدت) پلانونه:
د اوږدې مودې د پلانونو وخت د ځینو ټولنیزو ربړو حل، د مهمو تصامیمو د اجرا وخت او د امکاناتو عملي پیش بینۍ پورې اړه لري چې له ١٥-٢٥ کلونو ورته وخت په نظر کې نیول کېږي. دا پلانونه په څو څو د منځنۍ مودې پلانونو باندې ویشل کېږي. په دغه ډول پلانونو کې پراخه ټولنیز او اقتصادي مسایل لکه دیموګرافیکي پرمختیاوې، د علم او تخنیک د بدلون او ترقۍ پیش بینۍ، د ساختمانونو سرته رسول، د اوږدې مودې پروژو تطبیق او دې ته ورته تحلیلونه او د هغو د وخت پیش بیني په نظر کې وي. د اوږدې مودې پلانونو په ترڅ کې د اقتصادي پرمختیا اصل او د هغې د مساعد انکشاف ستراتیژي، په اقتصاد کې زیر بنایي ژور کمي او کیفي پرمختګ، د اقتصادي توازن او انډول ښه کول او د ټولنیز تولید د مثمریت لوړول مطالعه او بررسي کېږي. دغه پلانونه دومره قاطع او کانکریت نه وي. دا ځکه چې په دومره اوږده موده کې هرومرو اقتصادي او ټولنیز ژوند کې ځینې بدلونونه پېښېږي، ممکن یو شمېر مجهول متحولین او غیر قاطع تغییرات رامنځ ته شي.

ب ) د منځنۍ مودې پلانونه
دا پنځه کلن پلانونه دي چې د اوږدې مودې پلانونونو په ترڅ کې د ټولنیزو پرمختګونو اهدافو او موخو ته د رسېدلو بشپړ کېدون چمتو کوي. په دغو پلانونو کې د تخنیک او اقتصاد په هکله نسبتاً مشخص اهداف او دندې مخې ته ایښودل کېږي او د اقتصادي پرمختیا د پایلو/ نتایجو د تطبیق جهت او لوري او د ملي اقتصاد غوښتنې څېړل کېږي. څومره چې د منځنۍ مودې(پینځه کلنو) پلانونواهداف په ټاکلو کلونو کې ښودل شوي وي او په هر کال تقسیم شوي وي، هغومره د پلان دقیق والی او کانکریټ کلکوالی ښکاره کوي. پنځه کلن پلانونه د اوږدې مودې پلانونو په رڼا کې، په هغو کې د ځینې اصلاحاتو، لازمي دقت، ژورو پیشبینیو او په علم او تخنیک کې د بدلونو په اثر د نویو امکاناو په موندلو سره جوړېږي. د اوږدې مودې پلانونو په پرتله د منځنۍ مودې پلانونو کې په یوه پراخه ساحې سره دلایل او مشخصات طرح کېدای شي او د هغو دقیق نتایج پیش بیني کېدای شي. په دغو پلانو کې تقریباً په واضحه توګه ټولنیز محصولات، ملي عاید او د هغو توزیع په تولیدي جوړښت کې مطلوب بدلون، د اقتصادي ودې چټکوالی او نور انډولونه پیش بیني او درج کېږي.

ج ) د لنډې مودې پلانونه
په دې کې يو کلن، درې مياشتني او ان يو مياشتني(جاري) پلانونه راځي. سره له دې چې پنځه کلن پلانونه ډېر پراخه مفهوم لري، خو بيا هم دا پلانونه نشي کولای ټول منابع، امکانات، زېرمې، اضافي اړتياوې او متمم ضرورتونه د پنځو کلونو د تطبيق په موده کې پيش بيني کړي، نو ځکه په دې موده کې په هر يو کې بدلون راځي، نو ځکه د يو هېواد په ملي اقتصاد کې د لنډې مودې پلانونه مهم رول لري. د لنډې مودې پلانونو د وخت ټاکل (کال، ربع، مياشت، ورځې) د يو کال په اوږدو کې د پنځه کلن پلان د دندو او موخو موفقانه تطبيق، عصري علم او تخنيک باندې د لاسبري امکانات، د مادي منابعو، د کار د ځواک او مالي سرچينو د مساعد په کارولو، دمولده ځواکونو لوړتيا او د ټولنيز مثمريت د سطح له مخې صورت نيسي. لکه چې وويل شول جاري پلانونه يا د لنډې مودې پلانونه د منځنۍ مودې پلانونو په چوکاټ کې طرح کيږي او د هغه دندې او اهداف په کلونو، درېيو مياشتنو او مياشت او اونيو وېشل کيږي چې دا د عملي کېدو د حجم او توان له مخې او په طبيعي ډول د عمده محصولاتو د توليد، د بيلابيلو نوړيو د دوران او نورو له مخې وي. د پنځه کلنو پلانو د ښه اجراپاره، د کلنيو پلانو تطبيق ځکه هم ضرور دی چې ځيني دندې د کال په ترڅ کې ترسره او سنجش کيږي مثلاً ماليات د کال په ترڅ کې جمع کيږي، بودجه د کال په ترڅ کې ټاکل کيږي، د کرنيزو تصديو او فارمونو محصولات د کال په ترڅ کې راټول،محاسبات يې تدوين،جمع او اجراکيږي. برجسته اهداف لکه ټوله پانګه، دصنعت نوي ډولونه، مدرن او عصري تخنيک هم ټول په کلونو ويشل کيږي.
د لنډې مودې يا جاري پلانونه، د منځنۍ مودې دپلانونو په پرتله ډېر مشرح وي او هغو کې بايدټول شاخصونه، ارقام او مشخصات په بشپړ ډول توضيح شوي وي، دا په دې معنا چې د لنډې مودې يا جاري پلانونه جدي او حتمي دندې لري او د ملي اقتصاد په ټولو دګرونو کې د انډول (هماهنګ) کولو، د امکاناتو د سنجولو، د سکتورونو د رهبري او دپنځه کلنو پلانونو د اهدافو د تحقق د دندو لرونکي او ځواب ورکوونکي وي.

۲. د مرکزيت د درجې او اداري پلان ډولونه
کله چې موږ په بېلابيلو اقتصادي سيستمونو او بېلابيلو هېوادو کې په يوه اوږده موده کې د پلانونو تاريخ مطالعه کوو، نو په دې ترڅ کې درې ډوله پلانونه په نظر کې راځي:

الف ) کنترول کوونکي او مرکزي پلانونه
دا پلانونه هغو هېوادو کې چې عامه سکتور ځواکمن وي،لېدل شوي.اوسنی وخت کې ډيروهغو هيوادو هم دا ډول پلانونه معمول کړی دی چې پخوايې مرکزی پلانونه طرح او تطبيق کول.مهمه دا ده چې ټولنه د ترقی عالی مدارجو او د هوساينی لوړ حد ته ورسيږی. او دهر نظام هدف همدا وی، خو طريقی او لاری فرق کوی.

ب ) مختلط (ګډ) پلانونه
هغه هېوادونه چې مختلط او لاربنود شوی اقتصادي سيستم لري، هلته عامه سکتور د اوامرو او هداياتو په واسطه د مرکزي پلان مطابق وده مومي او خصوصي سکتور مطلوب هدف

ته د رسېدو په منظور رهنمايي او د تشويقي وسايلو په واسطه لاربښوونه ورته کېږي. زموږ په هېواد کې تطبيق شويو پلانونو اکثراً همدا بڼه درلوده.

ج ) لاربښود (رهنما) پلانونه
په دې پلانونو کې د تطبيق له پلوه کوم مسؤليت حکومت ته نه راجع کېږي، دلته يوازې حکومت هڅه کوي چې د هېواد د اقتصاد د مطالعې او د هغه د پرمختګ د تګلورې په پېش بيني کولو سره عامه او خصوصي متصديان رهنمايي کړي. دلته د پلان تطبيق د غير مستقيمو او تشويقي وسايلو له لارې صورت نيسي. دا پلانونه هغو هېوادو کې لېدل کېږي چې ظاهراً بې پلانه هېوادونه دي. په دې ډول هېوادو کې د څېړنې او ريسرچ مؤسسات او مشورتي بوردونه اقتصادي جريان په دقت سره ترمطالعې لاندې نيسي، د ارقامو او احصائيو له مخې د اقتصاد شننه کوي او د اقتصادي سکتورونو مطالعه ترسره کوي، راتکونکي وضع پيش بيني کوي او له دغې پيش بينۍ څخه ګټه اخلي. دغه پلانونه په متحده ايالاتو، انګلستان او يو شمېر نورو هېوادو کې لېدل شوي. پروفيسر لويس د پرمختيايي اقتصاد څېړونکی او د اقتصادي پرمختيا د تيوريو محقق؛ پورته ذکر شوي پلانونو ته بله اصطلاح غوره کړې، هغه لومړی ډول پلان مرکزي او کنترولي پلان بللی او دويم او دريېم ته يې اخباري پلان ويلی. په يو اخباري پلان کې د پرمختيا پاليسي Developmental Policy ډېر اهميت لري. د يوې معقولې پاليسۍ ټاکل په ټولنيز پرمختګ غوره اغېزه لري، په دې توګه د يوې غوره انکشافي پاليسۍ عناصر په لاندې ډول دي:

- ✓ د انکشاف د لارو تحقيق او پلټل،
- ✓ د مناسبې زيربنا چمتو کول،
- ✓ د اختصاصي روزنيزو مؤسساتو او وسايلو برابرول،
- ✓ د اقتصادي فعاليتونو د قانوني چوکاټ ښه کول (لکه قوانين لايحې، مقررې، د ځمکو د ملکيت ښه کول، د تجارتي معاملاتو په برخه کې د اسانه کېدونکو نظامنامو او اساسنامو جوړول او نور)،
- ✓ د بهرنيو او کورنيو اغيزمنو پانګو هڅول او د مارکېټونو ښه کول او زياتول يعنې د مارکېټ د سيستم نوي کول،
- ✓ د ټولو سرچينو (طبيعي، بشري، سرمايوي) څخه د ګټې اخيستنې ښې لارې،
- ✓ اود پس اندازونو زياتول.

د لويس له نظره د يوه اخباري پلان ارقام ژمنې او تعهدات نه دي او تطبيق يې اجباري نه دی، بلکې مقاصد او توقعات دي چې د ښه تنيظم، تقدم او تاخر او د ګام په ګام تطبيق په خاطر په نښه کېږي.
۳) تراوسه چې موږ پلانونه مطالعه کړي هغه د هېواد د ساحې او اقتصادي ډګر له پلوه په منطقوي ملي، سکتوري، محلي او دې ته ورته برخو ويشل شوي. يعنې دلته د ساحې شموليت اساس ګڼل کېږي. منطقوي يا سيمه ييز پلان د يوه هېواد د يوې ټاکلې سيمې د پرمختيا لپاره وي او سکتوري پلانونه د کرنې، صنعت، سوداګرۍ، انرژي، کانونو، اوبو لګولو او نورو په برخه کې جوړېږي.

# دریيم څپرکی
## د یو پرمختیایي تولنیز پلان پړاوونه

موږ پخوا د پلان د طرح د جوړولو په برخه کې ځینې ټکي ذکر کړل، وروسته د پلان بېلابېل ډولونه د هغو د وخت یا مودې، د مرکزیت او ساحې له مخې ذکر شول. ضرور ده د یوه پرمختیایي تولنیز پلان پړاونه هم روښانه شي:
یو بشپړ تولنیز پلان لاندیني درې پړاوونه لري:
(۱) د پلان د طرح او تهیې (چمتو کولو) پړاو.
(۲) د پلان د تطبیق پړاو.
(۳) د تېر پلان د ارزونې او د راتلونکي پلان لپاره مقدماتي چمتووالي.
له پورته پړاوونو څخه ښکاري چې پلانونه پرله پسې دوامداره پروسه ده. یا په بل عبارت اقتصادي انکشافي پلانونه هغه وخت نتیجه ورکوي چې د یوه پلان تجارب، ارقام او نېمګړې برخې بل ته په ښه توګه انتقال او هغه منعکس شي. ذکر شوي پړاوونه کومې ځانګړتیاوې لري؟

I. د پلان د طرح او تهیې پړاو:
د پلان د مسودې د جوړولو او بشپړ پلان د طرحې اچولو لپاره زیات شمېر ارقام او احصایې لکه د نفوسو ریښتني یا اټکلي شمېر، ملي عاید او د هغه جوړونکي برخې، د هرې څانګې او تخصص په ښودنو سره د بشري ځواک مفصله احصائیه، د ښوونې او روزنې شمېره، د سوداګرۍ، ترانسپورت او لنډه دا چې ټولو برخو کې لازمي احصایې پکار دي. د پلان د عمومي طرحې انځور او د مسودې چمتو کول په مرکز او پروژو کې یو ځای پیل کېږي. د پروژو تصدیو، فارمونو، کارخانو، مدیریتونو، سیمو او څانګو او نورو پلاني طرحې ذکر شویو برخو پورې تړلي چې هغه تر ډېره بریده فني او تخنیکي اړخ لري.
پلان جوړونه د کوچني یا مایکرو اکونومیک سنجشونو، براوردونو، اټکلونو او ارقامو په بنسټ ترسره کېږي. په دې معنا چې د پلان په دغه پړاو کې د تولید لارې چارې، تمام شد قیمتونه، د لګښتونو، سنجش او داسې نور ټکي چې د یوې پروژې په اړه دي سنجش کېږي. دا د پروژو په سطح اقدامات دي. حال دا چې د پلان جوړونې مرکزي اداره کې (چې د هېواد په سطح د پلان مسوده برابروي) د اقتصادي-تولنیزې پرمختیا عمومي پلان یوه مسوده د کُلي او جامعو پیش بینیو له مخې د پخواني پلان د تجاربو او ارزونې په بنسټ او د هغه څه له مخې چې ممکن ښکاري طرحه کېږي. په دغه ډول کې ټول مسایل د لوی (ملي) اقتصاد (ماکرو اکونومیک) له پلوه وي او داسې هڅې کېږي چې په پلان کې شاملې پروژې ټولې یو بل سره تړلتیا ومومي او د دغو پروژو بېلابېلو عواملو او چارو کې ټکر پېښ نه شي. دا هم طرح کېږي چې د پروژو د عواملو عرضه له اړتیا څخه کمه نه وي، همدارنګه د ودې چټکتیا د پرمختیا د امکاناتو سره برابره وڅېړل شي چې ایا یو بل سره برابروالی لري که نه؟

کله چې د سیمو، پروژو، تصدیو او کلکتیفونو په سطح د پلان طرح جوړه شوه بیا د هغه پلان په واسطه چې مرکز کې د Macro Economic په بنسټ جوړېږي هغه کې لازم تعدیلات راځي او په عمومي پلان کې شاملیږي او هغه کې مالي منابع د ودې درجه، د عامل، حاصل جدولونه او نور موضوعات نظر کې نیول کیږي.
لازمه ده د اقتصادي ودې په هکله بیا هم لنډې خبرې وشي:
له اقتصادي ودې څخه موخه د ملي عاید زیاتوالی، د ناخالص ملي محصول یا مجموعي ملي محصول زیاتوالی او په اوږده موده کې د ملي تولید زیاتوالی دی. سره له دې چې په عامو بحثونو کې اقتصادي وده د اقتصادي پرمختیا سره مترادفاً راځي، خو اقتصادي پرمختیا بیا د مادي وسایلو د زیاتوالي سربېره د ذهنیتونو بدلون، د ښوونې او روزنې ښه کېدل، د محصولاتو د کیفیت لوړېدل د ټولنیزو مؤسساتو مثبت بدلون چې اقتصادي ودې ته زمینه برابروي، را اخلي. یعنې اقتصادي وده مقداري اړخ لري او د پرمختیا ظاهري بڼه ده په دې ډول اقتصادي وده کمی، او اقتصادي پرمختیا کمي او کیفي(دواړه) بعدونه لري، چې دا ټول(کمی او کیفی تحولات) په انکشافي پلان کې سنجول کیږي. که څه هم دغه پیش بینۍ ممکن د پلان په پای کې په واقعیت بدلې نه شي، ځکه یو خو مقامات تل هڅه کوي هغه څه چې (هیله) لري پلان کې شامل کړي اما پرکتیک دغه ټولې هیلې نشي براورده(پوره) کولای او بل دا چې د پلان طرح پروپاګندي بڼه لري اما دعملي کېدلوپرمهال یې کمه برخه ترسره کیږي خو بیا هم د اقتصادي ودې د درجې ټاکل لاندې عواملو پورې تړلې دي:
(۱) طبیعي سرچینې،
(۲) د کار ماهر بشري ځواک،
(۳) تولیدي ظرفیت،
(٤) تمویل.
د پلان په طرح کې د دغو هر یوه سنجش په مفصله توګه ترسره کیږي چې هر یو یې د پیش بینۍ په خاطر ځانګړي فرمولونه لارې-چارې او میتودونه لري. دا د تفصیلي بحث غوښتنه کوي.

II. د پلان د تطبیق پړاو:
کله چې د پلان طرح جوړه شوه د هغې د ټولنیزوالي د درجې د ښه کېدو لپاره د نظرونو غوښتلو ته وړاندې کیږي څومره چې د پلان د طرح په تکمیل کې زیات نظرونه واخیستل شي طرح بشپړه وي او څومره چې د ټولنې خلک ورڅخه اګاهي او خبرتیا وومي هومره یې اجتماعي خصلت ښه کیږي. د پلان د قانوني کېدو لپاره جوړه شوې طرح د پارلمان له تصویب څخه تېرېږي. وروسته پلان په مدون او تسجیل شوي بڼه جوړ او ټولو اړوندو ځایونو ته لیږل کیږي او د هغه د تطبیق پړاو پیل کیږي. د پلان د تطبیق لپاره ګڼ شمېر عناصر ضرورروي دي، لکه:

۱ . د بودجې ارزښت:
دلته هڅه کیږي چې د ټول هېواد د بودجې اجزاء په وضاحت سره ارایه شي یعنې د هېواد بودجه د پرمختیایي پلان سره برابر والی ولري. دولتي محاسبه او د بودجې سیستم د اجراتو د چټکوالي، د لګښتونو وضاحت او د مصارفو پیش بیني دې برخه کې ارزښت لري.

۲ . د اداري مناسباتو سیستم:
له دې کبله چې د پلان تطبیق د اداري څانګو دنده ده، نو د دې لپاره چې یو پرمختیایي پلان په ښه ډول تطبیق شي، لازمه ده چې مناسب اداري سیستم موجود وي. دلته د دندو وېش، د واک او مسولیتونو ټاکل ضرور دي.ښه اداره اومدیریتی لوړمهارت لرل دپلان اجرا سره مرسته کوی.

۳.د روزل شویو فني پرسونلو شته والی:
فني پرسونل نه یوازې د پلان د تطبیق په برخه کې بلکې د پلان په طرح او ارزیابۍ کې هم مهم دی، خو د پلان تطبیق کې خاص ارزښت لري. په اکثرو پرمختیایي هېوادو کې د پلان نابشپړ تطبیق د روزل شویو لوړو تحصیلاتو لرونکو او ماهر پرسونل دنه لرلو له کبله ده. دوی باید په تخنیک، محاسبه، اداره، ښوونه او روزنه، کرنه، صنعت،پالیسی جوړولو او ټولو برخو کې ماهراوهیوادنیوګټوته وفادار پرسونل ولري.

٤ . د پلان سره سمه او اغیزمنه رهبري:
د پلان بریالی تطبیق اغیزمنې رهبرۍ پورې تړلی. رهبري د پروژو له امرینو نیولې تر لویو امرینو لکه رئیسان، وزیران او لوړ رتبه چارواکي عین ارزښت لري. دوی باید په طرح شوي پلان عقیده ولري د هغه په موخه باید پوه وي او ورسره مینه ولري، خپله دنده کې د ضمیر او پاک وجدان څخه کار واخلي او د مسؤلیت احساس ولري.

٥ . بېلابیلو څانګو کې هماهنګي:
د پلان له طرحې نیولې د هغې تر تطبیق، هماهنګي مهم شرط دی، باید د پروژو، مؤسسو، څانګو، بیا تر سکتورونو او بالاخره ټول پلان کې هماهنګي موجوده وي.

III. د پلان د ارزیابۍ پړاو:
د پلان له ارزونې څخه موخه دا ده چې په ټولنیز اقتصادي انکشافي پلان کې پیش بیني شوي هداف او د هغو د ترسره کېدو څرنګوالی غور لاندې ونیول شي. دلته د اجرا شویو کارونو، لګېدلې پانګې، کارول شویو وسایطو، په لاس کې موجودو منابعو، د پلان ارزیابۍ د پلان د تطبیق بېلابیلو وختونو کې او هم د ټول پلان په پای کې ترسره کیږي. د بېلګې په توګه کله چې د یوه پنځه کلن پلان په تطبیق پیل کیږي هغه وروسته تر هرو شپږ میاشتو، هر کال یا په هره ربع کې ارزیابي کیږی او په پای کې وروسته ترپنځو کلونو د ټول پلان تطبیق په مجموعي ډول ارزول کیږي. د پلان د ارزولو موده د هرې پروژې او له هرې تصدۍ، فارم،

پروژې او فابريکو څخه مرکز ته د راپور لېږلو د امکاناتو او ماهيت پورې اړه لري او د مرکز فعال والي پورې هم اړه لري چې څومره د پروژو د تطبيق څخه رپوټ غواړي او څومره يې ارزولو ته اهميت ورکوي د پلان په ارزيابۍ کې دوه برخې مهمې دي:

- د راپور ليکلو د منظم سيستم موجوديت.
- د حسابدارۍ او احصايوي سيستم د منظم او فعال سيستم موجوديت.

د راپور ليکلو سيستم د پلانونو د پرمختګ، د هغو د لګښتونو، د پروژو د حجم او په مرکز کې د ارزيابۍ لپاره د تطبيق کېدونکو پروژو برياليتوب يا ستونزو په هکله جامع او واقعيتونو سره سم اسناد برابروي او مرکز ته يې لېږي.

همدارنګه د دې لپاره چې د پلان يوه ډېره ښه ارزيابي ترسره شي بايد ټول فعاليتونه په ارقامو او د احصائيو له مخې صورت ونيسي. بايد د حساب دارۍ يو سيستم د بودجې اجزا او مصارف حساب کړي. له همدې امله د پلان جوړولو ارګانونو (د پلان وزارت) کې دغو سيستمونو ته ارزښت ورکول کېږي.

## د پلان ستراتيژي

بېلابيلو هېوادو کې، د هغوی د اقتصادي نظام او ټولنيزو ځانګړتياوو سره يو ځای ټولنيز او اقتصادي شرايط يو له بل سره توپير لري، نو له همدې امله دټولنيزو-اقتصادي پلانونو د تطبيق په خاطر د تدابيرو او هلو ځلو نتايج او پايلې يو بل سره توپير لري، خو په عمومي توګه د يو پلان په هکله بايد لاندې ټکي د ستراتيژۍ په توګه په نظر کې ولرو:

a) د بيلابيلو سکتورونو ترمنځ خپل منځي اړېکې:

د يوه پرمختيايي-اقتصادي پلان په طرح کې بايد لومړی د اقتصاد مهمې څانګې چې د هغو وده او پراختيا د محرکه قوې يا کليدي حيثيت ولري، طرحريزي شي. دا چې د يوې څانګې پرمختيا په بله سيده اغيزې لري، نو بايد د هغو ترمنځ اړېکې تامين شي. په بېلابيلو څانګو کې د پلان جوړونې انګيزې لاندې عواملو پورې تړلې:

✓ بايد په پام کې ولرو چې يوه ځانګړې څانګه او پروژه تر کومه بريده کورنۍ سرچينې په کار اچوي دا يوه ستراتيژيکه موخه ده.

✓ بايد په پام کې ولرو چې د دغې څانګې محصولات د هېواد دننه په کار وړل کېدای شي؟

✓ بايد د ستراتيژيک هدف په توګه وڅېړل شي چې ايا يوه ځانګړې څانګه او پروژه يا سکتور څومره د ټول اقتصاد لپاره ګټوره ده، د بېلګې په توګه د وسپنې پټلۍ، د اوبو بند او نور چې نه يوازې د انتقال او ترانسپورت لپاره ضرور دي، د برېښنا توليد د کرنې پراختيا، کبانو روزنې د مالدارۍ انکشاف ته هم ضرور دي.

✓ دا باید پام کې ونیول شي چې د یوې پروژې نوښت، په هغې کې کارول شوې تکنالوژي او تولیدي متیود تر کومه بریده په نور رشتو او څانګو کې د تقلید او رواجولو وړ دی.
✓ تر کوم برید پورې د نوموړو څانګو عواید، تولید شوي اجناس او چمتو خدمات د هېواد دننه لګېدای شي او که بهر ته د صادرولو لپاره په نظر کې دي؟

B. بهرنۍ سوداګري:

ښکاره خبره ده چې پرمختیایي اقتصاد کې د صادراتو وده د اسعارو مهم مدرک دی، نو ځکه باید په یو پرمختیایي پلان کې د بهرنۍ سوداګرۍ موضوع د پلان د ستراتیژۍ له پلوه وڅېړل شي. په پلان کې باید داسې پروژې طرح شي چې د هغو محصولات واردات تعویض کړای شي، دویم قدم کې باید صادرات تقویه کړای شي د پرمختیا په بېلابېلو پړاوونو کې د بهرنۍ سوداګرۍ ارزښت تل توپیر مومي. د اقتصادي پرمختیا سره د بهرنۍ سوداګرۍ اړیکې چې د بدلېدو په حال کې دي داسې خلاصه کولای شو:

1) هغه پړاو چې د وراداتو تعویض د اقتصادي ودې مهم عامل ګڼل کېږي، په دې پړاو کې باید وارداتو ته تمایل کم شي.

2) هغه پړاو چې صادرات د اقتصادي ودې محرکه قوه بلل کېږي، په دې معنا چې د اقتصادي ودې لومړیو ګامونو کې صادرات اقتصادي ودې ته ډېر ګټور تمامېږي په دغو پړاونو کې د پلان جوړونې یوه دنده دا ده چې داسې منابع تدارک کړي چې صادرات وهڅوي.

3) هغه پړاو چې ورو ورو په اقتصادي جوړښت کې بدلون راځي، په کرنه کې د تکنالوژۍ ترویج یو شمېر کسان وزګاروي ترڅو صنعت کې استخدام شي، ځینو برخو کې عواید زیاتېږي، د استهلاکي او لوکسو اجناسو پېرېدلو ته تمایل زیاتېږي، د مارکېټ میکانېزم ښه کېږي او یو شمېر مؤسساتي فکتورونه لازم عمل کوي. دلته په طبیعي ډول یو د لنډې مودې انفلاسیون پېښېږي دا ځکه چې یوه مؤقتي نا انډولي واقع شوې، همدا وخت باید کوشش وشي چې د صنعت د ودې سره کرنې ته لازیاته وده ورکړل شي چې خوراکي توکي په پوره اندازه عرضه کړای شي او نورو سکتورو کې اضافه شوې تقاضا ته ځواب وویلای شي، نا انډوله وده پولي تورم پېښوي نو کله چې د صادراتو د پیاوړي کولو لپاره د صنعت ودې ته پاملرنه کېږي او وزګار وګړي صنعتي فابریکو کې استخدامېږي، دوی د استخدام مقابل کې مزد او معاشات اخلي، خامو موادو ته اړتیا زیاتېږي ماشین آلات او پرزې پیرودل کېږي، انتقالات او د ترانسپورت مصارف لوړېږي او داسې نور، نو که په پلان جوړونه کې کرنې ته د لازم ځواب ویلو او لازم انډول برابرولو، لازمو خامو توکیو او خوراکي موادو برابرولو لپاره پاملرنه نه وي شوي، له ستراتیژیک پلوه اقتصادي حالت ښېرته د خرابېدو خواته بیولای شي.

4) داسې پړاو هم رارسېږي چې د کورنیو اړتیاوو د پوره کولو لپاره وارداتو ته تمایل زیاتېږي. دغه څلور پړاوونه هرومرو پرله پسې نه پېښېږي، بلکې دا د یو هېواد د شرایطو تابع دي، خو مهمه خبره دا ده چې دغه پړاوونه د پلان جوړونې له پله پېش بیني شي.

C– د پانګې ټولېدل:
په پلان جوړونه کې باید وسنجول شي چې کومو برخو کې د کار ځواک او کومو برخو کې پانګې ته ډېره برخه ورکړل شي ځکه دا دواړه سره معکوسه رابطه لري او دا هر یو کارول د پروژې د تطبیق په وخت اغیزه لري. د تکنالوژۍ په کار اچول د کار د چټکوالي سبب کېږي، خو پانګه پکې ډېره لګول کېږي. همدارنګه دپانګې د ربح (ګټې) نرخ په دې برخه کې اغېزه لرلای شي. د پانګې یا د کار د ځواک څخه ګټه اخیستنه په تولید کې لاندې لاملونو پورې اړه لري:

- د پانګې لږوالی او یا زیاتوالی،
- د کار کوونکو نسبي مهارت،
- د پروژې د حاصل ورکولو وخت او له نورو پروژو سره د هغو د محصولاتو په تولید کې د چټکوالي اړیکې،
- د ربح نرخ (د پانګې اصل ګټه)،
- د کارګرانو مزد،
- د پروژې ماهیئت او د اسعارو نرخ.

D- سیمه ییز توازن:
په پلان جوړونه کې باید د یوې ستراتیژۍ او دورنما هدف په توګه د هېواد د بېلابیلو سیمو متوازن پرمختګ نظر کې ونیول شي. په یوه سیمه کې د تولیدي، صنعتي، رهایشي تجارتي فعالیتونو راټولېدل دراتلونکې لپاره لویې ستونزې پېښوي. بل دا چې هره سیمه د ودې او پرمختیا بېلابیل ظرفیتونه لري، همدارنګه ځینې سیمې د خامو موادو، کانونو، زراعتي محصولاتو، اوبو، مناسبې هوا او نورو له کبله مساعدې وي، ځینې سیمې او محلات د سوداګرۍ له پلوه ارزښت لري. همدارنګه په اقتصادي ستراتیژۍ کې باید د ښارونو او کلیو د ژور واټن او توپیر له منځه وړل نظر کې ونیول شي ترڅو په ښارونو کې د نفوس افراطي هجوم پېښ نه شي.

E– د استخدام سطح (په کار ګومارلو کچه):
د پرمختیایي پلانونو یو مهم دورنما هدف د بېکارۍ له منځه وړل او د کار د زمینې برابرول دي، نو د پروژو په رامنځته کولو کې د نفوسو استخدام او د پروژو د قدامت ټاکل ستراتیژیک اهمیت لري. ځینې وخت په پلانونو کې یو شمېر اهداف ضد و نقیض واقع کېږي، د بېلګې په توګه کېدای شي په پلان کې یو هدف د عاید لوړول وي، خو بالمقابل زیات استخدام د عاید لوړولو لپاره مانع ګرځي.
ممکن ځینې وخت هدف د صادراتو زیاتول وي، خو کېدای شي د زیاتو صادراتو وده په داخل کې د خامو موادو کمی رامنځ ته کړي. په دې ډول باید دغه ضدونقیض مسایل خصوصاً د استخدام په برخه کې وڅېړل شي.

F– په پلان کې د شاملو پروژو تمویل:
د پرمختیایي سیاست یوه مهمه موضوع د پرمختیایي پلان لپاره د مناسبو داخلي او خارجي مالي منابعو پلټل دي. په یو پرمختیایي سیاست کې دا موضوع چې آیا د یوې پروژې تمویلي مسایل، پانګه او پیسې د کوم مدرک څخه ترلاسه شي، حل کېږي. د بېلګې په توګه دا سنجول کېږي چې د پروژې مالي مسئله د مالیاتو د زیاتوالي، د پس انداز د تشویق، د پیسو د نشر، له بهر څخه د پور یا کوم بل مدرک څخه تدارک شي. دا یوه ستراتیژیکه مسئله ده. پرمختیایي هېوادو کې د پیسو نشرول، د انفلاسیون او بهرني پورونه د پوروړ کېدو لامل ګرځي(کوم چې موږ دبهرنیومرستواوپورونوپه برخه کې ولوستل)، خو د مالیاتو د زیاتولو او د پس اندازونو له لارې د پروژو تمویل لاندې ښېګڼې لري:

✓ د انفلاسیوني طریقې په پرتله د پس انداز او مالیاتو له طریقه د تمویل اغېزې پر قیمتونو لږ وي.
✓ د دې طریقې وروستۍ پایلې ډېرې درنې او ناوړه نه دي، خو د پیسو د نشر کنټرول ستونزمن کار دی.
✓ د مالیاتو د زیاتولو د پس انداز له لارې تمویل کې د پیسو عرضه په آسانۍ کنټرولېدای شي.
✓ د لنډې مودې انفلاسیون هېڅ خطر ناک نه دي، خو دوام یې د تادیاتو بېلانس کې لویې ستونزې پېښوي. د پیسو نشرول هغه مناسب کار دی چې د هغو بالمقابل په ټولنه کې د تولید اندازه لوړه شي، یعنې د نشر شویو پیسو سره یو ځای مارکېټ ته نوي تولیدات په زیات کمیت عرضه شي.

G– بهرنۍ مرستې:
له بهرنیو منابعو څخه د پلان تمویلول په دوه ډوله کېدای شي:

✓ بلا عوض بهرنۍ مرستې،
✓ پورنه(موږ مخکې څپرکې کې دواړه ولوستل).

بهرنۍ مرستې په پرمختیایي اقتصاد کې د تمویل یوه منبع بلل کېږي، خو د هغو ګټورتوب دې پورې تړلی چې آیا دغه مرستې (بلا عوض کمک یا هم پورونه) په څه ډول او کومو شرایطو لاندې ترلاسه کېږي او آیا هغه په څه ډول لګول کېږي. په تېره بیا د پورونو په هکله د هغو ربح د بیا ورکړې شرایط د وسایلو د پېرېدلو مکلفیت، د اړتیا وړ تجهیزاتو چمتو کول (چې معمولاً د نړېوالو اړیکو او د قراردادونو یو جز دی او په بهرنیو مرستو او پروتوکولو کې درج کېږي)، د مربوطه بهرني هېوادو د متخصیصینو استخدام، د قرض ورکوونکي هېواد څخه د پروژې فرعي ضرویاتو پېرودل او د هغو شرایط په ژوره توګه مطالعه شي. دا د پرمختیایي هېوادو لپاره ستراتیژیک ارزښت لري. د مرستې اخیستونکي هېواد لپاره د دغه ډول مرستو عواقب ډېر مهم ګڼل کېږي، دا د اقتصادي ملاحظاتو سربېره سیاسي ملاحظات هم لرلای شي چې د بهرنیو مرستو منل ستونزمن او حتی غیر ممکن کولای شي.

د زیات شمېر پرمختیایي هېوادو د پرمختیایي پلانونو په کتلو سره د انکشافی ممکنه اهدافو له جملې څخه لاندني اهداف د هغو د قدامت په نظر کې نیولو سره ذکر کولای شو:

- د اقتصادي ودې چټکوالی،
- د محصولاتو او صنعتي ظرفیتونو لوړوالی،
- د ځمکو اصلاحات (د نو یو ځمکو تر کرنې لاندې راوستل، د خامو صنعتي موادو د تولید په منظور د کرنیزو تولیداتو زیاتوالی، زهکشي، د اوبو رسولو سیستم پراخوالی...
- د خامو صنعتي موادو د تولید په منظور د کرنیزو تولیداتو زیاتول،
- د دولت د عوایدو او پانګې اچونې په برخه کې د زیاتوالي سره سره خصوصي سکتور کې د مؤلدې پانګې اچونې او پس اندازونو تشویق،
- د بیکارۍ کمول او په تدریج د هغې له منځه وړل،
- د عامې روغتیا، عامه خدماتو او نورو مصارفو په تامین او ترسره کولو کې د وګړو د مولدیت د سطحې اوچتول او د کار د بشري ځواک پیاوړتیا،
- د عاید لاښه او زیاته توزیع،
- د سیمو او محلاتو متناسب رشد او د نفوس د ویش او میشت کولو دپالیسي تطبیق،
- د مواصلاتو، مخابراتو، اوبو لګولو، صحي اوبو رسولو او انرژۍ په برخه کې د اقتصادي لاپراخې زیربنا ایجادول،
- د مالي او پولي هماهنګو پالیسو د تطبیق له لارې د اقتصادي نورمونو اوشرایطو تامین او د بیو استقرار،
- د صادراتو د زیاتوالي او د وارداتو د تعویض په واسطه د تادیاتو د بېلانس پیاوړتیا،
- د اقتصادي استقلال او په مجموع کې په نسبي توګه په خپل ځان متکي کېدل.

## تمرینات:

۱.پلان څه ته وایی، تعریف یې کړئ.
۲.د وخت له پلوه پلانونه په څو ډوله دی؟
۳.دمرکزیت د درجې او اداري له پلوه پلانونه څوډوله دی، هریو لنډ تشریح کړئ.
۴.یو بشپړ ټولنیزپلان کوم پړاوونه لري؟
۵.دپلان دتطبیق لپاره کوم عناصرضروری دي؟
۶.په پلان جوړونه کی سیمه ییز توازن څه اهمیت لری؟
۷.دپلان جوړونې دنړیوالو تجاربو په هکله څومره معلومات لری؟
۸.دپلان جوړونې تیوري کې کوم درې موضوعات شامل دي؟
۹.داقتصادی پلان جوړونې میتودولوژي ووایاست.
۱۰.افغانستان تر اوسه کوم پلانونه تطبیق کړی دی؟

اخځونه

الف)په ملی او نړیوالو ژبوماخذ:
۱. پکتیاوال، ډاکټر محراب الدین- پلانګذاري علمي و اقتصادي ممالک رو به انکشاف، کابل دولتي مطبعه (۱۳٦۲).
۲. شبان، دوکتور محمد انور، تیوري ها، عوامل و سیاست های انکشاف، د یونین اید خپرونه، نیاز آرت پرس، پېښور (۱۳۷۵).
۳.خپلواک، عبدالرووف.(۱۳۵۹)، پرمختیایی هیواونه...، د لوړو زده کړو وزارت د مطبعی چاپ: کابل- افغانستان.

4 .Anchishkin, A.(1980) National Economic Planning, progress, Moscow.

5. Jhingan, M. L. (1993) The Economic Development and planning Delhi.

6. Frank,R. and Ben Bernanke.(2017), Principles of Economics: McGraw-Hill Higher Education (ISBN 0-07-228962-7)

7.Ray, Debraj. (1997) Development Economics:Princeton University , Princeton, New Jersey.

8.Todaro, P. Michael. And Stephen C.Smith. (2015) Economic Development(12th edition:PEARSON. USA.

ب)دارقامو سرچینې او بریښنایی پاڼې:

9.www.fortune.com

۹ . د ملګرو ملتونو د بېلابېلو ادارو خپرونې.
۱۰.احصائیوی کالنی( بیلابیلی ګنې له ۱۳۵۷څخه نیولی تر ۱۳۹۵ پورې)، د احصاییې مرکزی اداره: کابل-افغانستان.

ضمیمه :

هغه اصطلاحات چې د کتاب په متن کی راغلی، خو د موضوع دتسلسل د نه پرېکیدو په خاطر هلته ندی توضیح شوی، دا دی د وضاحت او لوستونکو ته د آسانتیا لپاره په نښلونه (ضمیمه) کې توضیح کیږی:

## Absolute poverty مطلق فقر

د بیوزلۍ تر ټولو بده څېره ده، چې په دې وضعیت کې وګړي د ډوډۍ او جامو له پلوه تر ټولو ټیټ حد ضرورت پوره کولای شي، په داسې حال کې چې د ژوند نورې اړتیاوې یې پوره نه وي.

## Anti development د پرمختیا ضد

هر هغه عامل چې په اقتصاد کې د پرمختیا په وړاندې پروت وي.

## Antipoverty program د بېوزلۍ د له منځه وړلو پروګرام

هغه پلان او برنامه چې غواړي د خلکو دژوند سټندرډد حد اقل معیشت او اساسي ضروریاتو څخه پورته حد کې واقع شي. یا د بېوزلۍ نښه له مېنځه وړل، دا اصلاً پخوا د امریکې په متحده ایالاتو کې د هغه پروګرام نوم و چې د جان اف کېنډي له خوا جوړ او بیا لېندون جانسن هم دوام ورکړ، او په امریکې کې په تېره بیا کلیوالي سیمو کې د بېلابېلو قوانینو او پروګرامونو په اجرا سره فقر له منځه یووړل شو ، په تېره بیا کله چې د امریکې دولت د بېوزله تور پورستو نارضایتي او په شپیتمو کلونو کې د ویتنام د جګړې له امله ددولت ماتې ولیده، نو د فقر د له منځه وړلو، د توپورستو د بېرته خوشحالولو او د دولت دنوم د ښه کولو لپاره دغه پروګرام ته زور ورکړل شو، اوس هم په هره سیمه کې د بېوزلۍ په ضد دګړندیو پروګرامونو عملي کولو ته د (Antipoverty program) نوم غوره کېږي.

## Back ward وروسته پاتې

هغه ټولنه چې د اقتصادي ودې، د خپل تولید داندازې ، کلتوري ارزښتونو تکنالوژیکي کچې او نورو له مخې په نسبي توګه وروسته پاتې وي.
هر ډول هغه وضعیت چې د ودې اوپرمختګ امکان یې وي.
دغه اصطلاح د پرمختیا دتیوری او د پرمختیایی هیوادو په بحثونو کی تل مخی ته راځي.

## Back ward economy وروسته پاتې اقتصاد

د هغو هېوادونو اقتصاد چې د ښېکلاک د اوږدې مودې له امله له پرمختګ څخه پاتې شوي او اوس هم د ښکېلاک د دورې ناوړه اثار پکې ښکاري، یا د هغو هېواد اقتصاد چې د پېلابېلو عواملو يې تراوسه پوره پرمختیا نه ده کړې.
دغه اصطلاح او دپرمختیایی هیواو تغه ځانګړنه د پرمختیایی تیوری په بحثونو کی داقتصاد علماوو په کار وړی ده او دتیروخت دښکیلاک دوره او دهغی ناوړه تاثیرات یی ښودلی دی.

## متوازنه اقتصادي پرمختیا

## Balanced economic development

په یوه هېواد کې د پرمختیا هغه ډول حالت دی چې د ملي اقتصاد ټولې برخې او سکتورونه یو بل سره په برابره توګه وده کوي، په انکشافي پلان او بودجه کې ټولو برخو ته یو برابر ونډه ورکړل شوي وي، البته د متوازنې ودې پلویان هم شته او ځیني نور بیا وایي چې مهم سکتورونه باید مقدم وشمېرل شي او نورې برخې چې مهمې نه دي یافرعي حثیثت لري، ضرور نه دي، چې لکه د مهمو برخو په شان ورته مساوي برخه اوبودجه ورکړل شي.
دبېلګې په توګه متوازنه پرمختیا کې مصرفي اجناسو، سپکو صنایعو ، درنو صنایعو ، خدماتو ( روغتیا ، ترانسپورت، ښوونه اور وزنه ) سرمایوي اجناسو ( لکه ماشین آلات او د تولیدي فابریکو اساسي وسایل ) او نورو ټولو ته یو شان پاملرنه کېږي، د کرنې ، صنعت سوداګري او نورو سکتورونو ته هم مساياونه پاملرنه کېږي، دغه نظریه وایي چې یوازې د یوې برخې وده د ټول اقتصاد وده نه تامېنوي. که چېرې یوازې ښاري اقتصاد اووضعیت ته پاملرنه وشي، نو د دوی تقاضا اجناسو ته زیاتېږي، اما په کلیوالی سیمو کی به د کرنیزو تولیداتو عرضه لکه د پخوا په شان ټیټه وي ، او د صنعتي تولیداتو د پیریدلو توان به ونه لري، له بلې خوا که یوازې د کرنې د تولیداتو ودې ته پاملرنه وشي، خو صنعت لکه د پخوا په شان وروسته پاتې وي، نو د کرنې د تولید شویو خامو موادو لپاره به د پروسس زمینه نه وي، په دې توګه دوی د متوازن پرمختګ لپاره یو شمېر معقول د لایل راټول کړي دي.

## Big push theory لوی فشار

په قوت او زور سره ټېل وهل، د متوازنې ودې لپاره یوه نظریه ده ، د غه نظریه وایي چې یو پرمختیایي هېواد باید د بیوزلي د کړی د ماتولو لپاره په ټولو اقتصادي برخو کې په یو مهال او متوازن ډول پانګه واچوي، د دغې نظریې نامتو پلویانو څخه یو يې (رودان )و، ده به ویل چې الوتکه هوا ته د پورته کېدو په خاطر ډېر ګړندیوالي ته اړتیا لري، نو اقتصاد هم د پرمختیا لوړې کچې ته د رسیدلو لپاره زیاتې پانګونې ته اړتیا لري، خو له دې امله چې د لته لا هم عایدپه ټیټه کچه کې دی، ضرور نه ده چې درانه صنایع پیل شي، بلکې کېدای شي له کوچنیو او سپکو صنایعو څخه پیل وشي، او د کار ځواک په کار وګومارل شي او

کرنه به د دغه نوي صنعت لپاره کافي خام توکي برابر کړي، ورو ورو د خلکو د عاید په ښه کېدو سره بازار هم پراختیا مومي او تولیداتو ته تقاضا زیاتېږي، د خامو توکیو تولید ، د صنایعو ایجاد او پراختیا ، داستخدام د نویو فرصتونو ایجادیدل او دمارکېټونو پراختیا د Big push لپاره لازم شرایط او د پرمختیا لپاره پیاوړي کوونکي عوامل دي. دغه اصطلاح د روستو له خواهم دده دپرمختیایی تیوری په بحث کی کارول شوی ده.

## Central planning مرکزي پلان جوړونه

د رهبري شوي اقتصادي نظام ځانګړتیا ده، چې د بازار او عرضې او تقاضا په عوض ټول اقتصادي مسایل د دولت د مرکزي پلان جوړوني له خوا رهبري کېږي. په دغه ډول نظام کې د حکومت اداره ( د پلان وزارت یاد پلان جوړوني دولتي کمېټه ) د اقتصاد لپاره پلان جوړ او تطبیقوي او په پراخ ډول یې کنترولوي. دتولید حجم او اندازه او د تولید ټوله پروسه او سازماندهي او دمنابعوتخصیص ټول د مرکزي پلان له مخې کېږي، په تېره بیا وروسته تر ۱۹۵۰ م. کال څخه پخواني شوروي اتحاد څو پرله پسې پنځه کلن مرکزي پلانونه جوړ او تطبیق کړل، ټولو سوسیالیستي هېوادونو او ګڼ شمېر پرمختیایي هېوادونو (هندوستان،عراق، ایران، پاکستان،مصر،لیبیا،....)همدغه سیستم او نظام درلود. په دغه ډول نظام کې په اقتصادي چارو کې د دولت مداخله ډېره پراخه وی، د خصوصي سکتور ونډه ډېره لږ وي، هغه په داسې حال کې چې رهبري کوونکي او ارشادي رول د دولت په لاس کې وي، خصوصي سکتور د دولت پلان ته د لاربښود په توګه ګوري.

## Child labour د ماشوم کار

په کار کې د کار له سن څخه د ټیټ عمر استخدام. د ماشومانو کار کول ( په افغانستان کې دکار سن اتلس ښودل شوی، یو شمېر هېوادو کې داستخدام عمر ١٤ یو شمېر کې ١٦ او ان یو شمېر هېوادو کې ١٢ کلن ښودل شوی، خو هغه څخه ټیټ عمر د کارسن نه دی). له بده مرغه پرمختیایی هیوادوکې د ماشوم کار یو بد واقعیت دی چی د ماشوم په راتلونکې وده او ددوی دتعلیم په پروسه ناوړه اغیزه کولای شي. د کار د قوانینو په اصطلاح ، د کار د نړیوال سازمان په موادو او ورځنۍ محاوره کې په کار کې دماشوم استخدام ته اجازه نه ده ورکړل شوی. بالعموم له ۱۶کالو څخه د ټیټ عمر کارکوونکو ته دماشومانوکار ویل کیږی. د کار له عمر څخه د ټیټ سن په کار ګومارل د بېلابېلو هېوادونو د قوانینو له مخې اود کار د نړیوال سازمان (ILO) له خوا منع ښودل شوی دی.

## Chronic unemployment پراخه بیکاري

په یوه ټولنه کې د بېکارۍ یا وزګارتیا اندازه د یو ټاکلي نسبت له مخې وخت په وخت ارزول کېږي، کله چې د وزګار تیا نسبت unemployment rate ډېر اوچت شي دی ناوړه حالت ته پراخه بیکاري ویل کېږي.اوسنی پرمحتیایی هیوادونه دغه ستونزه لري.

## Developed Countries پرمختللي هېوادونه

هغه هېوادونه چې د پرمختیا د شاخصونو له مخې په نسبي ډول تر نورو مخکې وي، پرمختللي هېوادونه بلل کېږي. معمولاً دغه ډله هېوادونه ، دنن ورځې وتلي صنعتي هېوادونه دي چې کلني سړي سر عاید ، دژوند د سټنډرډ ، د اتباعو منځنی عمر، د سواد کچې، اقتصادي پیاوړې زیربنا، تکنالوژیکي پرمختیا او ګڼ شمېر نورو اقتصادي او اجتماعي شاخصونو او معیارونو له مخې اوچته درجه کې دي، لکه: د امریکې متحده ایالات ، جرمني، انګلستان ، کاناډا، بلجیم ، روسیه، استرلیا او جاپان .

## Developing countries پر مختیایي هېوادونه

د نړۍ د صنعتي پرمختللو هېوادونو برخلاف هغه شمېر هېوادونه چې اقتصاد یې وروسته پاتې دی، پرمختیایي بلل کېږي، د ملګرو ملتونو له خوا همدا اوس د نړۍ ۱۴۱ هېوادونه پرمختیایي بلل شوي دي،دا هغه هېوادونه دي چې د اتلسمې او نولسمې پېړۍ په دوره کې یې د ښکېلاک دوره تېره کړې او د دوی د اقتصاد د خپلواکي او پرمختګ مخه ډب شوې وه، په حقیقت کې دا د ښکېلاکګرو لویدیځ هېوادونو له خوا قصداً وروسته ساتل شوي هېوادونه وو، دوی تر ډېرې مودې پورې د خپلو داخلي استبدادي حکومتونو له امله هم تر فشار لاندې ملتونه شمېرل کېدل، چې د مستبدو حاکمانو د خانداني ګټو د ساتنې په خاطر د تعلیم له پلوه وروسته پاتې شول او د رڼتیا او ویښتیا پړاو ډېر وروسته پکې پیل شو، دغه ډله هېوادونه چې عموماً یو بل سره ورته ځانګړتیاوې لري، په څو نومونو یادېدل. د شلمې پېړۍ په ۴۰- ۵۰ لسیزو کې د اقتصادي پرمختیا او وروسته پاتېوالي له مخې دوه ډوله اصطلاحات راوج شول. پرمختللی اقتصاد (Developed economy) اونه پرمختللی اقتصاد (underdeveloped economy). دا د کوم نړیوال ټاکل شوی او سل په سلو کې منل شوي معیار له مخې نه وو، بلکې دا دوه اصطلاحات د دوو اقتصادونو یا دوه ډوله هېوادو د توپیر په خاطر دود شوی وو، دا د دې مقصد لپاره کارول کېږې، چې په ښېړنی توګه د پرمختللو او وروسته پاتې هېوادو توپیر وشي، د پرمخ وړاندې تللی اقتصاد ( advanced economy) او شاته پاتې اقتصاد (back word economy) نوموني هم کارول کېدې، ځینو ورته عصري اقتصاد ( modern economy) او دودیز اقتصاد ( traditional economy) هم وایه ، دا ټول متر ادف اصطلاحات وو.

په لومړۍ ډله هېوادونو کې ګڼ شمېر اروپايي هېوادونه ، د امريکې متحده ايالات استرليا او جاپان راتلل. خوپه دوهمه ډله کې يو شمېر اسيايي او افريقايي هېوادونه شمېرل کېدل. دوهمې ډلې هېوادو دغه نومونه ځانته له سپکاوي، ډکه بلله ، نو سره له دې چې حقيقت ته لږ نژدې هم وه، خو د دوهمې ډلې هېوادو په سياستوالو ښه نه لګېده، نو ځکه د ۱۹۵۰ م کال څخه وروسته د ملګرو ملتونو په ليکنو کې پرمختيا او وده دوه نسبي مفهومونه وګڼل شول او لږ څه معتدل اصطلاحات لکه پرمختللی هېوادونه ( developed countries) اولږ پرمختللی هېوادونه (less developed countries) رواج شول، خو بيا هم فقيرو هېوادونو ته دا نومونې د منلو نه وې، وروسته بيا د صنعتي او غير صنعتي هېوادو اصطلاحات دود شول. له دې ټولو څخه موخه داده، چې د نوموړې ډلې هېوادو او دويمې ډلې هېوادو د اقتصادي ودې او پرمختيا ترمنځ توپير وشي. د دې معنا داده چې چې پرمختللو هېوادو لا له مخکې د پرمختيا يې اقتصاد ځينې ټاکلي پړاوونه تېر کړي، نو ځکه دوی کولای شي چې اقتصادي وده لنډه موده کې ترسره کړي، په بله وينا : هغو ته مهمه خبره وه چې دوی بايد دفقر دايره يا د غربت کړۍ ( circle of poverty) ډېر ژر له منځه يو سي او په خپل ځان ويسا پړاو ته ورسېږي، نو ځکه د اقتصادي ودې او پرمختيا اړخونه په پرمختيايي هېوادو کې څو اړخيز او ژور دي، څو اړخيز په دې معنا چې دوی د خپلو پنځيزو ( طبيعي ) زيرمو څخه ګټه اخيستنه او پر هغو لاسبری، پانګه اچونه ، ټولنيزو چوپړونو، پوهې او مهارت ، د ملي عايد ښه ويش د اقتصادي جوړښت کې مثبت بدلون، د ټول نفوس څخه اقتصاداً فعال نفوس او نورو برخو کې ښه والی راولي چې دا ټول ددوی اقتصادي بُعد (اړخونو) کې راځي. بايد په ياد وساتو چې له اقتصادي نا برابرۍ سره د مبارزې او اقتصادي ودې او پرمختيا ته درسېدلو په خاطر نه يوازې، دعايد او توليد لوړوالی، بلکې ژورو سياسي -ټولنيزو بدلونونو ته هم اړتيا ده ، يوازې د پانګې اچولو لوړول نه ، بلکې بايد ټولنيز، فرهنګي، سياسي او نور ټول موسسات بشپړتيا ومومي، پرمختايي هېوادو کې نفوس ورځ په ورځ زياتېږي، پانګه يې لږه، سړی سر ګټه (PCI) يې ډېره ټيټه او د تکنالوژۍ له پلوه وروسته پاتې دي، يوه پرمختيا يې هېواد ته بايد وروسته پاتې ونه ويل شي، دا ځکه چې ممکن له دې څخه داسې تعبير وشي، چې ګواکې د پرمختيا امکانات يې ډېر لږ دي، او بيوزلي يا فقير به دا معنا ولري، چې ګواکې نوموړی هېواد هيڅ هم نه لري، په داسې حال کې چې زيات شمېر پرمختيايي هېوادونه پوره زيرمې او طبيعي شتمنۍ لري، خود پانګې ، مهارت او د تخنيک د ټيټې سطح له امله ترکار لاندې ښه نه دي نيول شوي. دپرمختيا يې هېوادونو اصطلاح په ۱۹٦٤ م. کال کې کينډې وکاروله، پرمختيايي اصطلاح ځکه هم مناسبه ده چې هيڅ داسې هېواد نشته چې د خپلې پرمختيا لپاره يې هڅې نه وې کړې، په دې توګه د غو هېوادو ته د بېوزله، نيستمن ، رووسته پاتې او داسې نورو نومونه ورکول مناسب نه دي، البته يو وخت چې په نړۍ کې دوه ستر بلاکونه يعنې د سوسياليزم او کپيټاليزم کمپونه موجود وو، ددې بالمقابل هڅه وشوه چې ټولو پرمختيايي هېوادو ته د دريېمې نړۍ نوم ورکړل شي، دغې نومونې سياسي اړخ درلود. د چين هېواد دسړې جګړې په حالاتو کې دغه اصطلاح دود کړی وه، دابايد هيره نشي چې د بيوزلي او پرمختيا او نه پرمختيا اصطلاحات نسبي بڼه

لري، کېدای شي د ډېرو پرمختللو هېوادو په کتار کې هم داسې هېواد ومومندل شي چې نظر نورو ته وروسته پاتې وي.
دپرمختيايي هېوادو يوه ګډه نښه داده چې حقيقي سرانه عايد (سړی سرګټه) يې د پرمختللو صنعتي هېوادو په پرتله ډېره ټيټه وي، د پانګې له کمښت سره مخامخ وي، د توليد په پروسه کې د عادي تخنيک او عنعنوي وروسته پاتې تکنالوژي څخه کار اخلي او پانګه يې ډېره ناچيزه او توليدي اغېزمنتوب يې ډېر ورو پرمخ روان وي، بشري ځواک پکې پوره په کار نه وي لويدلی او د دوی خپلې طبيعي سرچينې ، داخلي امکانات او ريزرفونه ګټې اخيستنې لاندې نه وي راغلې، دوی په عمومي توګه خپل خام توکي بهر ته صادروي او بالمقابل يو شمېر صنعتي اقلام واردوي، يو شمېر ټونليزو کړکيچونو سره مخامخ او په عملي ډګر کې وروسته پاتې او متخصص کدرونه لږ لري، په وروسته پاتې هېوادو کې بيوزلي ناڅاپي يا د لنډې مودې لپاره نه وي، بلکې دا دوی ته له پخوا څخه ورپاتې ميراث دی، چې زياتره اوسني پرمختايي هېوادونه پخوا د ښکېلاکګرو مستعمره وو او ددوهمې نړيوالي جګړې له پای ته رسېدو څخه وروسته خپلواک شوي دي. دغه بيوزلي ددوی د طبيعي سرچينو د کمښت له امله نه ده، بلکې د توليدي پروسې د نيمګړتيا له امله ده، نو ځکه د دوی په مخه کې د پرمختګ او ترقي ښه پراخه ډګر پروت دی، يعنې د پانګې ، بشري ځواک او طبيعي سرچينو په کار اچونې سره ښه امکانات لري، دلته لا اوس هم کرنه عمدتاً مسلط سکتور دی او صنعت يې نوی د پرمختګ په حال کې دی، اقتصاد پوهانو د يو شمېر نښو له مخې ټول اوسني پرمختايي هېوادونه په درې ډولو وېشلي دي:
ډېر لږ پرمختللي هېوادونه ( last developed countries (LDC3 لږ پرمختللی ( less Developed countries) او پرمختيايي Developing countries. ځينې وخت دی ټولوته مخ پرودې هېوادونه هم ويل کېږي، په ۱۹۹۵ کې م . م . ددغه ډول هېوادو شمېر ۴۲ وښود، لکه افغانستان ، بنګله دېش، سوماليا، بنين ، تايوان ، بوتسوانا، بوتان، بروندی،چاد، يمن ، ګينيا، ايتوپيا، سوډان، کامبيا، ګنې بسياو، مالي، مورتيانيا ، موزرمبيق، رووندا، سوماليا، يوګاندا، نيپال او يوڅو نور، خو د پرمختيا په حال کې هېوادونه چې صنعت يې نسبتاً پرمختللی او داقتصادي ودې په درشل کې دی، هغه دادي: ارجنټاين ، اسرائيل، هانکانګ ، چيلي، برازيل ، مسکيکو، سنيګارپور، تايونان ، جنوبي کوريا او يو څو نور . چې په GDP کې يې د صنعت ونډه په سلو کې شلو ته رسېلې ده ، دوی کې يو شمېر يې صنعتي نه دي، خو د نفتو په صادراتو متکي دی لکه سعودي عرب، قطر کويټ، بحرين او يو شمېر نور.
دوی ته درفاه معيارونه هم په مشکل سره ښودل کيدای شي، لکه د ښوونې او روزنې شرايط، روغتيايي اسانتياوې، ښه ترانسپورت، کلتوري او فرهنګي اسانتياوې او داسې نور. ځينې وخت دا ټول له اقتصادي رفاه سره يو ځای په مترادفه توګه استعماليږي، حال دا چې هره يوه يې د معنا له پلوه توپير سره لري.

## Development پرمختیا

پرمختیا چې په پارسي کې ورته انکشاف وایو، په یوه ټولنه کې یوه دوامداره پروسه ده ، چې هر هېواد په دې لاره کې هڅې کوي. اقتصادي پرمختګ د ټولنېزې پرمختیا یو مهم عامل اوشرط دی، یعنې یواځنی نه بلکې یو مهم عامل ده، دا ځکه چې پرمختیا یوازې اقتصادي پېښې نه دي، بلکې په پرمختیا کې د مادي او پولي اړخ ترڅنګ معنوی مثبت بدلون هم راځي اود خلکو د ژوند نور بېلابېل اړخونه هم باید ښه او د معیارونو له مخې اوچت شي، په دې توګه پرمختیا (انکشاف) د یوه هېواد یا یوې ټولنې داقتصادي او ټولنیز نظام د ټولې مجموعې ځو اړخیز ښه والی او سازماني نوښوالی او کلکوالی دی. پرمختیا یا انکشاف له ترقي (progress) او ودې (growth) سره ډېر توپیر لري. هره پرمختیا د اقتصادي ودې لرونکی وي، خو هره اقتصادي وده حتماً د اقتصادي پرمختیا محتوی نه وي، دا ځکه چې اقتصادي وده یو اړخ لري، هغه د ټولو ملي تولیداتو (GDP) یا ملي مجموعې تولید یاد هېوادپه سطح دټولو محصولاتو د کلني زیاتوالي سلنه ده ، حال دا چې اقتصادي پرمختیا په اقتصادي جوړښت کې د بدلون سربېره هر سیاسي اجتماعي ، کلتوري او نور بدلونونه هم رااخلي. په دې توګه د دغو درېیو بېلابېلو اصطلاحاتو لپاره بېلابېل نظریات او تعریفونه ورکړل شوي چې د الفاظو په لړ بدلون سره یې محتوا تقریباً سره یو شانته ده، اما پرمختیا له توسعې سره بشپړ توپیر لري دا به ډېره ناسمه وي چې د پرمختیا او انکشاف پرځای توسعه وویل شي، توسعه د (extension) او(expansion) په معنا ده چې د خپریدلو پراخېدلو او وسعت موندلو په معناده .

اقتصادي وده (economic growth) د ملي عاید زیاتوالی را اخلي، خو اقتصادي ترقي یا economic progress سړی سر ګټې سره سرو کار لري. کله چې موږ اقتصادي رفاه څخه خبرې کوو، نو دخلکو د ژوند دښه والي په معناده ، که چېرې یوه ټولنه کې د وګړو زیاتوالی د محصولاتو له ودې څخه زیات وي، نو ښکاره خبره ده چې د خلکو د ژوند کچه به ټیټه وي، اقتصادي پرمختیا د اقتصادي ودې په پرتله پراخه مانا لري، د اقتصادي ودې اصطلاح دکمي شاخصونو ښودونکی ده لکه ملي عاید ، د ژوند دوسایلو او اسبابو چمتو والی، په کورونو کې د یخچال ، تلویزیون ، بریښنا ، تیلیفون او نورو شتوالی.

پرمختیا د عوایدو او تولید د ښه والي ترڅنګ د ټولنې د اداري او ټولنیزو بنسټونو مثبت بدلون،د عامه تفکر او چتېدل او د فرهنګ وده هم را اخلي، سره له دې چې پرمختیا په یوه ملي اډانه کې تاکل کېږي، او د یوه هېواد دننه ورته کار کېږي، خو د پرمختیا پراخه اغېزې او نښې په ټول نړیوال اقتصادي او ټولنیز نظام کې د بنسټیزو اصلاحاتو لامل کېږي، باید هیره نه شي چې اوسنیو صنعتي پرمختللو هېوادوپه ډېرو جلا او توپیر لرونکو شرایطو کې د پرمختیا لاره وهلې، خو اوسني وروسته پاتې هېوادونه کاملاً جلا شرایطو کې دي. صنعتي پرمختللو هېوادونو ګام په ګام د خپلې تکنالوژۍ، مختصصو کادرونو ، پانګې محیطي او اجتماعي ځانګړو شرایطو په لرلو پرمختیا کړې، خو اوسني وروسته پاتې هېوادونه هومره وخت نه لري، دوی باید په لږ وخت کې د اوسنی پرمختیا معیارونه په پام کې ونیسي، خو ډېر ه مهمه ده چې د پرمختیا لپاره څه لارې وموي. دوی نشي کولای او نه هم باید په دې

فکر کې اوسي چې له سره د اروپا د سلو کالو وړاندې تکنالوژي جوړه کړي یا داسې نور، بلکې د اوسني عصر له تقاضا سره سم د خپلو ځانګړو کلتوري او مادي شرایطو په پام کې نیولو سره ځان پرمختیا ته چمتو کړي، دا د دې معنا نه لري چې دوی د اقتصاد دعلم له نظریاتو اولاسته راوړنو، په تېره د نیو کلاسیک له نظریاتو استفاده ونه کړي.

## Dualistic economy دوه ګونی اقتصاد

پرمختیایي او وروسته پاتې هېوادو کې د ښارونو او کلیو ترمنځ د ژوند د کچې اواقتصادی وضعیت ډېر توپیر ته ویل کیږي، په دغه ډول هېوادونو کې معمولاً په ښارونو کې څه نا څه پرمختللی چوپړونه لکه برېښنا، تیلېفون ، ترانسپورت ، عامه روغتیا او ښوونه او روزنه موجوده وي، خو په کلیو کې لا هم یو عنعنوي او وروسته پاتې سکتور په خپل حال پاتې وي.

## Economic development اقتصادي پرمختیا

د ژوند د معیارونو وار په وار اوچتېدل او د خلکو د هوساینې ښه کېدل ، پرمحتیا بلل کیږی،چې د پرمختیایي هېوادونو په انکشافي اهدافو کې یو مهم هدف بلل کېږي. د ژوند دمعیارونو اوچتېدل او د هوساینې ښه کېدل دسړي سر ګټې (PCI) سره په سیده توګه اړیکې لري. د اقتصادي پرمختیا په پروسه کې دصنعت سکتور،دکرنې د ترقۍ په دوام ګړندي پرمختک کوي، د استخدام نوي فرصتونه ایجادېږي، عامه خدمات ښه والی مومي، د تجارت کسرله منځه ځي، سپما او پانګه اچونه ښه کېږي، بانکي سکتور پیاوړی کېږي، د دولت ثبات اوښه امینت ډاډمن او مدني ټولنه پرمختګ کوي.

## Economic growth اقتصادي وده

په یوه هېواد یا ټولنه کې په اقتصاد کې کمی بدلون او د اقتصاد غوړېدا(رونق) اقتصادي وده بلل کېږي. د اقتصادي ودې معیار په ملي ناخالص تولید کې هغه سلنه زیاتوالی دی، چې په ټول (GNP) کې ولیدل شي. دا معیار د یوه کال په ترڅ کې په فیصدۍ ښودل کېږي.
اقتصادي وده په دوو بڼو څرګندېږي :
یو اقتصاد کولای شي چې دیو شمېر سرچینو، بشري ځواکونو، فزیکي پانګې او نورو طبیعي سرچینو په لا زیاتو او غوره ګټې اخیستو سره چې د هغو په کارولو کې ښه والی او اغېزمنتوب اوچت کړي ، وده وکړي. د بېلګې په توګه کله چې د بشري ځواکونو په ښه کار اچولو سره اقتصادي وده واقع شي، د سړي سر کلنۍ ګټې د زیاتوالي لامل نه کېږي، خو که چېرې له ټولو سرچینو ( د بشري ځواک په ګډون ) څخه په پوره اغېزه او لازیاته توګه استفاده وشي او مؤلدیت ته پاملرنه وشي، نو سړی سرکلنۍ ګټې (PCI) کې زیاتوالی

راځي، البته دا په خپله د ژند د کچې د لوړېدو لامل کېږي، يعنې اقتصادي وده له اقتصادي پرمختيا سره اړيکې مومي، دلته ډېره پاملرنه د ملي توليد خالص زياتوالي ته ده ( ځينې وخت ټول توليدات په ملي مجموعي توليد کې نشي ثبت او محاسبه کېدای، مثلاً د کرنې په سکتور کې کله چې بزګران له کرنيزو محصولاتو د خپلو کورنيو او خپلوانو د ورځنيو خوراک لپاره کار اخلي، دغه مصرف شوي توليدد کال د پای محاسبه کې نشي راتلای ) په دې لړ کې داقتصادي ودې مفهوم د اقتصادي پرمختيا له مفهوم سره توپير کولای شو .

## Economic warfare اقتصادي جګړه

هغه ويجاړوونکی يرغل اوتخريبی فعاليتونه چې د يوه هېواد اقتصادي منابع ويجاړوي. د جګړې پرمهال د مقابل لوري پرضد داسې اقتصادي فعاليتونه ترسره کول چې مقابل لوري له پرېشاني او وارخطايی سره مخامخ کړي، لکه د خوراکي توکيو د لېږدولو مخنيوی، ښارونو ته د اکمالاتو دکتارونوسوځول، د فابريکو شنډول، د اقتصادي تاسيساتو ويجاړول ، د اقتصاد په ډګر کې د مهارتونو له منځه وړل، د متخصص کادر فلج کول او نور ډول ډول اشکال هريو اقتصادي جګړه ده.

## Employment په کار بوختيا

په يوه کار کې بوخت اوسيدل. داستخدام حالت. مسلک،شُغل او مصروفيت. د بېکارۍ په وړاندې دپه کار ګوماريدنې حالت .

## Engel’s law د انګل قانون

د لږ عايد لرونکو کورنيو د عوايدو د مصرف له مخې د دوی د لګښت سلنه محاسبه شوې او يوعجيب حقيقت ورڅخه څرګند شو. څېړنې ښکاره کړه چې د بيوزلو د عايد ډېره برخه په خوراک لګېږي، خو هغه کورنۍ چې لوړ عايد لري، د دوی د عوايدو ډېره لږه سلنه په خوراک ، نوره پاتې برخه په تعليم ، تفريح ، سياحت، روغتيا او نورو برخو کې لګېږي. په دې توګه په خوراک باندې د عايد د سلنې مصرف د ژوند د کچې د ټاکنې يو معيار ګرځېدلای شي، خو بيا هم د ژوند دکچې لپاره يو داسې عام قانون نه دی، چې د ټولو لپاره د منلو وړ وي.

## Fatalism فټالېزم

د پرمختيايي هېوادو کليوالي وروسته پاتې سيمو کې له سواد او پوهې څخه د پاتې خلکو هغه خرافي ذهنيت چې د ژوندانه لپاره تدابير نشي نيولای اوهرڅه اوهامو ته حواله کوي. دوی

په خپل برخلیک باندې پیریان، شیشکې یا بل څه مسلط بولي. د حرکت کولو اوبیا د الله (ج) له لوري د برکت کولو په فلسفه نه پوهېږي. دغه ډله خلک فقط په توکل امید تړي خو تدبیر ورڅخه هیروي. فتالېزم په دغه ډول سیمو کې ژوند له تحرک څخه غورځولی، فعالیتونه مبهم او بې نظمه او سرچینې تولې له لاسه وتونکی دي. فتالېستان د تولنې د اوږو بار وګرځي وي.

## Feudal system ملوک الطوایفي

یوه تاریخي مرحله وه چې په هغې کې ځمکوال د حاکمانو په توګه واکمن وي او کوچنۍ کوچنۍ ساحې یا څو څو کلي یې تر حکم لاندې وي. په اروپا کې دغه ډول نظامونه له نهمې پېړۍ څخه تر پینځلسمې پېړۍ پورې واکمن وو. دځمکو خاوندانو ته یې لارد ویل، نورعادي خلک د دوی مریئیان او بزګران وو، دغه وخت په یوه هېواد کې یو سراسري واحد دولت موجونه و.

## Feudalism فیوډالېزم

د ځمکې د تولید نظام ، یعنې حاکمه طبقه ځمکوال یا املاک دی او د کار ځواک بزګران دی، چې پرځمکه کار کوي. په اروپا کې په منځنیو پېړیو کې دغه ډول نظام موجود و. پاچا کولای شول ځمکې په تیول او اقطاع کې ورکړي، د خپلې واکمنۍ د ټینګښت لپاره به یې ځمکه د قبیلو مشرانو او سیمه ییزو ځواکمنو افرادو ته ورکولې. لویو ملاکانو کولای شول، د ځمکو لویې ټوټې نورو کوچنیو ملاکانو ته په اجاره ورکړي. پر ځمکه مالکیت میراثي و، د ملاک لپاره سرف کار کاو. د همدې نظام په پای کې بازار رامنځته شو، پانګې جوړښت وموند او د صنعت په تېره بیا د ماشیني صنعت نښې څرګندې شوې. دغه نظام په اروپا کې در وم د امپراتورۍ له پرځېدو سره سم ټینګ شو او لویو ځمکوالو سیاسي قدرت ترلاسه کړ. دوی د اروپا بېلابېلو سیمو کې یو ډول منظمه او ټینګه ملوک الطوایفي جوړه کړه ، یعنې هر فیوډال خپل ور بوی درلود او یو ډول تړلی اقتصاد یې رهبري کاوه.هر لارډ د یوه پاچا مثال درلود، خو په فرانسه ، آلمان او ایټالیا کې پاچاهانو او شهزادګانو د فیوډالو په زور تکیه کوله او خپل حاکمیت یې د دوی په زور په سیمه ییزه کچه ټینګ ساتلی و. سرف ( بزګر یا د ځمکې کارګر ) نشو کولای د خپل ملاک له اجازې پرته بل ځای کار وکړي، خو د سرف ازادي دمرئیانو په پرتله زیاته وه اومرګ اوژوند دواړه یې دبادارپه لاس کې نه وو، یعنې دغه دوره د مرئیتوب په پرتله یوه څه پرمختللې وه. په دې نظام کې بهرنۍ راکړه ورکړه نه وه، بلکې دیوه تړلي اقتصاد بڼه یې لرله. د دې دورې مانو فاکتور اولاسی کارونو در اتلونکي ماشیني صنعت او پانګوالی بنسټ کېښود.

## Food security غذ ايي مصؤنيت

دغې اصطلاح په ١٩٤٤ م. کال کې د خوراک او کرنې سازمان په يوه بحث کې هغه حالت تعريف کړ ، چې هلته د خلکو لپاره دومره کافي اندازه خوراکي توکي وي چې دوی نه يوازې دا چې وږي پاتې نشي، بلکې د کيفيت له پلوه او د مربوطه ټولنې د اجتماعي او کلتوري لحاظه هم مناسب وي. خلک له رواني پلوه د خوراکي توکو د کمښت ويره ونه لري. دغه غذايي توکي بايد دانرژۍ ، منرالونو، ويټامينونو او نشايستي له پلوه د بدن دماشين د چلولو توان ولري. يعنې غذايي مصؤنيت يوازې د قطحي نشتوالی نه ، بلکې يو څلور بُعدي حالت دی، چې غذا بايد له دغو څلورو بُعدونو خلکو ته مناسبه وي، چې هغه يې د کافي والي، مغذي والي، اجتماعي والي او له رواني پلوه ډاډه والي بُعدونه دي.

## Group77 ۷۷ ډله

په ١٩٦٤ م ، کال کې په ملګرو ملتونو کې د سوداګرۍ او د پرمختيا په کنفرانس کې اوه اويا پرمختايي هيوادونو ګډون کړی و، چې ورسره يو ځای څه نا څه پنځه وېشتو نورو هېوادونو هم برخه واخيسته . دوی په نړيوال اقتصاد کې د پرمختايي او وروسته پاتې هېوادو استازيتوب وکړ او خپل رول يې په نړيوال اقتصادي نظام کې تعريف کړ ، د نړيوالې سوداګرۍ د موافقه ليک په بحث کې د تعرفو او تجارت په برخه کې يې خبرې وکړې ، د (UNCTAD) لپاره زمينه برابره شوه او پرمختايي او د هغه وخت وروسته پاتې هېوادو ته د تکنالوژۍ د لېږدولو د چټکتيا او اقتصادي مرستو په هکله او په خپلو طبيعي زيرمو باندې د حاکميت د ټينګولو په اړه يې وړانديزونه وکړل. لکه چې وويل شول، د دغه کنفرانس ګډون کوونکی له سلو زيات وو، خو دا چې په اصل کې د علاقمندو هېواد شمېر ۷۷ وو، نو ځکه د اوه اويا ډله نوم ورکړل شو، داټول پرمختيايی هيوادونه وو.

## Grant بلاعوضه مرستې

هغه پيسې چې د يوه هېواد، وګړو يا سازمانونو له خوا نورو هېوادو، وګړو يا سازمانونو ته د مرستې تر عنوان لاندې ورکول کېږي. ګڼ شمېر پرمختايي هېوادونو له پرمختللو هېوادونو او خيريه ټولنو څخه دا ډول مرستې ترلاسه کړې دي او ترلاسه کوي يې.

## GNP per capita سړي سر ملي ناخالص توليد

د يو هېواد ټول هغه ملي ناخالص توليد چې د دغه هېواد په نفوس تقسيم شي، حاصل يې هغه عايد دی چې ددغه هېواد هر وګړي ته رسېږي. دا محاسبه په اوسط ډول سنجول کېږي، يعنې ممکن ترلاسه شوي عدد هرو مرو هر وګړي ته عين اندازه نه وي، دې ته سړی سر عايد هم ويل کېدای شي. دغه عايد per capita income عدد داقتصادي ودې

يو معيار ګڼل کېږي، خو په مطلق ډول د يوې ټولنې د ټولو وګړو د هوساينې ښودنه نه شي کولای، دا ځکه چې په تېره بيا په پرمختيايي هېوادونو کې د وګړو ترمنځ د ژوند دکچې ډېر توپير موجود وي . له بلې خوا په دغه ډول محاسبه او عايد سنجولو کې دا نشي ثابتېدای چې ايا د ټولنې ټول ناخالص توليد د چاپيريال ساتنې او د منابعو د زيانمن کېدو اوله لاسه وتلو له پلوه څومره معقول دی او توليد شوي اجناس او خدمات څومره په عمومي هوساينې او ټولنيزې رفاه کې اغېزمن اوګټور دي ( د بېلګې په توګه کيمياوي وسلې زهري توکي، سګرت او تمباکو او نور داسې شيان ) ممکن د توليد شويو اجناسو په ډله کې وشمېرل شي او بيه به يې هم محاسبه شي ، مګر ټولنيز ګټور توب نه لري. په دغه معيار کې د خلکو بشري حقونه، فردي ازادي، دتفريح وخت، د زده کړې کيفيت او يو شمېر نور اجتماعي نورمونه هم په پام کې نشي نېول کېدای . د شلمې پېړۍ له شپېتمې لسيزې مخکې (PCI) د هېوادونو د پرمختګ يو معيار و، خو اوس دغه رقم د ټولنې د پرمختيا معيار نه بلل کېږي، بلکې مهمه خبره ټولنيزه هوساينه ده .

## د انساني پرمختيا شاخص Human Development index(HDI)

د هېوادونو ترمنځ د هغوی د بشري منابعو د کيفيت او کچې د ارزولو په خاطر په مقايسوي توګه د يو شمېر ټولنيزو معيارونو او شاخصونو يو ترکيبي شاخص دی چې د ډېر لږ معلوماتو له مخې هم دغه شاخص په نښه کېدای شي، دغه شاخص لومړی ځل په ۱۹۹۰ م کال کې د ملګرو ملتونو د پرمختيايي پروګرام ( UNDP) په يوه راپور کې په کار يوړل شو، د انساني پرمختيا په هکله د ملګروملتونو د پرمختيا يي پروګرام په دغه کلني راپور کې د خپور شوي شاخص له مخې د هر هېواد لپاره لاندني معيارونه په پام کې نيول شوي وو:

- د زيږېدو پرمهال د ژوند توقع،
- له شپاړس کلن څخه د پور ته اتباعود باسوادۍ نسبت او په ښوونځيو کې د نوم ليکلو اندازه ،
- د پيريدلو توان او امريکايي ډالرو په حساب د سړي سر کلنی نا خالص توليد. دغه اندازه له بده مرغه لا هم پرمختيايي اوروسته پاتې هېوادو کې لازم حد کې نده. دوی په دغو درېواړو معيارونو کې له منځني حد شاخص څخه پورته نه دي.

## د انساني سرچينو پرمختيا Human Resource Development (HRD)

د بشري منابعو يا د کار ځواک هغه روزنه ، د مهارتونو ، تجربې ، کسبي او ذاتي توانايي اود معيارونو هغه اوچتول چې په يوه سازمان ، اداره ، ټولنه او هېواد کې د مديريتي تخنيک اويا هم د ښوونې او روزنې او ترېننګ ورکولو له لارې پرمخ بيول کېږي.

## High – income countries لوړ عايد لرونکي هېوادونه

د شلمي پېړۍ په پای کې د ملګرو ملتونو اقتصادي متخصصينو بېلابېلې څېړنې وکړې او د هېوادونو د سړي سر ګټې ( PCI ) په هکله يې ارقام خپاره کړل، چې وروسته تر هرو څو کلونو يې توپير دلود. په ۱۹۹۹ م. (د يوويشتمې پېړۍ په درشل) کې يو راپور خپور شو. په هغه کې هغه هېوادونه چې دعايددغه رقم يې ۸۰۰۰امريکايي ډالره اويا له هغه څخه اوچت و، په دې ډله کې د امريکې متحده ايالات ، انګلستان او کاناډا څخه پرته سوېډن ، بلجيم او کوېټ هم راتلل.

## Hidden unemployment پټه بېکاري

د بېکارۍ بېلابېلو ډولونو کې پټه بېکاري هغه حالت دی، چې د کار ځواک د کار د بازار د نا مناسب وضعيت له امله د کار په لټه کې نه وي ( چې د بېکارۍ له تعريف سره سم د کار موندلو په لټه کې نه وي، نو هغه مطلق وزګار نه بلل کيږي)، خو دا چې عملاً په کار بوخت نه دی، نو وزګار دی، خو د کار لټون بې ګټې بولي، ځکه ورته مناسب او وړ نه ښکاري، که نه نوموړي به خپل کار عرضه کړی وای. په دې توګه پټه بېکاري له کم کاري ( ناچيزه مزد) موسمي بيکاري ، مطلقې يا ښکاره بيکاري او بشپړ استخدام سره توپير لري.

## Investment پانګه اچونه

هغه اقدام او تدابير چې په لاس کې موجودې پانګې څخه د راتلونکې لپاره نوره لا زياته ګټه ترلاسه شي. د پيسو ( پانګې ) په لګولو سره ملکيتونه ترلاسه کول ترڅوپه دوامداره ډول په راتلونکي کې ګټه او مفاد ورڅخه ترلاسه شي. په ملکيتي ګټه لرونکې بڼه د پيسو ( پانګې ) اړول چې اصلي پانګه محفوظه او له دې پرته در ضايت وړ ګټه په دوامدار شکل ورڅخه ترلاسه شي. د پيسو اړول د توليد په وسايلو . د لا زياتې ګټې په موخه د يوې پانګې په کار اچول چې له سپما څخه بشپړ توپير لري.

## Investment determinants دپانګونې ټاکونکې

پانګونې ته د اقتصاد د پرمختيا د يوه مهم فکتور په توګه کتل کيږي. د پانګونې يو شمېرټاکونکي عوامل (determinants) نشي کېدای، چې هير شي. ددغه ديتر مينځونو شتون پانګونې سره مرسته کوي لکه د پانګې د ربح سلنه، تکنالوژيکې اسانتيا، مصونيت، له پانګې څخه د توقع کېدونکو پايلو ډاډمنتيا، ددولت ماليه اود ماهره کارځواک شتون. ځينې

اقتصاد پوهان وايي چې تر پانګونې دمخه بايد د هغې په ټاکونکوباندې کار وشي.پرمختيايی هيوادو ته ډيره ضروی ده چی د پرمختيا په بهير کی دی ټکي ته اهميت ورکړی.

## International poverty line د بېوزلی نړيواله کرښه

د پرمختيايي هېواد او لږوپرمختللو هېوادونو (DCs/LDCs) لپاره يوه اقتصادي، اجتماعي ستونزه بيوزلي ده . د بېوزلی لپاره يو ښودل شوی حد، د بېوزلی کرښه (poverty line )ده . دا هغه بريد دی چې وګړي د معيشت لپاره حد اقل وسايلو څخه لږ ولري. د بېوزلی مسئله د ملګرو ملتونو په اجندا کې شامله موضوع اود زريزې په اهدافو (MDGs) کې راغلې خبره وه، خو کله چې د نړيوال بانک له خوا د عايد داسې بريد وښودل شو ، چې د هغه له مخې د نړی بېوزله وګړي وپېژندل شي، دا د بېوزلی نړيواله کرښه وبلل شوه، چې نړيوال بانک هغه د يوه وګړي لپاره په يوه ورځ کې يو ډالر څخه کم ښودلی دی. دغه بريد د ۱۹۸۵ م. کال د بيو د پيرودنې د توان پر بنسټ و ( په ۱۹۹۳ م .کې د هغه وخت د يوه ډالر د پيرودنې بيه 1,08 وښودل شو يعنې د ډالرو دپيرودنې توان ممکن بېلابېلو وختونو کې تعويض شي ). موخه دا چې دا يو معيار وګڼل شو ترڅو بيوزله وګړي ورباندې وپېژندل شي . که د کورنی لپاره يې په پام کې ونيسو، د کورنی د هر غړي ورځنی عايد يا مصرف همدومره محاسبه کيږي. دا کرښه صرف ديوې نړيوالې مقايسې لپاره غوره شوې ده ، يعنې په واقعي توګه هر بېلابېل هېواد کې د بېوزلی د يوه شاخص ټاکل اوبيا يو بل سره پرتله کول ستونزمنه خبره ده . په عموي توګه د نن ورځې وروسته پاتې او پرمختيايي هېوادو کې دغه شاخص د دوی د هر يو دبيوزلي کرښې ته نژدې رقم دی. دا د ډېرو بېوزلو لپاره صدق کوي، خو د منځنی بېوزلی نړيوالې کرښې لپاره د هر وګړي لپاره 2,4 ډالره ښودل شوی دی،کوم چې يووخت۱،۰۸ښودل شوی و.له بده مرغه په افغانستان کې د رسمي ارقامو له مخې په سلو کې ۳۸ وګړي د بېوزلی تر کرښې لاندې ژوند لري، دغير رسمي ناتاييدشويو راپوروںو له مخې په کليوالي سيمو کې نيمايي وګړي د بېوزلی تر کرښې لاندې ژوند تيروي.اوس نو هغه کسان چې په يوکال کې يی منځنی کلنې عايد تر ۸۷۰ډالرو(دس.نيوبيو له مخې تر ۶۰۰۰۰افغانيو) کم وی، ټول دبيوزلی ترکرښې لاندې ژوندلري(۱۳۶۹-تله) .

## Infrastructure بنسټيز جوړښت

د اقتصادي ودې لپاره هغه بنسټيز جوړښتونه چې د توليد او د خدماتو د پرمخ بيولولپاره اسانتيا رامنځته کوي. پرمختيايي هېوادونه لا اوس هم د خپل اقتصاد لپاره پياوړی: زير بنا چې د دوی اقتصاد ورباندې په پښو ودريږي، نه لري. په دې کې ټول عامه وسايل او اسانتياې لکه لاری، د وسپنې پټلی، بندرونه ، هوايي ډګرونه ، د برېښنا بندونه ، تيليفون او نور راځي . دغه ډول زيربنا د پرمختيا لپاره يوه لومړنی اړتيا ده. دې ته زيربنا هم ويل کيږی او موخه ورڅخه هغه اقتصادي تاسيسات او بنسټونه دي چې د اقتصادي او ورځني

ژوند لپاره اساسي ضرورت بلل کېږي، لکه لويې لارې، د برېښنا بندونه، د کرنې لپاره د اوبخور کانالونه ، سړکونه او پلونه، بانکونه، د بېمې شرکتونه او نور چې هريو يې د اقتصادي فعاليتونو د پرمخ بيولو او اسانتياوو لپاره اساس بلل کېږي. پرمختيايي هېوادونه د پرمختيا لپاره په يوه مرحله کې ددغه ډول تاسيساتو ايجاد ته اړتيا لري. سره له دې چې ممکن د انفراستر کچر ايجاد دوی ته له اقتصادي پلوه د زيات لګښت لرونکی وي، خو ايجاد او جوړول يې حتمي دی. افغانستان په ريښتيانی توګه وروسته له ۱۳۳۵ ل. کال څخه ديو شمېر انفرا ستر کچر تاسيساتو په جوړولو پيل وکړ چې تر ۱۳۷۰ کال پورې يعنې پوره ۳۵ کاله يې وخت ونيو، چې له دې وروسته بل ګام په دې برخه کې اوچت نشو، بلکې هغه پخوانی هم ړنګ شول .

## نوی په پښو درېدلی صنعت Infant industry

لا هم پرمختيايي هېوادونه د خپلو صنايعو په فکر کې دي او دا ورته مهمه ده چې خپلې ډېرې اړتياوې د کور دننه د صنعتي پروسې په بهير کې توليد او عرضه کړي. سره له دې چې يو شمېر صنايع نوي په پښو دريدلي بلل کېږي، خو له دې نويوالی سره سره، خپل ځانګړی ارزښت لري. کله چې يو صنعت يا صنعتي څانګه په خپلو لومړنيو پړاوونو کې وي او د بهرنيو اجناسو د سيالۍ له کبله يې په بازارونوکې ونډه نا چيزه وي، دې ته infant industry (نو پايا نوي په پښو دريدلی صنعت) وايي. دغه ډول صنايع بايد د بهرنيو وارداتو په وړاندې د دولت له خوا حمايه شي، په هغو کې د صرفه جويي په لارو- چارو فکر وشي او کيفيت ته يې پاملرنه وشي. په دې توګه نوې رامنځته شوې صنايع د دوی د خامو موادو لپاره د ماشين حيثيت پيدا کوي او د عايد په لوړېدو او کارموندنې په برخه کې ورته ګټور ثابت او له يوه سکتور څخه پرته دغه هېواد د ځو نورو سکتورونو لرونکی کېږي. دولتونه بايد په دې حالت کې تعرفو ته پاملرنه وکړي او غواړی خپل نو پايه صنايع د وارداتو مقابل کې پياوړی وساتي. کله چې دغه صنايع پياوړي شول او د سيالۍ جوګه شول، وروسته تر هغه ګمرکي تعرفې څخه صرف نظر کېدای شي، دې بحث ته infant industry urgument نوم ورکړل شوی چې اقتصاد پوهان په دې بحث کې لازمي پايلې ترلاسه کوي. په دغه بحث کې تعرفې د خامو موادو بيه، سبسايدي او پر نورو تکنالوژيکي او انرژيکي ستونزو بريالي کېدل شامل دي.دپرمختيايی تيوری له مخې هغه صنعت يا صنعتي برخې چې نوې ايجاد شوې دي او د ګمرکي تعرفو او ماليې ټاکنې په پاليسيو کې ملاتړ ته اړتيا لري، له هغو څخه بايد دسيالۍ په برخه کې حمايه وشي. پرمختيايي هېوادونه بايد دصنعت نوې څانګې رامنځته او دنوزادو يا ځوانو صنعتونو په توګه يې ملاتړ وکړي. هر پرمختيايي هېواد کولای شي د خپلو خامو توکيو د ځانګړتياوو له مخې دا ډول صنايع ايجاد او پياوړې کړي.

## Traditional society دودیزه ټولنه

د پرمختیایی تیوري نامتو څېړونکي روستو د اقتصادي پرمختیا پنځه مهم پړاوونه په ګوته کړل او ویې ویل چې یوه ټولنه یا یوهېواد باید د خپلې پرمختیا په بهیر کې له هغو څخه تېر شي. په دې کې لومړنی پړاو د ودیزه یا سنتي ټولنه ده ، چې په دې کې تکنالوژي تر ټولو ساده مرحله کې ده، د نوښت او تولید انګېزه ضعیفه اوراکړه ورکړه ډېر ساده شکل لري، د پرمختیا په خاطر له دې پړاو څخه وتل لومړنی شرط دی.

## Poverty بیوزلي

بیوزلي هم په مطلق ډول او هم په نسبي توګه د پېژندلو وړ ده . بیوزلی هغه حالت او وضعیت دی چې یوه وګړي ته د ده اقل حد لومړنی اړتیاوې چمتو نه وي. هغه ناوړه انساني حالت چې د بیولوژیکي لومړنیو اړتیاوو په شمول دژوند اقل حد سهولتونو ته لاسرسی نه وي. کېدای شي، یو وګړی، یوه کورنۍ او آن یو هېواد د یو بل وګړي،کورنۍ یا هېواد په پرتله په نسبي توګه بیوزله وپېژندل شي او هم کېدای شي د ژوند دمعیارونو په ارزولو سره یو وګړي، کورنۍ یا ټولنه په مطلق ډول بیوزله وبلل شي. د پرمختیایي هېوادو لپاره دا ډېره مهمه ده . په پرمختیایي هېوادو کې د بیوزلو خلکو سلنه سنجول کېږي، د بېلګې په توګه همدا اوس د ملګرو ملتونو د راپور له مخې په افغانستان کې په سلو کې ۳۸ وګړي بیوزله بلل شوي دي (۱۳۹۶ ل . د وري میاشت). ځیني وخت ممکن یو تن د ژوند د تېرولو لپاره یوه اندازه د پام وړ عاید ولري، خو د ټولنې د نورو وګړو په مقایسه ډېر کم وي، په دې حالت کې هم نوموړې دخپلې ټولنی بیوزله وګړی پېژندل کېږي او د فقر تر کرښې لاندې شمېرل کېږي. د ټولنې د عمومي رفاه او عاید په اوچتېدو سره د فقر کرښه هم لوړه تعریف کیږي. د دې لپاره یو معیار ښودل شوی چې د فقر کرښه **Poverty line** بلل کېږي. دا د عاید هغه برید دی چې تر هغه لاندې وګړي ټول بېوزله پېژندل کېږي، یعنې دوی د خوراک ، جامو، کور او د ټولنیزو او کلتوري اړتیاوو د پوره کولو وس ونه لري. دې ته ( مه مره، مه رغېږه ) یا (subsis tence) هم ویل کېږي.

## Poverty line د بیوزلۍ کرښه

هغه اندازه عاید چې یوه کورنۍ یې لري او له هغه څخه که ډېر لږ راکم شي، نو دغه کورنۍ په بېوزلو کې وشمېرل شي. د یوې کورنۍ د حد اقل ژوندی پاتی کیدو په اندازه عاید.

## Population growth rate دوګړو د زیاتوالي اندول

په یوه هېواد کې په یوه ځانګړي دوره ( معمولاً یوه کال ) کې په وګړو کې هغه اندازه زیاتوالی دی چې په هرو زرو تنو کې لیدل کېږي، او پایله یې په سلنه ښودل کېږي، دغه زیاتوالی نوي زېږېدلي ماشومان اونوي راغلي وګړي ( مهاجرین ) دي چې له هغو څخه د مړینو شمېر او له هېواد څخه وتلي وګړي منفي کېږي.

## Population policy د نفوسو پالیسي

هېوادونه د نورو پالیسو ترڅنګ دو ګړو په هکله هم ځانګړي سیاستونه لري، د بېلګې په توګه د نفوسو د کیفیت پالیسي ( روغتیا ، ښوونه او روزنه او د مهارتونو لوړول )، د نفوسو میشت کول ( په هغو سیمو کې چې په یو مربع کیلو متر کې لږ شمېرو ګړي اوسېږي په دغو ځایونو کې دوګړو د میشت کولو هڅونه )، د وګړو دشمېر مطالعات ، د کورنۍ پلان جوړونه، د واده د عمرټاکنه ، د ښځو د روغتیا ښه کول او داسې نور تدابیرشامل دي.

## Planned economy پلاني اقتصاد

هغه اقتصادي نظام چې هلته د اړتیاوو د پوره کولو لپاره د اجناسو او خدماتو تولید، د ټولنې داکثریت غړو د اړتیاوو د پوره کولو په خاطر او اقتصادي ټولنیزو اهدافو ته د رسیدلو لپاره د پلان جوړونې د ادارې له خوا په پام کې نیول کېږي. یعنې د بازار ځواک ( عرضه او تقاضا ) پکې ارزښت نه لري. دلته پلانونه او جوړ شوي پرواګرامونه لارښود حیثیت لري او ګڼ شمېر فعالیتونه د ټولنې د لوړ مدیریت او مقاماتو د هدایت پر بنسټ پرمخ ځي. وروسته د دوهمې نړیوالې جګړې له پای ته رسېدلو څخه د پلان جوړونې میتودونو پراخه دود وموند. ګڼ شمېر هېوادونو لکه پخواني شوروي اتحاد ، فرانسې، هندوستان ، مصر،عراق،لیبیا،پاکستان، ایران او نورو پنځه کلن پلانونه تطبیق کړل، جاپان اوه کلن اقتصادي، اجتماعي پلانونه تطبیق کړل، چین ، ویتنام، کیوبا او د شرقي اروپا هېوادونو د مرکزي اقتصاد په شیوه پلانونه جوړ او تطبیق کړل . افغانستان هم له ۱۳۳۵ ل .کال څخه تر ۱۳۶۹ کال پورې بېلابېل پلانونه اجرا کړل . اوس هم بېلابېل دولتونه د اقتصادي او ټولنیزې پرمختیا لپاره په بېلابېلو بنو پروګرامونه او پلانونه لري، چې ګڼ شمېر یې دلنډې مودې دي. افغانستان له ۱۳۸٤ کال وروسته د بیا رغاونې په خاطر د پرمختیا یوه ملي ستراتیژي جوړه کړه چې د ANDS یا Afghanistan national development Stratigy په نوم یادېده. دغې ستراتیژۍ د اقتصادي پرمختیا ، د بېوزلۍ د کمښت، امنیت اوحکومتولۍ په برخه کې بېلابېل ارکان لرل. د شلمې پېړۍ له اتیایمې لسیزې وروسته د پینځه کلنو پلانونو میتود، طرح او تطبیق په مرکزي بنه ډېر وهېوادونو کې پرېښودل شو.

## plan implementation د پلان تطبیق

د پلان په سایکل کی یو پړاو دی. یو پلان د اړتیاوو له سنجولو نیولی، د هغه تر طرح، تطبیق او ارزونی پوری څو پړاوونه لری، چی تر ټولو مهم او زیات وخت نیوونکی پړاو همدا د تطبیق پړاو دی.

## Redistribution بیا وېش

په یوه ټولنه کې د شتمنیو یا عوایدو د وېش د بدلون پروسه ده ،چې د وګړو ترمنځ د عایدلېږدول په قصدي ډول وي. یا هم پالیسي داسې پرمخ بوتلل شي چې په هغې سره شتمني داسې لګول کېږي، چې پایله او ګټې یې د ټولنې ټولو وګړو ته ورسېږي. د بېلګې په توګه په ډېر زیات عاید لرونکو تشبثاتو د اوچتې مالیې وضع کول او بیا د دغو مالیاتو داسې مصرفول چې عامه خدمات وربانديې ښه شي او د ټولنې بیوزله خلکو ته یې هم خدمات ورسېږي، یا دوی ته د کار فرصتونه پیدا شي . دعاید بیا وېش نه یوازې د عدالت ډاډمنتیا، بلکې د عاید ډېر ښه مصرفول هم دی. بیا وېش زیاتره وخت د شتمنۍ د وېش په معنا هم نه وي بلکې د هغې د اثراتو او پایلو له مخې ترسره کېږي.

## R& D څېړنه او پرمختیا

څیرنه او پرمختیا( Research and Development)د نن ورځې یوه کلیدي اصطلاح ده او په پورتنۍ بڼه یې ټوله نړۍ پېژني او د دغو دووتور"R&D " په معنا پوهېږي. لومړۍ توری(R) یعنې research یا علمي تحقیق او دوهم توری (D) یعنې Development پرمختیا . دا د پوهې ، تکنالوژۍ او معلوماتو د زیاتولو په خاطر هڅې دي چې زیاتره د فکري کار په ردیف کې راځي. پایله یې اقتصادي وده ، ټولنیزه هوساینه ، ټولنیز عدالت ، سوله،روغتیا او نورې د خیر- ښېګڼې موخې دي. ددغه ډګر کار کوونکو ته چې تر ټولو زیات ذکاوت او دقت ته اړتیا لري او یو دروند فکري زیار بلل کېږي، اوچت ارزښت ورکول کېږي. په اقتصاد کې څېړنه د فني وسایلو دچمتو کولو او د تولید د اضافه کولو لامل کېږي. انسانی پانګه هغه پانګه ده چې یوهېواد یې د څېړنې او پرمختیا په لاره کې لګوي، چې پرمختیايې او وروسته پاتې هېوادو کې په نشت برابر ده .

## public welfare عامه هوساینه

یوه نسبی اصطلاح ده چی له یوی ټولنی تر بلی او له یوه وخت څخه تر بل پوری توپیر کوی. دا د ژوند د کچی د یو شمیر معیارونو مهیا والی او شتون دی چی د وګړو هوساینه ښکاره کوی، لکه د څښلو د پاکو اوبو شتون، د سواد کچه، ټولنیز مصؤنیت، کافی خوراک،

تفریح. د ښوونی او روزنی امکانات، روغتیایی آسانتیاوی او ګڼ شمیر نور چی د وګړو په هوساینه کی حتمی دی.

## Monetary policy پولي سیاست

د اقتصادي پالیسیو د تطبیق او اجرا او یو شمېر اقتصادي اهدافو ته د رسېدو لپاره دولتونه له بېلابېلو لارو- چاروڅخه کار اخلي. په دې کې یو هم ده له پولي مقدارونو او د پیسو دسیستم له کنترول څخه کار واخیستل شي، د بېلګې په توګه ځیني وخت دولت غواړي بیې ثبات وموميءیاد استخدام کچه لوړه شي، بهرنیو ورکړو کې توازن راشي، نو ددې موخو لپاره ځانګړی پولي پالیسي غوره کوي : د پیسو عرضه ، د بهرې دنرخ او جوړښت کې بدلون راوستل، د پانګوني هڅونه ، اعتبارات ( کریدیتونه ) او داسې نور ګامونه چې د پیسو په ذریعه پرمخ ځي په دې پالیسیو ( سیاستونو ) کې راځي ( البته یو شمېر نورې پالیسي ګانې هم شته لکه شنه پالیسي ( د کرنې سکتور ) په بهرنیو مرستو متکي پالیسي، دصنعت پالیسي او داسې نورې ) . نن ورځ پولي سیاست د اقتصاد یوه ځانګه ده او په همدې نوم ځانګړی دسپلین وجود لري.

## Modern نوي

د پخواني زاړه ، سنتي یا عنعنوي میتود او روش پرځای نوي میتود. د زوړ سیستم په پرتله نوی سیستم ، هر هغه څه چې اوسنی وي، د بدلون په بهیر کې عصري ځانګړتیا .دغه اصطلاح د پرمختیا دبهیرپه تشریح کی څوځو ځایه راغلی ده.

## Modernization نوی کول

د اقتصاد نوی کول، هغه چلند بېلګه چې تل دوام لري او د زړو طریقو پرځای نوی ځای پرځای کوي. له عنعنوي او پخواني حالت څخه نوی او پرمختللي حالت ته بدلون اونوې تکنالوژي څخه کار اخیستل. دغه پروسه د پرمختیا یوه اصلی اړتیاده چې دپرمختیا تیوری کی ورباندی تمرکز کیږی.

## Modern sector مدرن یا نوی سکتور

له ځمکې څخه په سیده توګه دساده وسایلو په واسطه د اړتیا پوره کول د انسان په اقتصاد کې یو لومړنی سکتور ( primary sector) و، لکه کرنه ، ځاروی روزنه ، د ودانیو لپاره د ډبرو کارول، د مالګې، ښورې او نورو استعمال، کب نیول او دې ته ورته فعالیتونه ، خو کله چې د خامو توکیو پروسس د ماشین په واسطه شروع شو لکه د وسپنې ویلې کول،

ښېښه او پلاستيک جوړول او په عصري ترانسپورتي وسايلويې چې مارکېټونو ته دهغو لېږدول پېل شول، نود پخواني لومړنی سکتور په پرتله دې ته دمدرن سکتور نوم ورکړل شو، يعني دا يو نسبي مفهوم دی چې ځينې وخت د توپير د ښودلو لپاره استعمالېږي.

## modernism مدرنيزم

د نويوالی غوښتونکی یا د تجدید خوښولو په معنا ده چی لومړی ځل د نولسمې پیړۍ په وروستيو کې د مسیحی دین په حوزه کی او د آزادۍ غوښتنې تر نوم لاندې راڅرګند او دشلمی پيړۍ په پیل کی په عمل کې وليدل شو. دا اصطلاح اوس پراخه مفاهيم لري چې نړيوال غورځنګونه، خوځښتونه او د نويوالی لوري ته ټول تمايلات رانغاړی. په تيره بيا په اقتصاد، توليد، د اجناسو او خدماتو په کيفيت اود مارکيت، تکنالوژی او نوروبرخو کې پلويان لری. د نولسمې پيړۍ په پای کې په اقتصادی علومو کې مدرنيزم رامنځته شو. په عمومی توګه دا په اقتصادکې هغه ډول بيان او چلند دی چې د نويوالی نښې ولری.

## Model الګو

هغه رسمي يا غير رسمي اډانه او بڼه چې د هغې په واسطه يو اقتصادي نظام له بل څخه، يو ډول چلند له بل څخه او آن يو شمېر فني بنسټونه ور باندې له نورو څخه جلا وپېژندل شي.د موډلونو شتوالی د نن ورځې د نظرياتو ، چلندونو، اقتصادي نظامونو او فنونود ډېر پرمختګ او پېچلتيا له امله ده. موډلونه پيژندل کيږي، زده کيږي او غوره کيږي. د ترويج وړ دی او ځينې وخت له يوه ټاکلي موډل څخه ډډه کيږي،خو يو بل غوره کړی. هغه موډلونه غوره او د تائيد وړ دي، چې له واقعي نړۍ سره برابر او موافق وي. په اقتصاد کې د يوه ځانګړي اقتصادي ماډل د ارائيه کولو او وړاندې کولو موخه داده ترڅو د هغه په واسطه يوه اقتصادي ښکارنده توضيح شي اويا هم يو شمېر اقتصادي پېښې ورباندې اټکل شي.

## Net official assistance خالصې بهرنۍ رسمې مرستې

مرسته کوونکي هېواد ته د ټولو مرسته کوونکو هېوادو د رسمي مرستو او پورونو مجموعه ده ، چې د پور په دوره کې بيرته ورکړې ورڅخه منفي کيږي، (بهرنۍ مرســــــتی او پورونه نن ورځ د پرمـــــــــــختيايي هېوادو يوه د بحث موضوع ده.)

## Need اړتيا

هغه څه چې يو وګړی ورته په ريښتيانۍ توګه ضرورت ولري، نه هغه ډېر څه چې دی يې غواړي. يعنې غوښتنې (wants) او اړتيا يو بل سره تو پير لري. همداسې هم د بازار له

پلوه یو وګړی لکه هغومره چې فکر کېږي، یو ځانګړی جنس نه پیري، یعنې د وګړو دتقاضا او اړتیا ترمنځ توپیر شته . په دې توګه د بازار له نظره د وګړو د تقاضا او اړتیا ترمنځ د مقدار له پلوه توپیر شته ، د وګړو اړتیا هماغه اجناس وي، چې د هغوی پیریدلو او لګښت ته رېښتیانې او ذاتي تمایل ولري.

## ملي کولNationalization

ددولت له خوا د هغو ملیکتونو او اقتصادي واحدونو ترلاسه کول چې پخوا د محلي حکومتونو، خصوصي موسساتو او ځانګو افرادو یا پردیو په لاس کې وو. د ملي کولو فکر د بشري دوو انګیزو یعنې: د ټولنیزو ګټو په پام کې نیولو او د شخصي ګټو ساتلو په پایله کې رامنځته شو. سره له دې چې د خصوصي مالکیت حق دتاریخ په اوږدو کې تل تر سترګو کیږې او د یوه طبیعي حق په توګه پیژندل شوی و، خو د وخت په تیریدو سره چې بشریت ډیر نوي پرمختګونه وکړل، نو له خپل همنوع سره د ژوند شرایطو بدلون وموند، د همزیستي او بشرپالنې احساس پیاوړی شو او د بشري ګډو ګټو رعایت کول اړین شول، له همدې امله د ګڼ شمیر ټولنو تشکیلات له یو شمیر قیودو او حدودو سره مخامخ شول چې وګړي د ټولنیزو ګټو درناوي ته رابولي او وایي چې باید عامه ګټې ډاډمنې شي او د شخصي ګټو په پرتله ټولنیزې او عامه منافع غوره وبلل شي. ملي کول داسې یو عمل دی چې عالي ملي او عمومي ګټو باندې پاملرنه کوي، دغه احساس د هیواد شتمنې د خصوصي او فردي مالیکت له واک څخه عامه یا عمومي مالکیت ته اړوي، ترڅو ډیر ژر له هغو څخه د ټولې ټولنې لپاره ګټه واخیستل شي. ممکن ملي کول د مصادره کولو په بڼه وي، یا هم ممکن په جبراني بڼه وي یا د پیسو ورکولو یا ددولتي پورونو د پانو په بڼه وی. سوسیالستي اقتصادي رژیمونو په مطلق ډول د ټولنیزې او اقتصادي برابري په موخه ټوله شتمنی، په تیره بیا طبیعی زیرمی د ټولنې مال ګرځولی و او داقتصادي فعالتیونو مدیریت یې ددولت واک ته سپارلی و او دولت یې د ټولنې نماینده کړی و، د وګړو مالي آزادی او خصوصي ملکیت یې اقتصادي فعالیتونو او تصدئ کې یو خاص برید پورې محدود کړی و. له سوسیالیستی اقتصاد پرته یو شمیر نورو ملی دولتونو هم عامه شتمنی ملی اعلان کړی وه، خوپه دې وروستیو کلونو کې چې د متمرکز اقتصاد پر ځای د بازار اقتصاد د پراخیدو په حال کې دي، په ډیرو هیوادونو کې د ملي کولو تصمیمونه لغو شوي دي او د هغو ځای خصوصي کولو نیولی دی. سره له دې چې ملي کول د شلمې پیړئ یوه ښکارنده او د پخوانیو مستعمره هیوادو د خپلواکه کیدو، آزادي او بیداري یوه ځانګړتیا وه، خو مخکې تر هغه هم ملي کول په بیلابیلو بڼو لیدل شوی و، چې عدالت پرځای شي. د بیلګې په توګه د پرتګالیانو، اسپانویانو او بیا د برتانویانو له خوا به د سمندري غلو بیړئ مصادره اوملی کیدلې. په معاصر وخت کې وروسته تر دوهمې نړیوال جګړې په انګلستان کې د پولادو د صنعت ملي کول، د فرانسې د ناسیونال بانک ملي کول ، د وسپنې د پټلۍ، د میترو او نفتود منابعوملي کول او په ۱۹۵۲م. کال کې د ایران د نفتو د صنعت ملي کول، او په مصر کې په ۱۹۵۶م. کال کې د سویز د کانال ملي کول، د ملي کولو نوي مثالونه دي چې ښه هرکلی یې وشو. زمونږ په هیواد کې په ۱۳۵۴ل. کې

د نوروملي اقداماتو ترڅنګ، د هیواد بانکونه چې یو څو یې دولتي او یو څو یې د خصوصي او دولتي سکتور له خوا په مشترک ډول جوړ شوی وو، ملي شول او د هغو اداره ددولت په لاس کې راغله دغیر دولتي اشخاصو ونډه هغوی ته د قسطونو به بڼه ور ادا شوه.

## National income ملي عاید

په یوه هېواد یا ملي اقتصاد کې د ټولو وګړو د عوایدو مجموعه ده ، چې د مزدونو، د دوی د تولید ، ګټو -وټو، د ځمکو د حاصلاتو او اجارې او نورو څخه ترلاسه شوي وي او د یوه کال په ترڅ کې په ملي محاسباتو کې ثبت شوي وي. دا دیوه هېواد اوسیدونکو لپاره د دوی د اقتصادي فعالیتونو له امله د اجناسو او خدماتو د پولي ارزش په واسطه یومعیار دی، د ملي عاید سنجولو کي د هېواد د اتباعو د ټول کار ځواک د اقتصادي فعالیتونو عواید او د پانګې ګټه سره جمع کېږي، یا هم د ټولي لګول شوې پانګې عاید جمع کېږي. دې ته ټول ملي محصول هم ویل کېدای شي.

## Multinational corporation څو ملتیزه شرکت/ شرکتونه

هغه شرکت ( یا لوی شرکتونه ) چې اصلي مرکز یې په یوه هېواد کې وي، خو د نورو فرعي شرکتونو په واسطه په نورو هېوادونو کې اقتصادي ( او په تېره بیا دنن ورځې پیچلي اقصتادي فعالیتونه ) ترسره کوي. نور فرعي شرکتونه یا په بشپړ ډول یا څه نا څخه د دوی په ملکیت کې وي. دغه په نورو هېوادو کې بېلابېل فرعي شرکتونه ( کمپنۍ ) له مرکزي یا اصلي لوی شرکت ( کمپنۍ ) سره سیده اړیکې لري او د همدې اصلي کمپنۍ پالیسي تطبیقوي. نن ورځ دغه ډول لویو څو ملیتی شرکتونو د نړۍ په بېلابېلو پرمختیایی اوپرمختللو(دواړه دوله)هېوادونو کې خپل فعالیت پراخه کړی دی او تقریباً په انحصاري ډول یې خپلې ګټې اعظمي حد ته رسولي دي. د دوی ګڼ شمېر داسې دي چې ایله درې برخې تولید خپل اصلي هېواد کې ، خو څلورمه برخه یې خامخا په بل هېواد کې ترسره کوي. نن ورځ د څو ملیتیزه کمپنیو په سلو کې ۲۵ نړیوال تولید د دوی له اصلي محل څخه بهر نورو هېوادو کې ترسره کېږي اوهلته یې په سیده توګه پانګونه کړې ده ، دغه ډول کمپنۍ او شرکتونه ممکن پرمختیایي هېوادو ته ګټور نه وي.

## Mortality مړینې

په دیمو ګرافي کې د نفوسو د حرکاتو له جملې څخه ده چې په یوه کال کې په هر وزرو تنو کې د مړینو شېمر ښکاره کوي. ارقام ښکاره کوي، چې د پرمختللو هېوادو په پرتله په پرمختیایي هېوادو کې په تېره بیا ځوان عمر کې مړینې ډېرې دي چې ګڼ شمېر لاملونه یې دي، لکه ناروغی ، فزیکي خطرونه ، ټولنیز تضادونه او شخړه ، د کار ناوړه شرایط ،

ارثي عوامل، طبيعي پېښې او نور.پرمختيايي هيوادو کې دمړينوشمير ډيردی. د دې د سنجش لپاره د مړنيو غير خالص معيار Crude death rate يا (CDR) په نظر کې نيول کيږي، چې فورمول يې دادی :

$$CDR = \frac{D}{P} \; .K$$

D– په يو کال کې مړينې

P - د همدې کال اوسط نفوس

K - ثابت ضريب (چې د لته 1000 دی)

## Pareto conditions د پاريتو شرايط

هغه يو شمېر مساعد شرايط او قواعد چې د هوسايني معيارترلاسه کړای شي. د رفاه يا هوسايني په اقتصاد کې پاريتو لګښت راترلاسه کړي، ددې وضعيت لپاره لاندې شرايط ښودل شوي دي:

۱) د دوه ډوله مصرفي اجناسو د تعويض نسبت بايد ټولو مستهلکينو ته يوشانته وي.

۲) که چېرې دوه توليدي عوامل يو د بل پر ځای راوستل کيږي، دهغو د بدلولو او تعويض انډول سره برابر وي.

۳) که چېرې دوه اجناس يو بل سره تعويض شي ، بايد د هغوی د لګښت د تعويض نهايي نسبت سره برابر شي.

## Per capita income سړي سر ګټه

د يوه کال په ترځ کې په منځنی توګه محاسبه شوي سړې سر ګټه ، کله چې د ټول هېواد ملي عايد، د دغه هېواد په نفوسو تقسيم شي، سړي سر ګټه ورځخه ترلاسه کيږي. د بېلګې په توګه :

$$PCI = \frac{y}{p} \text{ يا } \quad y = \frac{y}{r}$$

دلته :

Y سړي سر کلنی ګټه (PCI)

r ټول ملي عايد

P د ټول هېواد نفوس

## New imperialism نوی امپریالېزم

سوسیالېتسانو زوړ امپریالېزم دپانگوالو هغه استعمار او استثمار ته وایه چې سیمې یې لاندې کړې وي او کوچنی او وروسته پاتې هېوادونه یې ښکېل کړي وو، کله چې وروسته د دویمې نړیوالې جگړې څخه گڼ شمېر پخوانیو مستعمره هېوادونو خپلواکي ترلاسه کړه او نور نو د ملگرو ملتونو رامنځته کېدو ، د بشر د حقونو اعلانېدو او د خودارادیت د فکر پیاوړي کېدو او د شوروي اتحاد رامنځته کېدو یو نوي وضعیت ایجاد کړ، پخوانیو استعماري قوتونو نشو کولای په پخوانۍ بڼه کوچني او وروسته پاتې هېوادونه تر خپل ښکېلاک لاندې وساتي. د دې پرځای دښکیلاک پاملرنه د سیاست او اقتصاد له لارې اغېز کولو ته واوښته ، ورو ورو داسې لوی شرکتونه رامنځته شول چې د وروسته پاتې ، پخوانیو مستعمره او کوچنیو هېوادو د اقتصاد کنترول یې په واک کې واخیست، د پانگې صدور پیل او له دغو هېوادو څخه د خامو توکیو پیرودل په ډېره ،خو په کمه بیه ولیدل شول، لویو پانگوالو هېواد و د سوداگرۍ تړونونو، صنعتي تولید او سیاسي وسیلو له طریقه کوچني وروسته پاتې هېوادونه په خپل اقمارو بدل کړل. په دې کې څو ملیتیزه شرکتو ته ډېره گوته ونیول شوه او سوسیالېتسانو هغو ته په گوته نیولو د نوي امپریالېزم هویت تشریح کړ. څو ملیتیزه شرکتونو تکنالوژیکي انحصار کلک کړ او له پخوانیو مستعمره کوچنیو وروسته پاتې هېواد ویې پریمانه گټې ترلاسه کړې، ان د هغوی په کانونو یې خېټه واچوله او تر ډېرو پورې د دوی پر سیاسي پروسه هم په نا سیده توگه نافذ پاتې شول. د پانگوالو هېوادو له خوا په گرانه بیه د صنعتي اجناسو پلورنې پایله دا شوه چې په وروسته پاتې پخوانیو مستعمره هېوادو کې د دوی خپله کورنۍ پانگه جوړه نشي، بلکې د سود په لرلو سره یوه بهرنۍ پانگه د لته عمل وکړي. له دغې پانگې څخه ترلاسه کېدونکي گټه بیر ته د پانگې مورني هېواد ته ځي، په دې توگه دغه ډول اقتصادي ښکېلتیا چې په خپله بیا سیاسي اغېز هم ولري دنوي امپریالېزم په توگه معرفي شو.

## Newly industrialized country نوی صنعتي شوی هېواد

هغه هېواد چې پرمختیایي نه وي، خو د پرمختللو او صنعتي هېوادو کچې ته هم نه وی رسېدلی. په دې هلکه گالبریت وایي چې دغو هېوادو کې د پانگې خاوندان وار په وار د تکنالوژي خاوندان کیږي. په بله وینا: دا هغه هېوادونه دي، چې د صنعتي کېدو د ستراتېژۍ په پلي کولو پرمخ روان دي. دا هغه هېوادونه دي چې دپرمختیا بېلابېلې ستراتېژۍ گانې لري چې یوه یې صنعتي ستراتیژي ده. اوسني وخت کې یې مالیزیا یوه ښه بېلکه کېدای شي . مکسیکو او جنوبي کوریا په دې ډله کې هغه هېوادونه دي چې اوس د مصرفي اجناسو د تولید هغې کچې ته رسېدلي چې هغه صادروي.

## Optimum ترټولو غوره او مناسب

په اقتصادي بحثونو کې ډېره استعمالېدونکي اصطلاح ده. دا په لګښتونو ، عايد، رفاه اونورو حالاتو کې تر ټولو هغه مساعد او مناسب وضعيت او حد دی، چې له هغه څخه بل مناسب حد به نه وي. دغه حد د مستهلک ، بازار، سوداګرو ، توليدوونکو ، لنډه دا چې د ټولو لپاره مهم دی. د مستهلک رضايت ، مطلوبيت موندل او نور ټول په دې کې راتلای شي. دبېلګې په توګه د تعرفو ټاکنې مناسب حد ته **Optimum tariff** ويل کېدای شي، همداسې هم د لګښتونو مناسب حد او داسې نور.

## Throwaway society مصرفي ټولنه

هغه هېوادونه چې د د اخلي توليد په پرتله يې مصرفي واردات زيات وي . هغه هيواد چې توليد يې ډېر کم وي، خو مصارف يې له نورو هېوادو څخه وي. بې فکره لګښت .

## Third world درېيمه نړۍ

وروسته تر دوهمې نړيوالې جګړې څخه ګڼ شمېر پخوانيو مستعمره هېوادونو خپلواکي ترلاسه کړه، خو زياتره دوی د بېوزلې په حالت کې وو. ملګرو ملتونو دوی ته له روحي پلوه د وروسته پاتې يا بيوزلو هېوادونو نوم غوره ونه باله . ګڼ شمېر اقتصاد پوهانو هم وويل چې يو هېواد تل وروسته پاتې نه وي، نو ځکه غوره وبلل شوه، چې دغو هېواد وته پرمختيايي او د پر مختيا په حال کې هېوادونه وويل شي. له سياسي پلوه دا مهال دوه بلا کونه په نړۍ کې رامنځته شول چې يو يې امپرياليستې پانګوال هېوادونه او بل يې سوسياليستې هېوادونه وو چې د يوه کمپ په سر کې پخوانی شوروي اتحاد او د بل کمپ په سر کې د امريکې متحده ايالات وو. دغو دوو زبر ځواکونو غوښتل چې وروسته پاتې ( پرمختيايي ) هېوادونه خپل ملګري کړي، خو چين د دغو هېوادو لپاره ( درېيمه نړۍ ) اصطلاح و کاروله ، دغه اصطلاح ورو ورو دود شوه او د دوو کمپونو بالمقابل يې درېيمه نړۍ هغه هېوادو ته اطلاق کوله چې په يوه کمپ کې هم شامل نه وو، دا ټول همدا اوسنې پرمختيايي هېوادونه دي، چې افغانستان هم پکې شمېرل کېږي. د چين دغې نوموّنې سياسی اړخ درلود.

## Theory تيوری

نظريه يا تيوری د بشری پوهی او معلوماتو يوه مجموعه ده، چی په کره توګه ثابته شوي وي او دا راښيی چې په څه ډول سره خپل فعاليت او د فعاليت شرايط تحليل کړو. اقتصادی نظريه يا تيوری مونږ ته د فعاليت وضيعت توضيح او تفسير کوی. بايد هيره نه کړو چی نظريی يا تيوريګانی په مطلق ډول نه، بلکی بدلون منونکی دی، دا ځکه چی ممکن يو وخت يو شمير

عوامل د څېړونکی په واک کی نه وی، خو بل وخت به غوره عوامل د څېړونکو او پوهانو په واک او کنترول کی وی.همدارنګه کیدای شی متحولین بدلون وموی، ارزښتونه، ذوق او نور فکتورونه بدل شی، چې داټول په تیوری اغیزه لری.

## Taxation ماليه ټاکل

هغه اصول او لارې- چارې چې عایدلرونکی خلک ( حقيقي او حکمي ) به ټول له خپلو عوایدو په ټاکلې سلنې سره مالیات ورکوي. ماليه بندي يا مايه ګذاری.ماليه ټاکل ديوه پرمختيايي هیواد لپاره يو ضرورت دی او کیدای شی وخت په وخت ورباندې کتنه وشي.

## Taxable in come د ماليې تابع عايد

د يوه حکمي يا حقيقي شخص د عوايدو هغه برخه چې د يو هېواد د مالياتي قوانينو له مخې يې ماليه راټولېږي. هغه عوايد چې ماليه يې تحويلېږي.په يوه پرمحتيايی اقتصاد کې دا دپېژندنې اوڅېړنی وړ موضوع ده.

## Standard of living د ژوند سطح

د ټولنو د وګړو د ژوند عمومي کچه د (living standard) په نوم هم يادېږي، چې د يوې ټولنې د ټولو وګړو د ژوند ښودنه کوي. د بېلګې په توګه دغه معيار دسړی سر ملي ناخالص عايد اويا هم د ټول ملي مجموعې توليد يا هم په ټولنه کې د اجناسو او خدماتو د مصرف له مجموعې څخه ترلاسه کېږي او دغه هره يوه اندازه له يوې ټولنې تر بلې توپير کوي، يعنې نسبي بڼه لري. د ژوند د کچې د معلومولو په خاطر د مقداري مشخصاتو(انډکسونو) ترڅنګ يو شمېر غير مقداري مشخصې هم شته . د بېلګې په توګه هرو زرو تنو ته د شخصي موټرو، تيلفون ، تلويزيون، يخچال او نورو لُکسو اجناسو مهيا والی يې مقدار ي مشخصه ده ، خو د زده کړو درجه او د پوهې کچه يې يوه غير مقداري مشخصه ده . دې ته quality of life هم ويل کېږي، چې د يوه وګړي يا کورنۍ د عايد د اندازې له مخې يې سنجوو. د ژوند د کچې په سنجش کې د يوه وګړي يا کورنی د اجناسو او خدماتو د مصرف ترڅنګ د دوی د ( استراحت ) مصرف هم په پام کې نيول کېږي. پرمختللی ټولنې اوس هڅې کوي چې د ژوند کچه د ټولو کورنيو ترمنځ سره نژدې کړي. دولتونه دغې موخې ته د ټولنيزې پاليسي د يوې برخې په توګه ګوري. په دغې موخې کې داسې برخې هم راځي چې اندازه کول يې ستونزمن دی لکه د چاپيريال ساتنې معيار، د ملي امنيت درجه ، دغوره چاپيريال کيفيت، فردي مصؤنيت، اقتصادي، سياسي او ټولنيزه ازادي او داسې نور. دا ټول نه لمس کېدونکي ارزښتونه دي، خو په يوه پرمحتيايی هيواد کې د ژوند د کچې او کيفيت لپاره مهم دی.

## Stock موجو دی

بانکي او مالي چارو کې موجودی په یوه ټاکلي لنډ وخت کې په بانک کې پرته شمتني اروزل کېږي، یعنې د وخت یوه ټاکلي شیبه کې تعریف کېږي، خو د وخت له ذکر کولو پرته ښودل کېږي. د بېلګې په توګه د افغانستان بانک موجودی. په اداره او مدیریت کې ، په تیره بیا د ډیپو او تحویلخانې په کنترول کې موجودې د هغو اجناسو او د وسایلو اندازه ده چې د ځانګړي کارت له مخې تحویلخانې ته راغلي او ثبت شوی . دلته د موجودې موخه د کارت له مخې دراغلو اجناسو او د کارت له مخې د وتلیو اجناسو پرتله کول دي.

## Stability ثبات

په یوه اقتصاد او یا یوه ټولنه کې د اقتصادي حالت لکه بیو، تولید، عاید او نورو داسې منظم جریان چې د قناعت وړ وي او ناوړه نوسانات ونه لیدل شي، خو د اوږدې مودې اقتصادي ودې دوام ډاډمن وي، دپرمختیایي هېواد لپاره د ثبات ټینګښت یو لومړیتوب دی.

## Social welfare ټولنیزه هوساینه

هوساینه یو نسبي مفهوم دی. ټولنیزه هوساینه هغه معیار دی، چې د ټولنې په کچه په پام کې نیول کېږي، دغه معیار د ټولنې د وګړو د ژوند له کچې سره اړیکې لري. پرمختیایی هیوادونه دغه معیار ته درسیدو ستراتیژیکانی جوړوی او تطبیقوی یی.

## Social capital تولنیزه پانګه

د سازمانونو، موسساتو ، ارتباطاتو او اړیکو او ګڼ شمېر منل شویو تګلارو مجموعه چې د ټولنیزو تعاملاتو کیفیت او کچه ټاکي، دغه پانګه د ټولنې وګړي دیوې عالي جاذبې په شان سره متحد کوي او د ناسمه انګېرنو، منفي سیالیو ، د مثبت فکر د کمښت ، یو بل څخه کرکې ، دمثبتو او منفي ارزښتونو د تفکیک نه کولو او نورو منفي ټولنیزه ښکارنده په ځای مثبتې ټولنیزې ښکارندې لکه زغم ، نوښت ، ګډې هڅې، د غوره بدلون لپوالتیا ، د انرژي او ښکلا احساس مسئولیت منل او دې ته ورته لوړو سجایاوو په راوستلو کې اغېزه لري. د یوه پرمختیایي هېواد لپاره ډېره مهمه ده چې له لومړۍ ناوړه حالت څخه د وهم غوره حالت ته واوړي، په دې توګه ټولنیزه پانګه د یوه غیر اقتصادي شرط په توګه په پرمختیا مثبته اغېزه لري. د اقتصاد په بحث کې ټولنیزه پانګه د فزیکي پانګې ، بشري پانګې اوکلتوري پانګې په شان د اقتصاد د پرمختیا مهم فکتور دی، چې مفهوم یې یووالی او د ګروپونو او وګړو ترمنځ همکاري ( cooperation between individuals and groups) ده .

دغه ارزښتونه هغه وخت په ټولنه کې راټوکېږي، او وده کوي چې په انساني منابعو پانګونه شوي وي، روزل شوی بشري ځواک ښه سازماندهي شي او یو بل سره اړیکې ولري، یو پر

بل باور او ټوله ټولنه کې تساند، تساهل او همغږي او همکاري موجوده وي، د ښوونې او روزنې لوړ کیفیت او داخلاقي ارزښتونو شتون ، د ټولنیزې پانګې بنسټ جوړوي.دټولنیزی پانګی بحث د پرمختیا دترلاسه کولو یو اساسی ټکی جوړوی.

## ټوپ وهل Take off

روستو( Rowsto) د پرمختیا په پړاوونو کې دغه اصطلاح د پرمختیایی هېوادونو لپاره کارولې ده. هغه وایي چې یوپرمختیایي هېواد باید داجناسو او خدماتو تولید کې یو لازم حد ته ورسېږي. دغه هیواد بیا وروسته کولای شي د کیفیت او کمیت له پلوه یوه پرمختللې او اوچت پړاو ته ننوځي. اوسني پرمختللي هېوادونه ډېر کلونه مخکې دغه پړاو ته رسېدلي دي. دغه پړاو ته یې Take off نوم ورکړی دی او مثال یې د الوتکې اوچتېدل ښودلی چې سرعت یې ښه زیات شي نو وروسته تر هغه له ځمکې څخه پورته او د الوتنې پړاو ته رسیږی.

## د وام لرونکې پرمختیا Sustainable development

وروسته د دوهمې نړیوالې جګړې له پای ته رسېدلو څخه د هېوادونو دپرمختیا ګراف مخ په لوړه شوه. ګڼ شمېر هېوادو د صنعت په ډګر کې ښه پرمختګ وکړ، د اقصتاد کچه اوچته او مادي تولید د حجم او کیفیت له پلوه ښه شو. د خلکو د ژوند کچه کې ژور توپیر راغی، خو علمي څېړنو وښوده چې بشریت له چاپیریال سره سم چلند نه لري، په تېره بیا وروسته تر اتیایمې لسیزې د پرمختیا په هکله نظریات اصلاح شول. د ملګرو ملتونو د پرمختیا او چاپیریال ساتنې کمیسیون په دې ستونزه کار وکړ او په ۱۹۸۷ م. کې یې د دوام لرونکي پرمختیا اصطلاح وکاروله او ویې ویل چې بشریت باید منابع ، ځمکه، اوبه او کانونه داسې وکاروي چې د راتلونکو نسلونو لپاره هیڅ ګواښ پیښ نشي، یعنې دوام لرونکی پرمختیا هغه ده چې د راتلونکو نسلونو اړتیاوو ته هم ځواب ووایي. کرنیزې خاورې باید نه ډېرې تیزابي شي اونه کلکې،د تخمونو ارثي خواص ښه وساتل شي، دا وبوپاک ساتل باید یو لومړیتوب وي او سرچینې باید دبشریت لپاره د حاصل ورکولو وړتیا وساتي، په دې کې د اقتصادي پرمختیا ترڅنګ د چاپیریال پاینټ او د ټولنې د هوساینې دوام شامل دي. د سرچینو پاینټ د نوي مدیریت غوښتنه کوي ، چې له طبیعي، بشري او فزیکي پانګو څخه په عقلمندئ او هوښیاریئ کار واخلي، د نوي کېدونکو سرچینو کارول د پلان له مخې وشي اونه نوي کېدونکي سرچینې وساتل شي.

## sector planning سکتوری پلانونه

هغه ځانګړی پلان چی د یوه مشخص سکتور لپاره جوړ شوی. د یوه ځانګړی سکتور اهدافو او مقاصدو ته د رسیدلو برنامه.

## rural expansion کلیوالی پراختیا

په پرمختیایی هیوادو کی د دولتونو هغه پروګرامونه چی د کلیو د پراختیا لامل کیږی او د ښارونو او د کلیو تر منځ د ژوند د کچی توپیر او د خدماتو ښه والی بهتر کړی. هغه پروسه چی د هغی په ترځ کی د کلیوالو خلکو په اقتصادی، ټولنیز، کلتوری او روغتیایی برخو کی وار په وار ښه والی راځي.

## Mature economy پوخ اقتصاد

په نسبي توګه د اقتصاد هغه وضعیت چې انفلاسیون او وزګارتیا پکې نه وي،خو د ثبات لرونکی وي، دلومړنیو اړتیاوو د پوره کولو په پرتله یې په پانګونه کې ملي عاید ډېر لګول کېږي او د نفوسو د ودې په پرتله پکې د ملي تولید وده ګړندۍ او اوچته وي.

## M factors ام. فکتورونه

هغه نامتو پنځه فکتورونه دی چی په اقتصاد کی یی ځانګړی ارزښت موندلی: ماشین machine، هدف mission، د مدیریت طریقه management model، وسیله medium، او کار کوونکی man یا د کارکوونکی کار. دافغانستان په شان یوه پرمختیایی هیواد ته ضرور ده چې دغو فکتورنو باندې کار وکړی.

## Luxury goods تجملی اجناس

هغه اجناس چې بیه یې ډېره ګرانه ، خو اړتیا ورته ډېره کمه وي. هغه اجناس چې حیاتي اړتیا ورته نه وي، خو غیر واقعي موخو ته لګول کېږي. هر کله چې د یوه جنس لګښت د هغه د مطلوبیت په پرتله زیات وي لکس یاتجملي بلل کېږي.

## Living standard د ژوند ستېندرډ

دا چې د ټولنې وګړي تر کومه بریده پورې له یو شمېر ضروري توکو، خدمتونو او اسانتیاوو څخه برخمن دي او د هېواد نا خالص کورني تولید څخه ځومره هریووګړی ګټه پورته کولای شي، د ژوند کچه یا ستېندرډ بلل کېږي. دا یو نسبي مفهوم دی چې هره ټولنه کې توپیر لري.

## Literacy rate د سواد لرونکو انډول

په یوه ټولنه کې د سواد لرونکو وګړو سلنه ښکاره کوي، چې د ټولنو د پرمختیا، د هوساینې او ټولنیزو خدماتو د مهیا والي یو مهم معیار اوپه اقتصادي فعالیتونویو اغېزمن فکتور دی. نن ورځ په پرمختایي هېوادو کې په پرمختیایي پلانونو کې د سوادلرونکو وګړود انډول لوړول ،لمړنی اړتیا ښودل شوې ده.

## Knowledge economy پر پوهنه ګرځېدونکی اقتصاد

د هغه نوي اقتصاد ځانګړتیا ده چې د کار او استخدام د نویو فرصتونو د رامنځته کولو ، د تولید ښه کېدلو او په نهایت کې د مطلوبیت د رامنځته کولو لپاره پوهه محور وګرځول شي. ددغه ډول یوه خو ځنده اقتصاد لپاره علمي څېړنه ، تفکر، دارقامو د تحلیل توانایي او مهارت او د معلوماتو لرل اړین دي. ان دا چې د سنګاپور هېواد نالج اکونومې (knowledge economy)خپل شعار وګرځاوه او دغه کوچنی هېواد په لږ وخت کې دښه اقتصاد لرونکی شو . د علمي اثارو خپریدل، د اقتصادي دکشنریو شتون، علمي څېړنې ترسره کول د دې ډول اقتصاد د رامنځته کولو لپاره ضروري خبره ده . له ۱۹۶۰ م. کال څخه د پوهې پرمحور کلک شوي اقتصاد ته پاملرنه وشوه اود ګڼ شمېر هېوادونو اقتصاد ته یې پوره مثبت بدلون ورپه برخه کړ. له همدې لسیزې وروسته یو شمېر نوي نظریات خپاره شول، د اقتصادي موسساتو مدیریت ګړندی او ماهر شو چې صنعت یې هم له میکانیزه شکل څخه اتومات او بیا دیجیتل شکل ته راوست.دپوهې او آګاهی په دغه مرحله کې نه یواځې مولدین او تصدی دتولید برخه کی علمی تګلاری پلی کوی، بلکې مستهلکین هم د پوهې له مخې مصرف کوي.

## wellbeing سوکالي

د ژوند هغه اوچت معیار چې وګړي د هوساینې په حالت کې وي . مرفه اوسېدل.

## Urban economics ښاري اقتصاد

پرمختیایي هیوادونو کې ښاري کېدل urbanization یوه ګړندی پېښه ده. دغه هېوادونه د کلیوالي اقتصاد ترڅنګ باید ښاري اقتصاد او دښارونو وده په پام کې ولري. ښاري اقتصاد د اقتصاد دعلم یوه څانګه ده ، چې د ښاري سیمو اقتصادی ستونزې او اقتصادي فعالیتونه څیړي : لکه میشتځایونه ، دهر اقتصادي فعالیت سرچینې ، د کار ځایونو ټاکنه ، د ښارونو مولدیت ، دلویو او کوچنیو ښارونو پرمختیا او یو بل سره د هغو پرتله کول ، له کلیو څخه ښارونو ته مهاجرت، په ښارونو کې د کلیوالي محصولاتو بازار موندنه او د سیمه ییزو خامو توکو پروسس او نور. په دې توګه ښاري اقتصاد ، له سیمه ییز اقتصاد سره ډېر ورته والی لري.

## Unemployment وزګارتیا

د کارسن ته رسېدلي وګړي یا د کار هغه ځواک چې عملاً په کار نه وي بوخت. هغه بې شُغله وګړي چې د کار په لټه کې وي. په بازار کې د شُغلي بوختاوولە مزدونو بې برخې بشري نیرو(بیکاران). ( بیکاري په خپله بېلابېل ډولونه لري). د کار نړیوال سازمان (ILO)وزګارتیا داسې تعریف کړې ده : هغه اشخاص چې د کار عمر یې بشپړ کړي، د کار لپاره چمتو وي، د کار کولو توان او خواهش لري او د کار په لټه کې دي، خو موجود وخت کې دنده ونه لري.دغه حالت دپرمختیایی هیوادو یوه ستونزه ده، خو نه حل کیدونکی نده،بلکې دغه ډله هیوادونه د استخدام ډیرښه فرصتونه ایجادولای شی.

## Unemployment rate د بیکاری نسبت

په ټولنه کې د وزګارو خلکو د اندازې د ټاکلو لپاره د سلنې له مخې یو شاخص دی، د وزګارو وګړو شمېرد سیمې ، ولایت یا هېواد په ټول کار ځواک ( بشری نیرو ) باندې تقسیم او په سلو کې ضر ب کېږي، په دې توګه :

$$\text{دبېکاری‌نسبت} = \frac{\text{دبېکارانوشمېر}}{\text{دکارځواک}} = 100$$

د کار ځواک څخه موخه labor force یعنې هغه وګړي دي، چې عمرونه یې د کارسن ( عموماً اتلس کلنی ) ته رسېدلي او د تقاعد له سن څخه ټیټ وي، په کار بوخت بشري ځواک داسې سنجولای شو:

$$labor\ froce\ porticiptism\ late\ \frac{labor\ force}{working\ age\ popultion}\ .100$$

## Utility مطلوبیت

هغه رضایت او د اړتیا پوره کېدل، چې د اجناسو په استعمال سره ترلاسه کېږي، آن دا چې نن ورځ خدمات هم د مطلوبیت لرونکي بلل کېږي. په دې توګه مطلوبیت له هوسایني سره برابر ګڼل کېدای شي، ځکه چې اړتیا ورباندې پوره کېږي. البته د یوه جنس مطلوبیت د یوه بل په پرتله توپیر کوي. هغه رضایت چې یو مستهلک یې د (X) جنس په مصرفولو ترلاسه کوي، ممکن د( y) جنس په مصروفولو یا پیریدلو یې ترلاسه نه کړي. په دې دلیل سره ( x )جنس نظر(y) ته د ده لپاره ډېر مطلوبیت لرونکی او غوره دی. په دې توګه مستهلکین یا مشتریان په بازار کې اجناس ( آن مشابه اجناس ) د مطلوبیت په تحلیل ( utility analysis) سره غوره کوي او خپل تصمیم نیسي، چې خپل مطلوبیت اعظمي حد ته ورسوي. د مطلوبیت لپاره د (util) واحد جوړ شوی چې د مطلوبیت اندازه ورباندې ښکاره کوي.

## Under Developed countries نه پرمختللي هېوادونه

دغه اصطلاح پخوا وروسته پاتې او او سنیو پرمختیایي هېوادو ته استعمالېده، خو له رواني پلوه ښه نه برېښېده. له دې پرته پرمختیایي هېوادونو دغه اصطلاح ځانته مناسبه نه بلله ، په دې کې د پخواني استعمار او لویدیځ تفکر نښې وې، نو ځکه اوس د هغې پرځای پرمختیایي هېوادونه developing countries استعمالېږي، خو په غربي ادبیاتو کې اوس دې توپیرونو ته پام نه کېږي، زیاتره وخت ډېر لږ پرمختللي هېوادونو ته د (LDCs) اصطلاح هم کارول کېږي.

## Under employment نا مناسب استخدام

هغه حالت چې یو وګړی ، کارګر یا مزد اخیستونکی په داسې یو کار کې بوخت وي، چې د هغه په پایله کې ترلاسه کېدونکي مزد او معاش کاملاً ورته کافي نه وي او هغه مجبور وي چې له دې کار سره یو ځای یو بل کارهم وکړي. نن ورځ د پرمختیایی هیوادو داستخدام ، کار او بېکاري په بحثونو کې دا یوه د پام وړ خبره ده . دغه ستونزه پر مختیایي هېوادو کې د ټیټ استخدام ، لږ مزد او پټې بېکارۍ په شان ده . د دې لامل له یوې خوا خوار اقتصاد اوله بلې خوا په خپله د کارګر ټیټ مهار ت د ی، هغه کا رکوونکي چې د لوړ مهارت غوښتونکي بازار کې د کار چانس نه لري، د اړتیا له مخې د ټیټ مهارت کار ته غاړه ږدي. په دې توګه د کار دوه ډوله بازارونه موجود وي، نو ځکه پرمختیایی هیوادو کې استخدام هم دوه ګونې بڼه لري.

## Welfare economics د هوساینې اقتصاد

هوساینه دپرمختیایی اقتصادمهمه اصطلاح ده. دایو نسبي مفهوم دی، چې په مقداري توګه نشي ارائه کېدای، مثلاً موږ وایو، A هېواد د B په پرتله د هوسایني ښه معیارونه لري، په بله وینا د هوسایني د اقتصاد په برخه کې موږ فقط یو شمېر ارزشي قضاوتونه لرو ، چې دا قضاوتونه کېدای شي یو شمېر اقتصاد پوهانو ته د منلو وړ وي او یو شمېر نورو ته د منلو وړ نه وي. په دې هکله د پاریتو نظریاتي مکتب د مراجعې وړ دی. دغه مکتب د یوه وګړي وضعیت له بل سره پرتله کوي، یا هم د یو شمېر ټولنیزو معیارونو ګټګوري په نظر کې نیسي او بیا یې مطلوبیت او د رضایت درجه ښکاره کوي.

## Welfare هوساینه

د انکشافي اهدافوله جملې څخه یو هدف دی، چې معمولاً ورڅخه موخه ټولنیزه رفاه (Social welfare) وي. دا یو نسبي مهفوم دی. دبېلګې په توګه یوه ټولنه سږ کال د تېرو لسو کالو په پرتله د هوسایني ( سوکالي ) لوړ برید ته رسېدلي، یا ( الف ) هېواد د ( ب ) په پرتله د ټولنیزې رفاه له مخې وړاندې دی. په حقیقت کې د ټولنې وګړو ته د قناعت وړ کافي اجناسو او خدماتو مهیا والی چې دوی له مادي او معنوي پلوه نسبتاً رضایت ولري.

## Wealth شمتنې

شمتني یا ثروت هر هغه څه ته ویل کېږي، چې د بازار د ارزښت لرونکي وي، یعنې هغه په پیسو یا یوه جنس سره تبادله کړای شو لکه فزیکي اجناس ( کور ،موټر، غالی، تلویزیون ...)، مالي شته ( پیسی ،سعر... ) او دوګړیو مهارتونه چې وکولای شي ګټې رامنځته کړي. همدغه شتمنی په بازار کې په پیسو تبادله کېدای شي. شمتني دوه ډوله ده : د لید وړ او نه لیدونکي.

فزیکي شتمني، وسایل، ګاڼه، کور او نور، چې د لید وړ ده، خو فردي استعداد او مهارت نامرییِ یانه لیدونکي شتمني ده. دې ته انساني شتمني هم وایي. دغه دواړه ډولونه کولای شي چې ګټه یا عاید راوړي. په دې توګه شتمني یوه ثابته بڼه لرونکې، خوګټه یا عاید(benefid, income) جاري بڼه لري، حال دا چې پانګه (capital)هغه مالي شمتني ده چې د بیا ګټې کولو لپاره په کار اچول کېږي، نو ځکه شتمن او پانګوال یو بل سره توپیر لري . پانګوال شتمن دی، خو هر شتمن پانګوال نه دی . په اقتصادي پرمختیا کې تر شتمن د پانګوال دریځ اوچت او مهم دی.

## Weak ضعیف

ناتوان اقتصاد ، ضعیف اقتصادي حالت . د اقتصاد بدوالی.

## نړیوال بانک(WB)

ددغه بانک نوم او فعالیتونه دپرمختیایی هیوادو لپاره په زړه پوری دی. دنړیوال بانک (World Bank)جوړیدل د برټن ووډز دنامتو کنفرانس یوه پایله وه، یعنی هغه وخت چې ۲۸ هیوادونو دنوموړي بانک په مادو باندي موافقه وکړه. لومړی ځل په ۱۹۴۴م کال کې د جولاي په میاشت کې د(برتن ووډز) په کنفرانس کې طرح او په ۱۹۴۵م کال کې دډیسمبر په ۲۷ مه نیټه تأسیس شوي دي. تراوسه ډیروپرمختیایی هیوادو ددغه بانک له پانګی اومرستی څخه دخپلو انکشافی پروژو او پرمختیایی اهدافو دتحقق په موخه ګټه اخیستی ده، افغانستان سره هم دغه بانک دپام وړ مرستی کړی دی.پرمختیایی پروژوسرهمالی کمکونه د نړیوال بانک ګروپ له لارې ترسره کیږی. دنړیوال بانک ګروپ (World bank group) له څو مالي مؤسسو څخه، چې تقریباً ورته موخې لري، جوړ شوي دي.دغه مؤسسې دادي: دنړیوالی پرمختیااتحادیه ، دبیارغاوني او پراختیا بانک، میګا (MIGA ) او نړیواله مالي مؤسسه.

## د لیکوال لنډه پیژندنه

پوهاند محمدبشیردودیال دعلي محمدخان حسین خېل زوی،په ۱۳٤۰ ش. کال دکابل په ولایت کې نړۍ ته سترکې پرانیستي دي. دښوونځی دوره یې دحبیبیې په عالي لېسه کې پای ته رسولي او لوړې زده کړې یې دماستړۍ ( MS c. Hons)په سویه بشپړې کړې دي،له دی پورته یی د( Micro Economics) یوه دوره د آلمان هیواد د رور-بوخم ( RUB)په پوهنتون کی په بریالیتوب سره بشپړه کړی ده. دهیواد دننه اوبهریی ګڼ شمیرکنفرانسونو،ورکشاپونواوسیمینارونوکی ګډون کړی دی اومقالی یی اورولی دی. دافغانستان دلیکوالواوژورنالستانوداتحادیې غړی، کابل پوهنتون، دننګرهارپوهنتون کې دکرنې،دوترنرۍ علومو،عامه اداری اوپالیسی، ژورنالیزم اواقتصادپوهنځیوکې یې تدریس کړی دی. دافغانستان دعلوموداکاډمۍعلمي غړی اوداریاناداېرةالمعارف انستیتیوت مشر،دوترنرۍعلومودپوهنځي مرستیال، پهGTZ/PALکې ترینر، داداري اصلاحاتوپه کمېسون کې داداري دکورس استاد،په کابل پوهنتون، ننګرهار پوهتون او خراسان پوهنتون کې د ماسترۍ او لسانس دورې استاد پاتې شوی دی. په پیښورکې دافغانانودپوهنتون استاد، دننګرهارپوهنتون کې دتقرراو انفکاک دکمېټې غړی، دعلمي ترفیعاتودکمېټې غړی،دکانکوردکمېټې غړی،دپوهنتون داعتبارموندنی دتضمین اوځان ارزونی دکیمټی غړی، د پوهنتون دنصاب د کمیټې مسئول، د لوړو زده کړو د وزارت علمی تحقیق او طبیعی منابعو دڅېړنو اومطالعاتو د امنا عضو، د دنشراتودبورداودیوشمېرمجلواواخبارونو (پوهه،انګازه،ارزښت، آرین، ننداره اوافغان یووالي) دلیکنې دهئیت دغړي په توګه یې مسئولیتونه ادا کړي دي. د تدریس ترڅنګ، څه موده دننګرهارپوهنتون دنشراتو مدیر،بیاداقتصاددپوهنځي تدریسي مدیر،ورپسی د اقتصاد د پوهنځی مرستیال اودرې دورې دپوهنتون دعلمي شوراغړی ؤ.څه موده دپوهه علمی مجلې مسئول مدیر و، د دې ترڅنګ په ۱۳۹۲-۹۳کلونو کې د معارف دنصاب نوي کولو کې بوخت و. دوه کاله یې داریاناخصوصي پوهنتون دعلمي مرستیال په توګه، درې کاله دخراسان پوهنتون استاداودماسترۍ دبوردآمراویوکال یې دجامعه العلوم الاسلامیه دمشاورپه توګه دنده درلوده. دننګرهارپوهنتون دعامه اداری اوپالیسی دپوهنځي رییس اوددغه پوهنځي استاد او همدا رنګه په کابل پوهنتون کی دافغانستان دمعلوماتودمرکزدادیتوریل بورد غړی او دافغانستان دپوهانو او متخصصانو د ټولنی Assembly of Scientists & Experts of ) (Afghanistanد رهبری دشورا (RASEA ) او موسسینوغړی دی. اوس د افغانستان د لوی قاموس علمی همکاردی. دخپل خدمت په دوره کې یې داسدد ۲۸ مې په مناسبت داستقلال ستاینلیک،په ۱۳۷٤ش. کال کې یې دغوره خدمت ستاینلیک اوپه ۱۳۸۸ش. کال کې یې دریېمه درجه ستاینلیک ترلاسه کړی دی. دری ځله یې د کال ادبي جایزې ترلاسه کړی اوپینځه ځله دادبي کانکورونودجایزووړونکی شوی دی. په۱۳۹۳ل. کال کې یې دلوړو زده کړود وزارت ستاینلیک اوپه۱۳۹۴کال کی یی دمشرانودجرګی او په ۱۳۹۸ل. کې یې د ولسي جرګې له خوادغوره خدمت ستاینلیک ترلاسه کړی دی. په ۱۳۸۹ کال کې یې دادبي کانکورلومړۍجایزه ترلاسه کړې ده.

یوشمیر بهرنیو هیوادولکه جرمني،هندوستان،ایران،اتریش،پاکستان، ترکیي،هسپانیا او هنګری ته یي رسمي اوعلمي سفرونه کړي دي.دیوشمېرچاپ اوخپروشویواثارونومونه یي دا دي:

1. Constraint in Adoption of Technologyدماستری‌تیزس.
2. اقتصادي پلان جوړونه دپوهنیارعلمي رتبې ته ژباړل شوی اثر.
3. دکرنیزې مناسبې تکنالوژۍستونزې اودحللارې ( دپوهنمل علمي رتبې لپاره څېړنیزاثر ).
4. دکرنې اوصنعت متوازنه وده ( دپوهندوی عملي رتبې ته څېړنیزاثر ).
5. تانده غوټۍ (لنډې کیسې) دافغانستان دلیکوالوټولنه ١٣٥٦- کابل ـ دولتي مطبعه.
6. دکرنې پلان جوړونه( علمي- مسلکي ژباړه ) دکرنې وزارت،دکرنیزتبلیغ،ترویج اوزده کړوریاست خپرونه١٣٦٦- کال- کابل.
7. ؛په کرنه کې دطبیعي منابعوپلان جوړونه ( دغه کوچنۍرساله دمنې دکښت دکمپاین په مناسبت په ١٣٦٨- کال کې دکرنې وزارت دترویج دریاست له خواخپره شوې وه).
8. شاهین ( دلنډوکیسومجموعه )- اردومطبعه- کابل ١٣٦٧ ل.هـ.
9. دمینې ډالۍ (ناول) دلیکوالوټولنه- کابل ١٣٦٧،دولتي مطبعه.
10. دشواریهای بازګشت اواره ګان افغان،مرکزمطالعات افغانستان (ASC) پېښور ١٣٧٧ کال- تاپ پرنټز- پاکستان.
11. دافغانستان دطبیعي سرچینوپېژندنه- دافغانستان دکلتوري ودې ټولنه- جرمني- کولن ١٣٧٩ ( ٢٠٠٠ م.)
12. حیات وحش افغانستان- چاپ مرکزمنابع نشراتی واطلاعاتی اکبر (ARIC) پېښور- پاکستان. ١٣٨١ش. کال.
13. داقتصادي پرمختیاتیوري اوپلان جوړونه- دختیځ بیارغاونه(KOR )دخپرونوڅانګه.

14. صنایع درافغانستان ونقش انهادراقتصادملی،چاپ کتابخانه های اریک- نمبرمسلسل۱۳۸۲،۱۲٦ ش. کال،پېښور-پاکستان.

15. دیموګرافي اودنفوسوتحلیل( دپوهنتون درسي کتاب )- ( لومړی چاپ۱۳۸۲ ش. اوبیاپه دوهم ځل۱۳۹۲کال.)،دانش خپرندویه ټولنه

16. نباتات طبی-چاپ دفتراکبر- انتشارات الازهر- پېښور- پاکستان (۲۰۰٤) ۱۳۸٤ش. کال.( دغه کتاب دوه ځله خپورشو)

17. احصائیه (لومړی،دویم، ... لسم چاپ) دپوهنتونونولپاره درسی کتاب. خپروونکې ساپي دپښتوڅېړنواوپراختیامرکز،پېښور (۸۱، ۸٤، ، ۱۳۹۸۱۳۸۷ش.) اوڅلورځله نورګودرکتاب خپرولوټولنی اویوځل دلوړوزده کړوزارت د( DAAD) پروګرام په مالی مرسته خپورکړی دی.

18. اصل خلجی های افغانی (ژباړه) ۱۳۸۹ش. دمیوندکتاب چاپولومؤسسه.

19. پښتوریاضي ۱۳۸۸ ش. دسبانشراتیمؤسسه.

20. دتصوف حقیقت، ۱۳۸۹ ش. (ژباړه)،دمیوندخپرندویه ټولنه.

21. اداره،ګودرخپرندویهټولنه ۱۳۸۸ش. (په پښتواودري ژبو شل ځله چاپ شوی دی).

22. غزنوي سلطان محمود؛ژونداوپېښلیک.(ژباړه)دمیوندخپروندیې ټولنې چاپ.

23. دعلمي تجربوطرح اوډیزاین،ګودرخپرندویه ټولنه، ۱۳۸٤ش.،درسي کتاب.

24. په پینځه ټوکوکې دیوشمېرسبوتولیداوروزنه ( له پوهنمل سیداجان عبدیاني اوپوهنیارمحمداسماعیل سعادت سره په ګډه ).۱۳۸۵ش. کال. اودیوشمیرسبومارکیټنګ

25. دننګرهارولایت اوجلال ابادښارپېژندنه ( له اسدالله حصارشاهیوال اوسیدپاچاباورسره په ګډه ).

26. مرکه ( دلنډوکیسوټولګه )، ( امین افغانپور،ډاکټراسدالله حبیب اوببرک ارغندسره په ګډه )، کمیته دولتی طبع ونشر، دولتی مطبعه: کابل - افغانستان.

27. په افغانستان کې دګانوجوړلوهنر،۱۳۹۱(ژباړه).

28. سوداګري دټولولپاره (ژباړه، ۱۳۸۸ش. کال- کابل)

29. دخریداری‌هیات ( دطنزونومجموعه ۱۳۸٦ ش.کال،سبا(میوند)خپرندویه ټولنه.

30. پښتوریاضي(ژباړه،۱۳۸٦ ش.کال- پېښور)،داکتاب دوه ځله خپورشوی دی.

31. دطبیعي منابعواقتصاد( دپوهنتونولپاره درسي کتاب- لومړی چاپ۱۳۸٤ ش. د لوړوزده کړو وزارت، ،دوېم چاپ ۱۳۸٦ ش. کال. درېیم ځل ۱۳۸۹ ش.کال).

32. نگهداری وپرورش بز در افغانستان (ژباړه).۱۳۹۰

33. په افغانستان کې هنراوښکلي هنرونه.(ژباړه)

34. داقتصادي پروژوتحلیل اومدیریت. داقتصادپوهنځی لپاره درسی کتاب (لومړی چاپ۱۳۹۰، دوهم چاپ۱۳۹۴ل. دربیم چاپ ۱۳۹۶)

35. سرگرمی بااعدادورشد استعداد های شما(۱۳۸۹ل.)مرکز خدمات کمپیوتری شیبر، د(توانا/ABLE ) دکتابونو دلړی۱۸۴ گنه.

36. دمدیریت علم (ژباړه).داقتصادپوهنځی لپاره درسی کتاب (لومړی چاپ۱۳۹۲،دوهم چاپ۱۳۹۳ل.)، گودر خپرندویه ټولنه

37. اسانه محاسبه.(دا کتاب دوه ځله گودرخپرندویي ټولنی نشرکړی دی).۱۳۸۹

38. ولایتي شوراگانې دملی یووالی په لوری دریځې (ژباړه).۱۳۸۹ل.کابل-افغانستان.

39. حکایتونه اوپه زړه پوری مطالب (ژباړه)،

۴۰.په افغانستان کې د گانو جوړولو هنر،د ABLE دپروگرام چاپ، ۱۳۹۱.

۴۱. دژویواوڅارویوپه زړه پوری نړی. گودر خپرندویه ټولنه،۱۳۹۱.

۴۲. کوچنی اوتطبیقی اقتصاد(ژباړه) داقتصادپوهنځی لپاره درسی کتاب،داقتصاددپوهنځی استاد،پوهنمل زبیرنورمل سره په گډه

۴۳. عامه اقتصاد( ژباړه)،درسی کتاب،داقتصادپوهنځی استادانوپوهیالی عبدالله عادل اوپوهیالی اخترغنی سره په ګډه.

۴۴. افغانستان دتاریخ په تګلوری کی( دادافغانستان دسترمورخ میرغلام محمدغباردافغانستان درمسیرتاریخ،نامتوکتاب ژباړه ده،لومړی چاپ۱۳۹۳.

۴۵. معرفی تکنالوژی محلی افغانستان،چاپ مرکزمعلومات افغانستان درپوهنتون کابل( چاپ اول۱۳۹۲، چاپ دوم ۱۳۹۷).

۴۶.دانسانانو اوژویو په ژوند کې د ونوـبوټو اهمیت، ژباړه(۱۳۹۰) (ACKU ) پرله پسې نومره۲۳۳، کابل- افغانستان.

۴۷. نقش و اهمیت صرفه جویی در مصارف، ۱۳۹۱(۲۰۱۲ل.)په کابل پوهنتون کی دافغانستان د معلوماتو مرکز د(USAID ) په مالی مرسته چاپ کړی دی.

۴۸.په افغانستان کې اقتصادی، اجتماعی پلانونه او د هغو په طرح، جوړولو او تطبیق کې دجمهور رېیس محمد داوود خان ونډه، مومند کتاب خپرندویه تولنه.۱۳۹۱ل. کال.

۴۹.دافغانستان یوه لنډه دیارلس کلنه تجربه: بهرنۍ مرستې، ملی پرمختیایی ستراتیژی اود بازار نظام ته کتنه. ګودر خپرندویه ټولنه، ۱۳۹۲.

۵۰.په افغانستان کې دبنوالی د ترویج او پراختیا لارې-چارې(ژباړه)۱۳۹۲.کابل پوهنتون کې دافغانستان د معلوماتومرکز، موج طباعتی او تبلیغاتی شرکت چاپ.

۵۱.په کور او ګلتون کې د ګلانوروزنه(ژباړه). ۱۳۹۵. دایبل نشرات، کابل- افغانستان

۵۲, دسازمانی اړیکومدیریت (درسی کتاب) ۱۳۹۴ل. یار خپرندویه ټولنه.

۵۳.دسازمانی شخړو مدیریت(درسی کتاب)۱۳۹۴ل. یار خپرندویه تولنه، جلال اباد.

۵٤.دمالی خطرونومدیریت ( درسی کتاب)۱۳۹۵، ختیځ کتاب خپرولو ټولنه.

۵۵.په افغانستان کې د غالی اوبدلو صنعت (۱۳۹۵)، په کابل پوهنتون کی د معلوماتو د مرکز چاپ.

۵٦.د دیموکراسی او ټولټاکنو مفهومونه ۱۳۹۶(ژباړه) ، خپروونکی : ACKU

۵۷.منطقوی اقتصاد۱۳۹۶ل.(درسی کتاب)، کتاب خپرندویه ټولنه.

۵۸.په افغانستان کې میناتور ( ژباړه) دځواکمن/توانا د پروګرام چاپ (۱۳۹۶). کابل- افغانستان

۵۹.داقتصاد تشریحی قاموس (په ۵۲۰مخونو کې د ۱۷۵۰ اصطلاحاتو تشریح) ۱۳۹۶، مومند خپرندویه ټولنه.

۶۰.کرنیز تمویل ( د افغانستان د کرنې د پوهنځیو لپاره درسی کتاب)، له ښاغلی پوهنیار ضیاالرحمن راسخ سره په ګډه، د مومند خپرندویه ټولنه، ۱۳۹۶ل. کال.

۶۲.د اقتصادی پرمختیا تیوری، لومړی چاپ ۱۳۹۴،دوهم چاپ ۱۳۹۶ل. کال.

۶۳.دبشری سرچینومدیریت(ژباړه) ، د عامه اداري او پالیسی د پوهنخي لپاره درسی کتاب.

۶۴.د کرنې تشریحی قاموس، ۱۳۹۸(په ۴۰۰مخونو کې د ۱۵۰۰ اصطلاحاتو تشریح).

۶۵.د درملو اداره او تنظیم (ژباړه). دپوهاند غضنفر د روغتیایی انستیتوت لپاره درسی کتاب، ۱۳۹۷

۶۶.مور. بیرته خپل کلي ته ځو. ۱۳۹۷ ( دغه رومان په کابل پوهنتون کې د افغانستان د معلوماتو مرکز د ځوانانو د ادبیاتو په مناسبت په دري پارسی هم ژباړلی او چاپ کړی دی)،

۶۷.د طبیعی منابعو مدیریت او د چاپیرال ساتنې پالیسی

۶۸.عامه اداره (دوه ټوکه۱۳۹۸) دعامه اداري او پالیسی پوهنخی لپاره درسی کتاب (ژباړه)

۶۹.د مدیریت اصول او بنسټونه (۱۳۹۷)(ژباړه).

۷۰.دملکی خدمتونو د بستونو لپاره د کانکور لارښود(له استاد میر احمد مهمانی سره په ګډه)۱۳۹۸.

۷۱.دپروژې مدیریت په عمل کې ( له انګلیسی څخه ژباړه) درسی کتاب ۱۳۹۹ل. کال.دلوړو زده کړو وزارت- Germanic د درسی کتابونو د تالیف اوخپرولو دفتر

۷۲.صنعتی اقتصاد ،داقتصاد دپوهنځیو درسی کتاب (د لوړو زده کړو وزارت د Germanic درسی کتباونو د برنامې چاپ)

چاپ ته چمتو آثار:

- اقتصادی سنجشونه (د اقتصادی ریاضی په اساساتوسره )
- ازینجا تا شمالی کار دارم (مجموعه ی داستانهای کوتاه)
- ورک شو پل (دلنډو کیسو ټولګه)
- د اداري او مدیریت قاموس

همدارنګه پوهاندمحمدبشیردودیال دیوشمېرعلمي اثارولپاره تقریظونه لیکلي اودافغانستان دعلومواکاډمی ،داقتصادپوهنځي، دعامه اداري او پالیسي اودکرنې پوهنځیو د یوشمېراستادانولارښوداستاداوددفاع وزارت دستردرستیزدقوماندانیت اوقرارګاه دکورس دعالیرتبه افسرانولارښوداستادپاتې شوی دی، له پورتنیو کتابونو پرته یې تراوسه دایرةالمعارف ته۶۲ ارتیکلونه،یوشمیرآنلاین سایټونو، رادیو او مجلوته لیکنی اودهېوادپه نورومطبوعاتوکې یې په پښتو، دري او انګلیسی ژبو ۴۰۰شاوخوا مقالې چاپ اوخپرې شوې دي.

## Publishing Textbooks

Honorable lecturers and dear students!

The lack of quality textbooks in the universities of Afghanistan is a serious issue, which is repeatedly challenging students and teachers alike. To tackle this issue, we have initiated the process of providing textbooks to the students of medicine. For this reason, we have published 342 different textbooks of Medicine, Engineering, Science, Economics, Journalism and Agriculture from Nangarhar, Khost, Kandahar, Herat, Balkh, Al-Beroni, Kabul, Kabul Polytechnic and Kabul Medical universities. The book you are holding in your hands is a sample of a printed textbook. It should be mentioned that all these books have been distributed among all Afghan universities and many other institutions and organizations for free. Out of the total, 96 medical textbooks funded by German Academic Exchange Service, 210 medical and non-medical textbooks funded by Kinderhilfe-Afghanistan, 7 textbooks funded by German-Afghan University Society, 2 textbooks funded by Consulate General of the Federal Republic of Germany, Mazar-e Sharif, 4 textbooks funded by Afghanistan-Schulen, 2 textbooks funded by SlovakAid, and 8 textbooks funded by Konrad Adenauer Stiftung. All the published textbooks can be downloaded from www.ecampus-afghanistan.org & www.kitabona.com.

The Afghan National Higher Education Strategy (2010-2014) states:

*"Funds will be made available to encourage the writing and publication of textbooks in Dari and Pashto. Especially in priority areas, to improve the quality of teaching and learning and give students access to state–of–the–art information. In the meantime, translation of English language textbooks and journals into Dari and Pashto is a major challenge for curriculum reform. Without this facility it would not be possible for university students and faculty to access modern developments as knowledge in all disciplines accumulates at a rapid and exponential pace, in particular this is a huge obstacle for establishing a research culture. The Ministry of Higher Education together with the universities will examine strategies to overcome this deficit ".*

We would like to continue this project and to end the method of manual notes and papers. Based on the request of higher education institutions, there is the need to publish about 100 different textbooks each year.

**I would like to ask all the lecturers to write new textbooks, translate or revise their lecture notes or written books and share them with us to be published. We will ensure quality composition, printing and distribution to Afghan universities free of charge. I would like the students to encourage and assist their lecturers in this regard. We welcome any recommendations and suggestions for improvement.**

It is worth mentioning that the authors and publishers tried to prepare the books according to the international standards, but if there is any problem in the book, we kindly request the readers to send their comments to us or the authors in order to be corrected for future revised editions.

We are very thankful to Kinderhilfe-Afghanistan (German Aid for Afghan Children) and its director Dr. Eroes, who has provided fund for this book. We would also like to mention that he has provided funds for 210 medical and non-medical textbooks so far.

I am especially grateful to GIZ (German Society for International Cooperation) and CIM (Centre for International Migration & Development) for providing working opportunities for me from 2010 to 2016 in Afghanistan.

In our ministry, I would like to cordially thank Academic Deputy Minister Abdul Tawab Balakarzai, Financial & Administrative Deputy Minister Noor Ahmad Darwish, Advisor at Ministry of Higher Education Dr. Gul Rahim Safi, Chancellor of Universities, Deans of faculties, and lecturers for their continuous cooperation and support for this project.

I am also thankful to all those lecturers who encouraged us and gave us all these books to be published and distributed all over Afghanistan. Finally I would like to express my appreciation for the efforts of my colleagues Hekmatullah Aziz and Fahim Habibi in the office for publishing and distributing the textbooks.

Dr Yahya Wardak
Advisor at the Ministry of Higher Education
Kabul, Afghanistan, May, 2021
Mobile: 0706320844, 0780232310
Email: textbooks@afghanic.org

## Message from the Ministry of Higher Education




In history, books have played a very important role in gaining, keeping and spreading knowledge and science, and they are the fundamental units of educational curriculum which can also play an effective role in improving the quality of higher education. Therefore, keeping in mind the needs of the society and today's requirements and based on educational standards, new learning materials and textbooks should be provided and published for the students.

I appreciate the efforts of the lecturers and authors, and I am very thankful to those who have worked for many years and have written or translated textbooks in their fields. They have offered their national duty, and they have motivated the motor of improvement.

I also warmly welcome more lecturers to prepare and publish textbooks in their respective fields so that, after publication, they should be distributed among the students to take full advantage of them. This will be a good step in the improvement of the quality of higher education and knowledge transfer process.

The Ministry of Higher Education has the responsibility to make available new and standard learning materials in different fields in order to better educate our students.

Finally I am very grateful to Kinderhilfe-Afghanistan (German Aid for Afghan Children) and our colleague Dr. Yahya Wardak that have provided opportunities for publishing this book.

I am hopeful that this project should be continued and increased in order to have at least one standard textbook for each subject, in the near future.

Sincerely,<br>
Abdul Tawab Balakarzai<br>
Academic Deputy Minister of Higher Education<br>
Kabul, 2021

